

# ملي سرود

دا وطن افغانستـــان دی
کور د سولې کور د تورې
دا وطن د ټولو کــور دی
د پښتـــون او هـــزاره وو
ورسره عرب، گوجر دي
براهوي دي، قزلباش دي
دا هېـــواد به تل ځلیږي
پـه سینـه کې د آسیـا به
نوم د حق مو دی رهبـــر

دا عزت د هـــر افغان دی
هر بچی یې قهرمـــان دی
د بـــلوڅـــو د ازبکـــو
د تـرکمنـــو د تـاجکـــو
پـامیـریان، نـورستانیـــان
هـــم ایمـاق، هم پشه یان
لکـه لمر پـر شنه آسمان
لکـه زړه وي جـاویـــدان
وایو الله اکبر وایو الله اکبر

# د کتاب ځانګړتیاوې

**مضمون:** د ښوونکي لارښود

**مؤلفین:** د تعلیمي نصاب د پښتو ژبې او ادبیاتو څانګې د درسي کتابونو مؤلفین

**ایډېټ کوونکي:** د پښتو ژبې او ادبیاتو د ایډېټ څانګې غړي

**ټولګی:** دریم

**د متن ژبه:** پښتو

**انکشاف ورکوونکی:** د تعلیمي نصاب د پراختیا او درسي کتابونو د تألیف لوی ریاست

**خپروونکی:** د پوهنې وزارت د اړیکو او عامه پوهاوي ریاست

**د چاپ کال:** ۱۳۹۸ هجري شمسي

**د چاپ ځای:** کابل

**چاپخونه:**

**برېښنالیک پته:** curriculum@moe.gov.af



**دا کتاب د "افغان ماشومان يې لولي" پروژې په تخنیکي مرسته تألیف شوی دی.**

## د پوهنې د وزير پيغام

اقرأ باسم ربک

د لوی او ښښونکي خدای ﷻ شکر په ځای کوو چې موږ ته يې ژوند رابښلی او د لوست او ليک له نعمت څخه يې برخمن کړي يو، او د الله تعالی پر وروستي پيغمبر محمد مصطفی ﷺ چې الهي لومړنی پيغام ورته (لوستل) و، درود وايو.

څرنګه چې ټولو ته ښکاره ده ۱۳۹۷ هجري لمريز کال د پوهنې د کال په نامه ونومول شو، له دې امله به د ګران هېواد ښوونيز نظام، د ژورو بدلونونو شاهد وي. ښوونکی، زده کوونکی، کتاب، ښوونځی، اداره او د والدينو شوراګانې د هېواد د پوهنيز نظام شپږګوني بنسټيز عناصر بلل کيږي، چې د هېواد د ښوونې او روزنې په پراختيا او پرمختيا کې مهم رول لري. په داسې مهم وخت کې د افغانستان د پوهنې وزارت د مشرتابه مقام، د هېواد په ښوونيز نظام کې د ودې او پراختيا په لور بنسټيزو بدلونونو ته ژمن دی.

له همدې امله د ښوونيز نصاب اصلاح او پراختيا، د پوهنې وزارت له مهمو لومړيتوبونو څخه دي. همدارنګه په ښوونځيو، مدرسو او ټولو دولتي او خصوصي ښوونيزو تأسيساتو کې، د درسي کتابونو او د ښوونکو د تدريس لارښود محتوا، کيفيت او توزيع ته پاملرنه د پوهنې وزارت د چارو په سر کې ځای لري. موږ په دې باور يو، چې د باکيفيته درسي کتابونو له شتون پرته، د ښوونې او روزنې اساسي اهدافو ته رسېدلی نه شو.

پورتنيو موخو ته د رسېدو او د اغېزناک ښوونيز نظام د رامنځته کولو لپاره، د راتلونکي نسل د روزونکو په توګه، د هېواد له ټولو زړه سواندو ښوونکو، استادانو او مسلکي مديرانو څخه په درناوي هيله کوم، چې د هېواد بچيانو ته دې د درسي کتابونو په تدريس، او د محتوا په لېږدولو کې، د دې لارښود څخه په ګټې اخيستنې سره، هيڅ ډول هڅه او هاند ونه سپموي، او د يوه فعال او په ديني، ملي او انتقادي تفکر سمبال نسل په روزنه کې، زيار او کوښښ وکړي. هره ورځ د ژمنې په نوي کولو او د مسؤوليت په درک سره، په دې نيت لوست پيل کړي، چې د نن ورځې ګران زده کوونکي به سبا د يوه پرمختللي افغانستان معماران، او د ټولنې متمدن او ګټور اوسېدونکي وي.

همدا راز له خوږو زده کوونکو څخه، چې د هېواد ارزښتناکه پانګه ده، غوښتنه لرم، څو له هر فرصت څخه ګټه پورته کړي، او د زده کړې په پروسه کې د ځيرکو او فعالو ګډونوالو په توګه، او ښوونکو ته په درناوي سره، له تدريس څخه ښه او اغېزناکه استفاده وکړي.

په پای کې د ښوونې او روزنې له ټولو پوهانو او د ښوونيز نصاب له مسلکي همکارانو څخه، چې د دې لارښود کتاب په ليکلو او چمتو کولو کې يې نه ستړې کېدونکې هلې ځلې کړې دي، مننه کوم، او د لوی خدای ﷻ له دربار څخه دوی ته په دې سپېڅلې او انسان جوړوونکې هڅې کې بريا غواړم.

د معياري او پرمختللي ښوونيز نظام او د داسې ودان افغانستان په هيله چې وګړي يې خپلواک، پوه او سوکاله وي.

د پوهنې وزير

دکتور محمد ميرويس بلخي

# لړلیک

**سریزه**

د ښوونکي لارښود د"لومړنۍ دورې د لیک او لوست" پروګرام د لیک لوست لارښود دی. په دې لارښود کې د دغو مواردو په اړه معلومات شامل دي:

- هغه اساسي اصول چې له مخې یې دغه ماډل جوړ شوی دی.
- د لیک لوست د لارښود پنځه + دوه مهم عنصرونه.
- د لیک لوست د ارزونې نمونه.
- د لومړي ټولګي لپاره د لیک لوست قابلیتونه.
- د ځانګړې زده کړې اړتیاوې.
- د رواني رغونې ټولګی.
- د ورځنیو درسونو د تدریس میتود.

**د لومړنۍ دورې د لیک او لوست ماډل**

په افغانستان کې د ښوونکو، والدینو او پالیسي جوړوونکو موخه دا ده چې د لومړنیو ښوونځیو د لومړنیو ټولګیو زده کوونکي په لیک او لوست کې تکړه شي. د لومړنۍ دورې د لیک او لوست نصاب د همدې موخې د ترلاسه کولو لپاره طرحه او پلی کړای شوی دی. تاسو د یوه ښوونکي او په ټولګي کې د دې پروګرام د تطبیقوونکي په توګه، د دې پروژې د بریالیتوب لپاره تر ټولو زیات اهمیت لرئ.

د لیک او لوست دا ماډل د لاندې اصولو په رڼا کې جوړ شوی دی:

**لومړی:** دا ماډل د څېړنو پر بنسټ جوړ شوی دی او د نړۍ په کچه د لیک لوست له بریالیو ماډلونو سره مطابقت لري.

**دویم:** په دې ماډل کې د لیک لوست له هغو بنسټیزو عناصرو څخه کار اخیستل شوی چې له زده کوونکو سره د قابلیتونو په تر لاسه کولو کې مرسته کوي. د لوستلو پنځه اړین عنصرونه دا دي :۱. د غږ پېژندنې پوهه، ۲. د الفبې اصول، ۳.روان لوستل، ۴. د لغتونو زېرمه، ۵. مفهوم اخیستل. پر دې ۵ عنصرونو سربېره د کتاب او قلم د کارولو طریقه او د لیکلو عنصرونه هم شته دي چې په بله برخه کې به تشریح شي. دغه عنصرونه د لوستلو، لیکلو، غږېدلو او اورېدلو په برخه کې د پوهنې وزارت د تعلیمي نصاب له قابلیتونو سره سمون خوري.

**دریم:** دا ماډل د دې نظریې ملاتړ کوي چې وایي: "د لیک لوست مهارتونه هغه وخت ښه ځلېدلی شي چې ماشومان لومړی په یوه داسې ژبه کې لوستل زده کړي چې ښې خبرې په کې کولای شي".

**څلورم:** دې ماډل دې مهمې موضوع باندې هم رڼا اچولې ده چې ماشومان هغه مهال سم لوستل زده کولی شي چې د خپلو ژبو د غږونو د سیستم په باره کې ښه پوهه ولري. یعنې زده کوونکي، مخکې له دې چې د توري او غږ د اړیکې څرنګوالي په برخه کې تدریس ترلاسه کړي، هغوی باید د غږ پېژندنې (هجاوو او غږ پېژندنه) او د لغتونو د زېرمې په اړه ښه پوهه ولري. د هجاوو او کلمو د سم لوستلو د اسانولو لپاره په درسي کتاب کې حرکتونه (زبر، زېر، پېښ) کارول شوي دي. دا حرکتونه (د زبر، زېر، پېښ حرکتونه) د کلمې د معنا په درک کولو کې هم له زده کوونکو سره مرسته کوي، په ځانګړې توګه کله چې بېلابېلې کلمې په شکل کې سره ورته وي، خو په معنا کې توپیر ولري.

**پنځم:** په دې ماډل کې د تدریس روښانه او سیستماتیکه طریقه کارول شوې ده. سیستماټیک تدریس په دې معنا دی چې د مهارتونو وده د خورا پیچلو مهارتونو د ترلاسه کولو ته د مخه کولو پر ځای په آسانه بنسټیزو مهارتونو سره پیلیږي. زده کوونکو ته د نویو مهارتونو د تدریس پلان ښه ترتیب شوی دی، تر څو ټول بنسټیز مهارتونه په لومړي سر کې تدریس کړای شي. روښانه تدریس په دې معنا دی چې معلومات باید لومړی ستاسې لخوا (چې ښوونکی یاست) په روښانه توګه تشریح او وړاندې شي. بیا زده کوونکي ستاسې په مرسته د خپلو نویو مهارتونو تمرین کوي.په دې نمونې سره، تاسو خپلو زده کوونکو ته داسې بنسټیز مهارتونه تدریس کوئ چې زده کوونکي سم لیکل او سم لوستل زده کولی شي.

**شپږم:** دا ماډل په ټولو درسونو او تمرینونو کې د ټولنیزې - عاطفي زده کړې محتویات رانغاړي. ټولنیز او عاطفي مهارتونه د پېژندګلوی، عواطفو او خپل منځي اړیکو د سمبالولو مهارتونه دي چې له وګړو سره د بریالي ژوندانه په

جوړولو کې مرسته کوي. ټولنیزې او عاطفي زده کړې د هغو ماشومانو لپاره لا ډېرې ګټورې دي چې له سختو ستونزو او بدمرغیو سره مخ شوي وي، لکه بېوزلي، بې ځایه کېدل او تاوتریخوالی. له سختو ستونزو او بدمرغیو سره مخ کېدل کولای شي د ماشوم روغتیا او پرمختګ متاثر کړي. ټولنیزې او عاطفي زده کړې له ماشومانو سره مرسته کوي چې خپل احساساتي غبرګونونه متمرکز او تنظیم کړي، له نورو سره اړیکه ټینګه کړي او له ستونزو او فشارونو سره مبارزه وکړي. ټولنیزه او عاطفي زده کړه د هرې اونۍ لپاره ځانګړې موخې لري چې په کیسو او ذهني پوښتنو کې نغښتې دي. د نوښتي لیکنې په مهال زده کوونکو ته وخت ورکول کېږي چې ښه پرې فکر وکړي او بیا یې په اړه یو څه ولیکي.

**بنسټ: د لوستلو د تدریس پنځه + دوه برخې**




کارپوهان دا مني چې د لیک لوست د بریالي تدریس لپاره ۵ مهمې برخې دي. د لوستلو ۵ + ۲ مهمې برخې په لاندې ډول دي:

د لوستلو پنځه مهمې برخې:

۱. فونولوژیکه پوهه (غږ پېژندنه)
۲. د الفبې اصول
۳. روان لوستل
٤. د لغتونو زېرمه
٥. د مفهوم اخیستل

جمع دوه عنصرونه:

٦. د کتاب او قلم د استفادې طریقه
۷. لیکل

**لیکل ولې شامل کړای شوي دي؟**

لوستل او لیکل له یوه بل سره تړلي مهارتونه دي چې په یوه ځای یې زده کول بهتر دي. د اغېزمن لوستلو پروګرام کې د لیکلو فعالیتونه شامل دي، په دې توګه زده کوونکي کولای شي خپل لوستل د لیکلو پر مټ او لیکل د لوستلو پر مټ ښه کړي. لیکل د لوستلو د زده کړو یوه بل عنصر ګڼل کېږي.

**۱. فونولوژیکي پوهه (غږ پېژندنه)**

**څه شی ده؟** فونولوژیکي پوهه د غږونو (سېلابونو) پېژندنې او د غږونو په تغییر او تجزیې سره د کلمو جوړولو ته وایي. تاسو باید له زده کوونکو سره مرسته وکړئ او په دې یې پوه کړئ چې کلمې له غږونو څخه جوړېږي او که داسې ونشي له دې پوهې پرته به لوستل ښه زده نه کړي.

**څه ارزښت لري؟** زده کوونکي په غږونو (هجاوو) باید وپوهېږي چې په لوستلو او هجا کولو کې ور سره مرسته وکړي.

**څنګه باید تدریس شي؟** فونولوژي یا غږ پېژندنه د هم قافیې کلمو او د کلمو یا هجاوو له غږونو سره د کار کولو پر مټ تدریس کېدای شي؛ مثلاً، یو زده کوونکی چې د ژبې په غږونو پوهېږي، هغه کلمې پېژندلی او سره جلا کولی شي چې په ورته غږونو پیلېږي، لکه: (باد، باران) (ټپه، ټپې) ټپه چې لنډۍ هم ورته وایي، پښتو فولکلوریک شعر دی چې د نړۍ له ډېرو اوچتو شعرونو څخه شمېرل کېږي او ټپې زخمي ته وایي.

**۲.د الفبې اصول (د شکل او غږ اړیکې)**

**څه شی دي:** د ښه لوستلو لپاره په کار ده چې زده کوونکي د الفبې په اصولو او د تورو په یو ځای کولو وپوهېږي. زده کوونکي باید وپوهېږي چې توري په کلمو کې د غږونو استازیتوب کوي. د تدریس دغه میتود له غږ سره د شکل (توري) اړیکه ښیي او زده کوونکي د تورو په شکلونو او غږونو پوهوي.

**څه ارزښت لري؟** د شکل او غږ رابطه زده کوونکو ته د کلمو سم ویل او هجا ورزده کوي. دوی هغه کلمې هم ویلی او هجا کولی شي چې تر اوسه پورې ورته ښودل شوې نه دي. هغه زده کوونکي چې له غږ سره د شکل اړیکه ورته ویل شوې وي، نا آشنا کلمې لکه (مَنظره) هم لوستلی او هجا کولی شي، آن که د کلمې په معنا نه پوهېږي هم.

**څنګه باید تدریس شي؟** تاسو له خپلو زده کوونکو سره دا مرسته کوئ چې توري ورښیئ، د تورو په شکلونو او سېلابونو یې پوهوئ. تر څنګ یې د تورو او سېلابونو ترکیبول (یو ځای کول) او تجزیه کول (بېلول) هم ورته ورښیئ.

### ۳. روان لوستل

**څه شی دي؟** روان لوستل د متن ښه، څرګند، بې تکلیفه او بې غلطۍ لوستلو ته وایي.

**څه ارزښت لري؟** د متن د ښه لوستلو مهارت له زده کوونکو سره د متن په لوستلو او پوهېدلو کې مرسته کوي، د جملو په جوړولو یې پوهوي او په لیکلو کې هم ورسره مرسته کوي.

**څنګه باید تدریس شي؟** هر څومره چې زده کوونکي له متن سره سر او کار ولري، همدومره به متن ښه روان ولوستلی شي. په ښوونکي پسې په تکرار لوستل، په ګډه او د دوو زده کوونکو له خوا یوځای لوستلو سره په لوستلو کې رواني راځي. (دغه لاندې جدول وګورئ). یو روان لوستونکی د لوستلو لحن، د ویلو انداز او چټکوالی، د متن د کلمو او علامو له مخې بدلولی شي.

| **په ښوونکي پسې په تکراري شکل لوستل** |
|---|
| دا ډول لوستل هغه وخت کېږي چې یو نوی متن معرفي کېږي. |
| لومړی ښوونکی او ورپسې یې زده کوونکي متن لولي. |
| **په ګډه لوستل:** ښوونکی او زده کوونکي یې یوځای سره لولي. |
| له جملو او کلمو سره د ښوونکي د غږ تناسب له زده کوونکو سره د متن په لوستلو کې مرسته کولی شي. |
| **له ټولګیوال سره لوستل:** زده کوونکي له خپل څنګ لوري ټولګیوال سره متن لولي. |
| **په ورو، ورو لوستل:** د نویو لوستونکو دا نه خوښېږي چې متن له ځانه سره پټ په زړه کې ولولي، خو په آرامه او ورو، ورو لوستل یې خوښېږي. |

### ٤. د کلمو زېرمه

**څه شی دی؟** هغه کلمې چې د یو چا په حافظه کې وي، د کلمو زېرمه بلل کېږي. د کلمو زېرمه زده کوونکي په هغه څه پوهوي چې اوري یې او لولي یې. د کلمو زېرمه له زده کوونکو سره په خبرو او لوستلو کې هم مرسته کوي.

**څه اهمیت لري؟** زده کوونکي د زیاتو کلمو زده کولو ته اړتیا لري. هغه زده کوونکي چې د لغتونو زېرمه ورته تدریس شوي وي، پر هغه څه ښه پوهېږي چې اوري یې او لولي یې. زده کوونکي په خپلو لیکنو او خبرو کې د کلمو له زېرمې څخه ګټه اخیستلی شي.

**څنګه باید تدریس شي؟** تاسو په مستقیم او غیر مستقیم ډول د کلمو د زېرمې تدریس کولی شئ. په مستقیم تدریس کې هغه درسونه شامل دي چې انځورونه په کې راغلي دي او په لوړ غږ لوستل کېږي. دا زده کوونکو ته د کلمو د اورېدلو او کارولو لاره جوړوي. د کلمو زېرمه په غیر مستقیم ډول هم تدریس کېدای شي. دا کار د درسي ټولګي بڼه بدلوي، یعنې زده کوونکو ته د لوستلو لپاره زیات متن ورکول کېږي .

### ٥. د مفهوم اخیستنې ځواک

**څه شی دی؟** په یوه متن باندې پوهېدلو او ورڅخه معنا اخیستلو ته وایي. مفهوم دوه ډوله دی: لفظي (ټکي په ټکي) او استنباطي. لفظي مفهوم اخیستنه دا ده چې زده کوونکي د متن د هرې کلمې او جملې په واقعي معنا پوه شي (لکه د کرکټر د کمیس رنګ، یا دا چې په کیسه کې څه پېښ شول؟) خو استنباطي پوهه لوستونکی هغو معلوماتو ته هڅوي چې په متن کې یې نېغ په نېغه یادونه، نه ده شوې (لکه: د دوی په ګومان کرکټر څه احساس درلود او یا که دوی په خپله د کیسې د کرکټر پر ځای وای، نو څه به یې کړي وای).

**څه اهمیت لري؟** د مفهوم اخیستنې ورتیا د لوستلو اصلي هدف دی.

**څنګه باید تدریس شي؟** د مفهوم اخیستنې ځواک هم باید د لومړنیو ټولګیو زده کوونکو ته وښوول شي. دا مهارت له لوستلو او اورېدلو څخه مخکې، د لوستلو او اورېدلو په جریان کې او تر لوستلو او اورېدلو وروسته ورزده کېږي. هغه زده کوونکي چې د مفهوم اخیستنې مهارتونه ورته ښوول شوي وي، د کیسې په باره کې وړاندوینه کولی شي، په کیسه یې سر خلاصېږي او وروسته تر دې چې تاسې کیسه ورته لولئ، کیسه ارزولی شي.

**٦. له چاپي موادو څخه ګټه اخيستل کوم شيان رانغاړي؟**
**څه شی دي:** زده کوونکو ته ورښيي چې له قلم او کتاب څخه څنګه ګټه واخلي.
په دې مفاهيمو کې د تورو، کلمو او علامو توپير او همدارنګه دا چې متن له کومې خوا لوستل کېږي او ليکل کېږي، شامل دي، خو د کتاب نيـــول، د کتاب د پاڼو اړول، لوستل او پر انځورونو پوهــېدل هم په کې راځي. دا مفاهيــم زده کوونکي لوستلو او ليکلو ته چمتو کوي.
**څه اهميت لري؟** دا مفاهيم زده کوونکو ته د لوستلو طريقه ور زده کوي.
له ليکلو او لوستلو سره يې آشنا کوي. دا مفاهيم به د لومړيو ټولګيو د زده کوونکو لپاره نا آشنا وي، خو د نويو زده کوونکو د بريالیتوب لپاره خورا مهم دي چې ښه لوستونکي او ليکونکي شي.
**څنګه بايد تدريس شي؟** دغه مفاهيم بايد کم عمره زده کوونکو (د لومړي ټولګي او له هغه څخه ښکته زده کوونکو) ته هم تدريس شي. د دې مفاهيمو زده کړه کوم منل شوی ترتيب نه لري. په ترتيب او تسلسل يې په خپله زده کوونکي بايد ځانونه وپوهوي. په موجوده طريقه کې، هغه څه چې زده کوونکو ته ور زده کېږي، دا دي:
ـــ د کتاب نيول، پاڼې اړول، په انځورونو (رسمونو) پوهېدل، د پنسل نيول او کارول يې. زده کوونکو ته د دې مفاهيمو د ور زده کولو تر ټولو ښه طريقه دا ده چې ورته دا موقع ورکړل شي چې پخپله کتاب وګوري، ويې سپړي، ليکل وکړي او رسمونه وکاږي.

**٧. ليکل**
**څه شی دي؟** ليکل له تورو څخه د کلمو او فکرونو د ترتيبولو ورتيا څخه عبارت دی. کلمې بايد سمې وليکل شي او فکرونه دې هم بايد يوه له بل سره د تړاو په درلودلو سره وړاندې کړای شي، تر څو زده کوونکي د لوستلو وړ متن ليکلو ورتيا ترلاسه کړي.

**څه اهميت لري؟** ليکل د زده کړې، ښوونې او روزنې، د پوهېدلو او پوهولو ډېره مهمه وسيله ده. ليکل خلکو ته لاره برابروي چې خپل نظر، احساسات، مفکورې او خبرې نورو ته ورسوي. ليکل له ماشومانو سره مرسته کوي چې په خپله متن ولوستلی شي او کلمې وپېژني.
**څنګه تدريس شي؟** ليکل د مشاهدې، پلټلو او نورو ګڼو لارو څخه زده کېږي. د ليکلو د پیاوړي کولو لارې چارې دا دي: رسامي، کرښې ايستل، د تورو په څېر شکلونه جوړول، په لړو تېروتنو سره او يا په پوره ډول سمه املا.
زده کوونکي بايد کلمې سمې وليکي، خو دا به څنګه زده کوي چې خپل فکرونه په ليکلي بڼه بيان کړي، پيل يې د هغو شيانو له رسمولو څخه کېږي چې د دوی خوښېږي او په آخر کې به د يوه وړوکي متن په ليکلو بريالي شي.
**د لومړنۍ دورې د ليک او لوست د ماډل مهم مېتودونه**
د ليک لوست د تدريس په دې نوي ماډل کې له دغو مېتودونو څخه ګټه اخيستل شوې ده:
١. د تورو د شکلونو او حرکتونو تدريس
٢. د انتقال مېتود (ښوونکی ⟵ ښوونکی + زده کوونکي ⟵ زده کوونکي)
٣. ګډه زده کړه
٤. دوامداره ارزونه
٥. څو حسي ميتود
٦. شفا هي ژبه: د غږ پېژندنې پوهه (غږونه، توري او هجاوې)، د کلمو زېرمه او د غوږ نيولو ورتيا
٧. د کتاب او قلم د کارولو مفاهيم
٨. مرستندويه طريقه

**١. د تورو د شکلونو او حرکتونو تدريس**
توري په پښتو ژبه کې دې ته په کتنې سره چې د کلمې په کومه برخه کې راځي، جلا جلا شکلونه لري. زياتره توري درې شکلونه لري: د کلمې په سر کې، د کلمې په منځ کې او د کلمې په آخر کې. ځينې توري کله چې له نورو تورو

سره نښتي نه وي، کېدای شي څلورم شکل هم ولري. که زده کوونکي توري وپېژني، بيا يې هغه شکلونه هم پېژندلی شي چې په کلمو کې راځي. د بېلګې په توګه يو توري د کلمې په آخر کې په خپلواک ډول راشي.
خو په دې پوهېدل يې مهم دي چې دا شکلونه د تورو د ځای په بدلېدو سره بدلېږي. زده کوونکي دې د تورو د پېژندنې ځانګړنې لکه د ټکو (نقطو) شمېر او د ټکو موقعيت په ياد ولري. دلته د يوې کلمې په مختلفو ځايونو کې د **"ع"** توري بېلا بېل شکلونه ګورو: د کلمې په سر کې داسې وي **"عـ"** ، د کلمې په منځ کې داسې **"ـعـ"** ليکل کېږي او د کلمې په آخر کې په دې شکل **"ـع"** راځي.
د اعراب يا حرکتونو ( زور، زېر او پېښ) نښې د کوچنيو غږونو (Vowels) د ښودلو لپاره کارول کېږي. پر تورو د حرکتونو د نښو اېښودل د تورو لوستل او تلفظ آسانه کوي او له بلې خوا زده کوونکي له پيل څخه د کلمې په سم تلفظ پوهوي. موږ دلته د حرکت له دريو نښو څخه استفاده کړې ده:
فتحه يا زبر چې د /آ/ غږ لري، کسره يا زېر چې د /اِ/ غږ بيانوي او ضمه يا پېښ چې د /اُ/ په غږ ويل کېږي.
د حرکت د نښو يو څو بېلګې: لکه: مَنَه د «منې» په ميم او نون دواړو کې فتحه يا زبر دی. اِنځر چې په کسره يا زېر پيلېږي. لُوکاټ چې په ضمه يا پېښ پيلېږي.

### ۲. د انتقال مېتود (ښوونکی ⟵ ښوونکی + زده کوونکي ⟵ زده کوونکي)

د انتقال مېتود په غيررسمي ډول د "زه يې ترسره کوم، موږ يې ترسره کوو، تاسو يې ترسره کوئ" په توګه يادېږي. دلته «زه» ښوونکی، «موږ» ښوونکی + زده کوونکي او «تاسو» زده کوونکي دي. ترتيب يې داسې دی: لومړی ښوونکی يا روزونکی يو فعاليت ترسره کوي او زده کوونکي ورته ځير وي (زه يې کوم)؛ وروسته زده کوونکي او ښوونکی په ګډه سره همدغه فعاليت ترسره کوي (موږ يې کوو)؛ بيا يوازې زده کوونکي همدغه فعاليت ترسره کوي (تاسو يې ترسره کوئ).
دا ميتود د تدريس په ډېرو برخو کې ګټور وي. دغه مېتود د تدريس د دې لارښود کتاب په " څرنګه تدريس وکړو؟" برخه کې ښودل شوی دی. دغه ميتود پر خپل ځان د زده کوونکو باور زياتوي او زده کړه ورته آسانوي.

### ۳. ګډه زده کړه

دا طريقه د ګډ فعاليت معنا لري. دغه ميتود زده کوونکو ته فرصت ورکوي چې په ټولګي کې د لنډې مودې لپاره له خپلو ټولګيوالو سره په ګډه کار وکړي. دا د انتقال ميتود برخه هم ده چې له يوه ځانګړي فعاليت وړاندې يا وروسته ترسره کېدای شي. په دې مېتود به زده کوونکي نوي شيان له نورو سره يو ځای تمرين کړي. همداشان د هغو ټولګيو په اداره کولو کې هم مرسته کوي چې د زده کوونکو شمېر په کې زيات وي.

### ٤. دوامداره ارزونه

دوامداره ارزونه په ورځنيو لوستونو کې شامل کړای شوې ده. د هرې اونۍ پنځم او شپږم لوست د پخوانيو لوستونو تکرار او ارزونه ده. د دې دوو ورځو د فعاليتونو زياته برخه د "تاسو يې ترسره کوئ" فعاليتونه دي، زده کوونکي بايد دغه فعاليتونه ترسره کړای شي ځکه چې همدغه فعاليتونه يې د اونۍ په اوږدو کې ترسره کړي دي. په دې مېتود کې تاسې خپل زده کوونکي ارزولی شئ او په ليک لوست کې د هغوی پرمختګ کتلی او ثبتولی شئ.

### ۵. څو حسي مېتود

په دې مېتود کې هغه فعاليتونه شامل دي چې زده کوونکي په کې د نويو معلوماتو او مهارتونو د زده کولو لپاره له دوو يا زياتو حسونو څخه ګټه اخلي. په دې مېتود کې زده کوونکو ته لارښوونه کېږي چې له ليدلو، اورېدلو، خبرو کولو او خوځېدلو څخه استفاده وکړي. د تدريس څو حسي مېتود په ټولو لوستونو کې کارول کېدای شي. تر ډېره وخته پورې له دغه ميتود څخه يوازې د هغو زده کوونکو لپاره ګټه اخيستل کېدله چې د زده کړې ستونزې به يې لرلې، خو اوس ثابته شوې ده چې دا طريقه د ټولو زده کوونکو لپاره ګټوره ده.

### ٦. شفاهي ژبه: د غږ پېژندنې پوهه، د کلمو زېږمه او د اورېدلو مهارت

که په چا کې د شفاهي ژبې مهارتونو وده کړې وي، کلمې په آسانۍ سره لوستلی شي. د کلمو زېږمه، د غږونو پېژندل او د اورېدلو مهارت د زده کړې تهداب جوړوي. فونولوژيکي پوهه (غږ پوهنه) په يوه ژبه کې د غږونو، سېلابونو او د هم وزنو کلمو ترمنځ د اړيکې درک کول دي. زده کوونکي د لغتونو د زده کړې او تمرين لپاره ډېرو فرصتونو ته اړتيا لري.
ښه زېږمه له زده کوونکو سره د متن په لوستلو کې مرسته کوي. ماشومانو ته د کيسو له لوستلو سره، د هغوی په حافظه کې د کلمو زېږمه زياتېږي او کله چې ماشومان متنونه لولي، د کلمو پر معنا ښه پوهېدای شي.

### ٧. د چاپي مفاهيمو پوهه

زده کوونکي چې چاپ شوي متنونه وګوري، په دې پوهېږي چې چاپي متن څه ګټه لري او څنګه کارول کېږي. زده کوونکي بايد له کتاب او چاپ شوي متن سره بوخت شي او پوه شي چې دا خو خبرې دي او معنا لري.

### ٨. د تدريس مرستندويه طريقه

د تدريس دغه مېتود هغه مفکوره تقويه کوي چې وايي بايد په تدريس کې له معلوم څخه پيل کړو او د نامعلوم خوا ته لاړ شو. په دې مېتود کې زده کوونکو ته نوي معلومات د هغوی د پخوانيو معلوماتو پر بنسټ وړاندې کېږي. په عمل کې، د دې پر ځای چې د زده کوونکي سم ځواب ته په تمه اوسو، له هغه سره مرسته کوو چې سم ځواب ته ورسېږي. بايد له زده کوونکي سره داسې مرسته وکړو چې کار يا ځواب يې ورسم کړو. مثلاً، که زده کوونکی د «باران» کلمه «بادام» لولي، ورته به وايو چې تا اول غږ سم ولوست «با» دې صحيح ولوست، خو راځه چې دا پاتې برخه يې هم سمه ولولو. يا که زده کوونکي سور قلم راښيي او وايي چې «دا شين قلم دی.»، ورته به وايو چې ته سمه خبره کوې؛ دا قلم دی، خو شين نه دی، سور قلم دی.

### ٩. اونيز مهال وېش

لاندې د درسي کتاب د فعاليتونو د اونيز تدريس لپاره يو پيشنهادي مهال وېش ورکړل شوی دی. په دې مهال وېش کې د هر درسي ساعت وخت ٤٥ دقيقې ټاکل شوی دی، خو د هېواد په ځينو برخو کې د کال په يوه خاص وخت کې د درسي ساعت وخت ٣٥ دقيقې وي. نو ښوونکي کولی شي د هر مهارت لپاره د ټاکلي وخت له مخې خپل تدريس برابر کړي.

**د دريم ټولګي اونيز مهال وېش**

| لومړی لوست | دقيقې | دوهم لوست | دقيقې | دريم لوست | دقيقې | څلورم لوست | دقيقې | پنځم لوست | دقيقې | شپږم لوست | دقيقې |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| د درس پيل | ٥ | د درس پيل | ٥ | د درس پيل | ٥ | د درس پيل | ٥ | د درس پيل | ٥ | د درس پيل | ٥ |
| توري، کلمې او جملې | ١٠ | توري، کلمې او جملې | ١٠ | توري، کلمې او جملې | ١٠ | توري، کلمې او جملې | ١٠ | اورېدل او خبرې کول | ١٠ | د کلمو زېږمه/ ګرامر | ١٠ |
| د لومړي متن لوستل | ٢٥ | د کلمو زېږمه | ١٥ | د دوهم متن لوستل | ٢٥ | د کلمو زېږمه | ١٥ | نوښتي ليکنه | ١٥ | د لومړي او دوهم متن بيا لوستل | ١٠ |
| | | د لومړي متن بيا لوستل | ١٠ | | | د دوهم متن بيا لوستل | ١٠ | د لومړي او دوهم متن بيا لوستل | ١٠ | املاء/ سم ليکل | ١٥ |
| ارزونه/کورنۍ دنده | ٥ | ارزونه/کورنۍ دنده | ٥ | ارزونه / کورنۍ دنده | ٥ | ارزونه/کورنۍ دنده | ٥ | ارزونه/کورنۍ دنده | ٥ | ارزونه/کورنۍ دنده | ٥ |
| **ټوله موده** | **٤٥** | **ټوله موده** | **٤٥** | **ټوله موده** | **٤٥** | **ټوله موده** | **٤٥** | **ټوله موده** | **٤٥** | **ټوله موده** | **٤٥** |
| | | | | | | **حسن خط** | **٤٥** | | | **حسن خط** | **٤٥** |

البته ښوونکی کولی شي د فعاليتونو د وختونو له مخې پورته ټاکل شوي وختونه لږ يا ډېر کړي.

**د لوستلو او ليکلو د زده کړې د تکويني ارزونې نمونه**

د زده کوونکو د لوستلو او ليکلو د زده کړې د ارزونې تر ټولو غوره لار دوامداره ورځنۍ ارزونه ده. ماشومان په ځانګړې توګه د لوستلو او ليکلو د زده کړې په لومړيو پړاوونو کې ډېر فعاله نه وي. څېړنو ښودلې ده هغه ماشومان چې په لومړي سر کې په لوستلو او ليکلو کې تکړه نه شي، وروسته بيا په آسانۍ سره خپلو لوستونو ته نه شي رسېدلی. دغه لاندې ګراف ته ځير شئ چې همدې مسئلې ته په کې اشاره شوې ده.




هغه زده کوونکي چې په لومړنيو پړاوونو کې د لوستلو په اساسي مهارتونو سمبال وي، په تعليم کې به بريالی مخ ته روان وي. هغه زده کوونکي چې په لومړي ټولګي کې د لوستلو او ليکلو د زده کړې په مهارتونو کې وروسته پاتې وي، په راتلونکو او ورپسې ټولګيو کې به دغه وروسته پاتې والی نور هم زيات شي. له دې کبله، ډېره اړينه ده چې ښوونکي دې د زده کوونکو فعاليتونه په لومړنيو دورو کې له نژدې څخه وڅاري. خپل تدريس دې داسې برابر کړي چې زياتره زده کوونکي د لوستلو او ليکلو مهارتونه ترلاسه کړي او سم لوستل او ليکل وکړای شي.

د لومړنۍ دورې د ليک او لوست ماډل په تکويني ارزونه ټينګار کوي. تکويني ارزونه دوه ډولونه لري: (۱. دوامداره ارزونه او ۲. تکويني دوره يي ارزونه). دوامداره ارزونه د ښوونکو له خوا په ورځني ډول د هر لوست په جريان کې ترسره کېږي څو د زده کوونکو زده کړه و ارزوي. سربېره پر دې، د اونۍ د پنځمې او شپږمې ورځې لوستونه هم په داسې توګه جوړ شوي دي چې ښوونکی زده کوونکي لا زيات وارزوي. په دې ميتود تاسې خپل زده کوونکي ارزولی شئ او په ليک لوست کې د هغوی پرمختګ کتلی او ثبتولی شئ. د لوستلو، ليکلو، اورېدلو او غږېدلو په مهارتونو کې د زده کوونکو د پرمختګ د ثبتولو لپاره د څارنې فورمه جوړه شوې ده.

## د زده کوونکو د پرمختګ د ارزونې فورمه

| شمېره | شهرت | | لوستل | | | | لیکل | | | | | اوریدل | | | | خبرې کول | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| | نوم | د پلارنوم | په کلمه کې د نوم، غږ او ځای سره د توررو پېژندل. | د سیلابونو په یوځای کولو سره د کلمو جوړول. | کلمې په هجاوو ویشل. | په بنه روانه توګه د متن لوستل. | حسن خط: ټکي او توري په بیوازې او ترکیبي ډول د نسخ خط د ځانګړتیاوو په پام کې نیولو سره په ښکلې توګه لیکي. | د لیکلو پر مهال سم کښیناستل او په سمه توګه د پنسل نیول. | د پیلولو سم ځای، د حرکت لوري او په سمه بڼه د توررو لیکل. | له مخ په زیاتېدونکي دقت سره د کلمو هجا کول | له انځورونو او کلمو څخه په ګټه اخیستنې سره د تخلیقي او بامفهومه کیسې لیکل. | له حافظې څخه د یوې کیسې بیا بیانول. | په شفاهي توګه د لوستلو په کیسه کې د پېښو سم ترتیب په ګوته کول. | د هغه متن یا کیسې په اړه رسم کښل چې هغه یا هغې ورته غوږ نیولی و. | د هغه متن یا کیسې په اړه د کلمو یا جملو لیکل چې هغه یا هغې ورته غوږ نیولی و. | د کیسې له مفهوم سره د خپلې پخوانۍ پوهې تړاو ورکول او له ټولګي سره یې شریکول. | د معلوماتو او انځورونو په کارولو سره د کیسې په اړه وړاندوینه کول چې وړاندې څه پېښیږي. | د ځواب په ورکولو او له شخصي تجربو سره د پېښو په تړاو ورکولو سره کیسې ته غبرګون ښودل. |
| ۱ | | | | | | | | | | | | | | | | | | |
| ۲ | | | | | | | | | | | | | | | | | | |
| ۳ | | | | | | | | | | | | | | | | | | |
| ۴ | | | | | | | | | | | | | | | | | | |
| ۵ | | | | | | | | | | | | | | | | | | |

**د زده کوونکو د پرمختګ د ارزونې د فورمې کارول**

د هرې اونۍ په پنځمه او شپږمه ورځ، لږ تر لږه (۵) زده کوونکي د ارزونې لپاره انتخاب کړئ. د زده کوونکو د پرمختګ د ارزونې فورمه د دې لپاره جوړه شوې ده چې د زده کوونکو نومونه پکې د پنځه کسیز ګروپ په شکل لیکل کېږي او تاسو ته د زده کوونکو د ټاکلو لپاره د ارزونې پروسه آسانه کوي. په دې ورځو کې (۵) زده کوونکي د لوستلو لپاره او (۵) نور د لیکلو لپاره انتخاب کړئ. همداسې نور زده کوونکي په بېلابېلو ډلو ووېشئ او تنظیم یې کړئ، غوره به دا وي چې ستاسې ټول زده کوونکي په ټول کال کې لږ تر لږه ۳ ځله د هر قابلیت لپاره ارزیابي شي، خو مهم ټکی دا دی چې تاسو به له هغو زده کوونکو سره زیاته مرسته کوئ چې په زده کړه کې پخ دي. تل به یې فعالیتونه څارئ.

د زده کوونکو د پرمختګ د ارزونې په فورمه کې د نومرو ورکولو درې درجه یې سیسټم کارول کېږي. په فورمه کې ښودونکي ۳ درجې او نښې په لاندې ډول دي:

**لومړۍ درجه: زده کوونکی په دې قابلیت کې معیار نه پوره کوي. نښه:** /

**دویمه درجه: زده کوونکی په دې قابلیت کې په معیار برابر دی. نښه:** /\

**دریمه درجه: زده کوونکی په دې قابلیت کې تر معیار پورته دی. نښه:** △

د لومړي ځل لپاره چې کله يو زده کوونکی ارزول کېږي، هغه شايد په کافي اندازه قابليت ونه لري او په دې توګه به د (✓) نښه تر لاسه کړي. کله چې د زده کوونکي فعاليتونه ښه کېږي او قابليت يې لوړېږي، تاسې کولای شئ دويمه نښه ✓✓ هم پر لومړۍ هغې ورزياته کړئ. (✓✓) نښه ښکاره کوي چې زده کوونکی اوس په دې برخه کې تکړه دی. که چېرې تاسې وګورئ چې زده کوونکی تر دې هم تکړه شوی دی، تاسې کولای شئ چې وروستۍ نښه (—) هم ورزياته کړئ چې(△) کېږي، تر څو مثلث پوره شي.
ځينې زده کوونکي په لومړي ځل ارزونه کې ښه قابليت ښيي. دا کومه ستونزه نه ده. تاسې هغوی ته د (✓✓) نښه ورکړئ.
ځينې زده کوونکي فوق العاده لايقه دي او آن دا چې په لومړنۍ ارزونه کې هم د قابليت تر ټولو لوړه درجه خپلوي؛ خو عمومي هدف دا دی چې ستاسو د زده کوونکو يوه لويه برخه بايد د تعليمي کال تر پايه د زده کوونکو د پرمختګ د ارزونې په فورمې کې د ټولو ورکړل شويو قابليتونو لپاره تر لږه د دويمې درجې نښان(✓✓) خپل کړي.
کېدای شي دا درته ستونزمن وي چې د زده کوونکو پرمختګ په ټولګي کې د ارزونې په فورمه کې ورسوئ. تاسې کولی شئ چې د کاغذ پر يوه کوچنۍ ټوټه دا معلومات وليکئ يا خپل ټول يادداشتونه په تفريح کې يا د درسي ساعتونو ترمنځ په وقفه کې، يا د ښوونځي تر رخصتېدو وروسته په فورمو کې وليکئ. مهمه خبره دا ده چې تاسې بايد هره اونۍ د زده کوونکو د پرمختګ د ارزونې فورمه وکاروئ.
تکويني دوره يي ارزونه د ښوونکو له خوا د تکرار په اونيو کې ترسره کېږي. د دې ارزونې پايلې د زده کوونکو د ارزونې په فورمه کې ثبت او د ښوونځيو له مسوولينو سره شريک کېږي.
کله چې ښوونکي د خپلې ارزونې پر مهال داسې زده کوونکي ومومي چې د لوستونو په ځينو برخو يا قابليتونو کې ستونزې لري نو بايد له دغو زده کوونکو سره د مرستې په خاطر رغنده ګامونه او کړنې ترسره کړي. ځينې اصلاحی کړنې او ګامونه د دوامداره ارزنې کتاب په سريزه کې ځای پر ځای شوي دي.

**نجونې، هلکان او د لومړنۍ دورې لوستل**

نجونې او هلکان دواړه بايد له ښوونې ا و روزنې څخه مساوي ګټه واخلي. خو کله کله نجونو او هلکانو سره توپيري چلند کېږي چې دا کار دهغوی د ښوونځي پر پايلو اغېزه کوي. د ښوونکو لپاره دا باوري کول ډېر اهميت لري چې ټول زده کوونکي هره ورځ په ښوونځي کې حاضر وي. کله چې ښوونکي وګوري چې هلکان يا نجونې په کورونو کې ساتل کېږي، مهمه ده چې ښوونکي ښوونځي ته د هغوی راتګ ژر تر ژره باوري کړي. دا کار د زده کوونکو کور ته د ښوونکو په ورتګ او د هغوی والدينو سره د ښوونې او روزنې پر ارزښت د بحث په ترسره کولو سره کېدای شي. د زده کوونکي له والدينو سره پر هغه ستونزو خبرې اترې وکړئ چې هغوی دې ته اړ باسي چې خپل ماشومان ښوونځي ته و نه لېږي. ښوونکي همدارنګه له شورا سره هم خبرې کولای او پر دې ستونزه ورسره خبرې اترې کولای شي. شورا د ټولنې په کچه لاس په کار کېدای شي او دا باوري کولای شي چې نجونې او هلکان دواړه دې هره ورځ ښوونځي ته ولاړ شي. همداراز، شورا د هغو ستونزو په ګوته کولو کې هم مرسته کولای شي چې د والدينو خنډ ګرځي، تر څو خپل هلکان او نجونې ښوونځي ته واستوي او له هغوی سره د دغو ستونزو په هوارۍ کې هم مرسته کولای شي.

**د دريم ټولګي لپاره د سواد د زده کړې وړتياوې (قابليتونه)**

لاندې چوکاټ د سواد د زده کړې هغه قابليتونه ښيي چې تمه کېږي د دريم ټولګي زده کوونکي يې بايد ولري. دغه وړتياوې د سواد زده کړې د تدريس د پنځو عنصرونو (غږپوهنه، د الفبا اصول، روان لوستل، د لغتونو زېرمه او مفهوم اخيستنه) له مخې ډلبندي کېږي. دا په دې چې تاسې وګورئ چې د دوامداره ارزونې په فورمه کې د زده کوونکو ښودل شوي قابليتونه د سواد په زده کړه کې د هغوی له اساسي مهارتونو سره څنګه رابطه لري. په دريم ټولګي کې به زده کوونکي د لوستلو او ليکلو هغو بنسټيزو مهارتونو ودې ته ادامه ورکړي چې په لومړي او دويم ټولګي کې يې ترلاسه کړي دي.

## د الفبې اصول

د الفبې اصولو یا فونیکس کې له غږ سره د توري تړاو، هجا کول او د هجاوو د یو ځای کولو قابلیتونه شامل دي.

### د لوستلو قابلیتونه

زده کوونکي د دې وړتیا لري چې:

١. وښيي چې يو توری له يوه غږ سره سمون لري او كه څنګه؟
٢. د هر توري اړوند ټول غږونه ووايي.
٣. توري له خپل غږ (غږونو) سره ونښلوي.
٤. د عامو کلمو هجاوې (سېلابونه) سره ترکيب کړي.
٥. ګڼ هجايي (سېلابي) کلمې په هجاوو/سېلابونو ووېشي.
٦. د کلمو د پېژندلو لپاره د الفبې پرمختللي عنصرونه وکاروي.
٧. په جمله کې د کلمې معنا او د کلمې ترتیب څخه د ډیکوډینګ هڅو د تایید لپاره استفاده وکړي.
٨. د کلمود جوړښت له مخې ګڼ هجایي کلمې وپېژني.

### د لیکلو قابلیتونه

زده کوونکي د دې وړتیا لري چې:

١. ټول توري سم وليکي.
٢. د ټولګي له کچې سره مناسبې کلمې په٪ ٨٠ سم‌والي سره وليکي او په تدريج سره د هغو كلمو ليكل هم زده کوي چې لازيات پېچلی جوړښت لري.
٣. د غږپوهنې د تګلارې په کارولو سره (په کلمو کې د غږونو اوربدل او د حرکتونو په ګډون د تورو د لیکلو وړتیا) له ٪٩٠ سم‌والي سره کلمې وليکي.
٤. عامې کلمې بې له حرکتونو (زور، زېر او پېښ) وليکي.
٥. له ياده څخه كلمې وليكي.
٦. د ګڼو شکلونو درلودونکو عامو کلمو لیکل پیل کړي.

## روان لوستل

### د لوستلو قابلیتونه

زده کوونکي د دې وړتیا لري چې:

١. له٪٩٥سم‌والي‌سره‌ټول‌تدريس‌شوي‌سمبولونه‌په‌ګوته‌کړي.
٢. هغه کلمې چې عام جوړښت لري او د ټولګي له سويې سره يې برابرې دي او پر هجاوو د وېشلو وړ وي، له ٪٩٠ سم‌والي سره تشخيصول کړي.
٣. له٪ ٩٥ سم والي سره د ټولګي له كچې سره مناسب لنډ پاراګرافونه یا کیسې ولولي (د پاراګرافونو او کیسو اوږدوالی په هر ژبه کې متفاوته وي).
٤. مرتبط متنونه په داسې سرعت سره ولولي چې د عبارت لوستلو له کچې څخه پوره روان لوستلو ته ورسېږي.
٥. د لیکنښو په کارولو سره د جملو د معنا بدلېدل تشخیص کړي (لکه چې يوه بياني جمله په پوښتنه بدلوي).
٦. د كلمو او جملو د لوستلو په وخت کې خپل لحن او د آواز فشار په مناسب ډول وکاروي چې د جملو معنا لا ښه څرګنده شي.

### د لیکلو قابلیتونه

زده کوونکي د دې وړتیا لري چې:

١. يو پاراګراف له مناسبو ليكنښو سره وليكي.
٢. له يوه چمتو شوي چوکاټ څخه په ګټه اخيستنې سره او د کليدي کلمو په کارولو سره يو پاراګراف وليکي چې د لوستل شوې کيسې يا متن محتوا راونغاړي.
٣. د يوه چمتو شوي چوکاټ په كارولو سره خپلو ملګرو يا والدينو يا ښوونکي ته د شخصي پېښو يا نورو موضوع ګانو په اړه يوه ليکنه وليکي.
٤. په کوچنيو ګروپونو کې، خپلې کيسې وليکي چې پيل، منځ او پای ولري.

## د لغتونو زېرمه

| د لوستلو قابليتونه | د ليکلو قابليتونه |
|---|---|
| زده کوونکي د دې وړتيا لري چې:<br>۱. داسې متنونه ولولي چې موضوعات يې ورته ناآشنا وي.<br>۲. په کيسو يا معلوماتي پاراگرافونو کې ورکړل شوي ناآشنا کلمې زده کړي او ويې کاروي.<br>۳. د کلمو د شکل (مورفيم) له مخې له هغو کلمو څخه معنا واخلي چې په متن کې راغلې دي.<br>٤. د موضوع د قرينې له مخې د کلمو معنا استنباط کړي.<br>٥. عامې مترادفې او متضادې کلمې وپېژني.<br>٦. د ټولگي له کچې سره سم په اکاډيميکو (علمي) کلمو باندې پوه شي. | زده کوونکي د دې وړتيا لري چې:<br>۱. کلمې په کټگوريو ووېشي.<br>۲. د کلمو د معناگانو پوهه يې لوړه شي او په وينا او ليکلو کې د کلمو نوې زېرمه وکاروي.<br>۳. د خانه خالي جملو د پوره کولو لپاره د ټولگي له کچې سره برابره د لغتونو نوې زېرمه وکاروي.<br>٤. په ليکلو کې د عامو مترادفو او متضادو کلمو کارول پيل کړي.<br>٥. د اصلي مفاهيمو د ليکلو لپاره د ټولگي له کچې سره برابره د لغتونو نوې زېرمه وکاروي.<br>٦. په ليکلو کې د جملو لپاره عامې ليکنښې کاروي او له دې سره رابښيي چې په کلمو پوهېږي. |

## مفهوم اخيستنه

| د لوستلو قابليتونه | د ليکلو قابليتونه |
|---|---|
| زده کوونکي د دې وړتيا لري چې:<br>• په دې اړه د وړاندوېنې کولو لپاره چې کيسه يا متن به د څه په اړه وي، د کيسې له انځور، عنوان، مهمو کلمو او مخکينۍ پوهې نه گټه واخلي.<br>• د يوه متن تر اورېدلو يا لوستلو وروسته د چا/ څوک، څه شی، کله، چېرته او څرنگه پوښتنې ځواب کړي.<br>• د کيسې د کرکټرونو، پېښو او ځای او زمان په اړه پوښتنو ته ځواب ووايي.<br>• د يوه معلوماتي متن يا د يوې ساده کيسې يا موضوع اصلي مفهوم بيان کړي.<br>• د ټولگي له کچې سره سم يو متن خُلاصه کړي.<br>• د کيسې د معلوماتو له مخې وړاندوينه وکړي چې نور به څه کېږي او بيا گوري چې وړاندوينه يې سمه ده که نه؟<br>• د خپلې مخکينۍ پوهې او په کيسه کې د راغلو معلوماتو له مخې، استنباطي پوښتنو ته ځواب ووايي.<br>• د لوستل شويو معلوماتو يا کيسو نتيجه بيان کړي.<br>• د ځينو مهمو کلمو په بيانولو سره د ټولگي له کچې سره سم متنونه وارزوي.<br>• د لوستلو پر مهال ځای ځای تم شي چې په متن ښه پوه شي، ويې ارزوي او ورته واضح شي (تم کېدل او فکر کول).<br>• د دې لپاره چې په متن ښه پوه شي، ځينې برخې يې له سره لولي.<br>• کله چې د خپل ټولگي په کچه کيسې لولي، د کيسې عنصرونه لکه کرکټرونه او ځای او زمان په نښه کړي. | زده کوونکي د دې وړتيا لري چې:<br>• په متن کې د راغلو معلوماتو په اړه پوښتنې ځواب کړي.<br>• د (۲ – ۳) جملو په ليکلو سره استنباطي پوښتنې ځواب کړي.<br>۱. له يوه چمتو شوي چوکاټ څخه په گټه اخيستنې سره او د کليدي کلمو په کارولو سره يو لنډ پاراگراف وليکي چې د لوستل شوې کيسې يا متن محتوا راونغاړي.<br>• داسې جملې وليکي چې د کيسې يو کرکټر تشريح يا د يوه کرکټر عملونه ارزيابي کړي.<br>• له ورکړل شوي چوکاټ څخه په گټه اخيستنې سره لوستل شوی متن په دوو جملو کې خُلاصه کړي.<br>• د يوه متن د ارزولو په هکله يو څو کليدي کلمې وليکي. |

| | |
|---|---|
| • د خپل ټولګي په کچه د کیسې برخې (پیل، منځ او پای) وپېژني.<br>• د ټولګي له کچې سره سم د متن د جوړښت له مخې د متن پر معنا ځان پوه کړي.<br>• د یوې کیسې له پېښو، کرکټرونو او عملونو سره د خپل ژوند د تجربو رابطه ټینګه کړي.<br>• له خپلې مخکینۍ پوهې څخه کار واخلي چې پر متن ښه پوه شي. | |

**ګرامر**

په دې سطح کې ګرامر په ضمني ډول تدریسېږي. دا په ده معنا دی چې زده کوونکي اړ نه دي چې ګرامري کټګورۍ او اصطلاحات زده کړي. ګرامر د کلمې په کچه او د جملې په کچه تدریسېږي. د کلمې په کچه ګرامر پر هغو مختاړو او وروستاړو تمرکز لري چې عام دي او د کلمو د معنا په پوهېدلو، لوستلو او لیکلو لپاره ارزښت لري. د جملې په کچه ګرامر د متن پر معنا د پوهېدلو او د ښو جملو پر لیکلو تمرکز لري.

| ګرامر د کلمې په کچه | ګرامر د جملې په کچه |
|---|---|
| ۱. مفرد او جمع اسمونه، په ځانګړي ډول بې قاعدې اسمونه | ۱. د پای ټکي او پوښتنې د نښو په کارولو سره د ساده جملې لیکل |
| ۲. مرکب اسمونه | ۲. مستقیم نقل قول او د شارحې (:) کارول |
| ۳. ضمیر او فعل ( د فعل په هکله مورفیم پوهنه) | ۳. ساده تېره زمانه (د حال زمانې په ضد) |
| ٤. مثبت فعلونه/ منفي فعلونه | ٤. امریه (!) |
| ۵. اسمي یا توصیفي عبارت (صفت + اسم) | ۵. کامه (،) او شارحه (:) |
| ٦. مختاړی (بې) + اسم | ٦. ساده راتلونکې زمانه (د حال زمانې په ضد) |
| | ۷. مرکبه جمله |

**څنګه تدریس وکړو؟**

د ښوونکي لارښود د «**څنګه تدریس وکړو؟**» برخه د تدریس ټولو ورځنیو چارو ته یوه عمومي کتنه برابروي چې تاسې به یې د لارښود له مخې د لوستونو د تدریس لپاره کاروئ. زده کوونکو ته د یوه ځانګړي لوست د وړاندې کولو د څرنګوالي تفصیلي جزئیات به په دې عمومي کتنې پسې راځي. دا عمومي کتنه د چاپي مفاهیمو او لیکلو سربېره د لوستلو د تدریس د (۵) عنصرونو (غږپېژندنه، د الفبې اصول، روان لوستل، د لغتونو زېرمه او مفهوم اخیستنه) په شاوخوا څرخېږي.

**د ښوونکي لارښود او درسي کتاب**

د ښوونکي لارښود او درسي کتاب په بشپړه توګه سره مطابقت لري. د دې معنا دا ده چې په درسي کتاب کې هر یو لوست، د ښوونکي لارښود کې تفصیلي تشریح لري.

د ښوونکي لارښود او درسي کتاب دواړو کې سمبولونه شته. دا نښې یا سمبولونه ښیي چې زده کوونکي به څه ډول فعالیت تر سره کوي. د ښوونکي لارښود سمبولونه له درسي کتاب سره مطابقت لري.

| سمبول | تشریح | معنا |
|---|---|---|
|  | ( غوږ) | اورېدل او خبرې کول |
|  | (کتاب) | د متن لوستل |
|  | ( قلم) | لیکل |
|  | (قلم او کتابچه) | توري، کلمې او جملې |
|  | ( مکعب) | د کلمو زېرمه |
|  | (کور) | کورنۍ دنده |
|  | حسن خط | د حسن خط تمرین |
|  | ټولنیزه عاطفي زده کړه | د ټولنیزې عاطفي زده کړې قابلیتونه |

د هرې اونۍ او هرې ورځې لپاره، لوستونه ورته شکلونه لري. د ښوونکي لارښود تاسو ته د درسونو د هرې برخې د تدریس د څرنګوالي په باره کې مشخص معلومات درکوي.

**د ځانګړې زده کړې اړتیاوې شاملول**

**د تعلیمي ضرورتونو درک کول**

د لوستلو او لیکلو د زده کولو لپاره مختلفو مهارتونو ته اړتیا ده. که کوم ماشوم لیک لوست سم نه زده کوي، معنا یې دا نه ده چې هغه نه غواړي دا مهارتونه زده کړي، بلکې دوی به ځانګړې ښوونیزې اړتیاوې ولري. کېدای شي دوی فیزیکي یا سلوکي ستونزې ولري. مثلاً په لیدلو، اورېدلو یا خوځېدلو کې به ناتوانه وي او یا به په دې کې ستونزه ولري چې له نورو سره خپلې اړیکې ټینګې کړي، څوک خپل ملګري کړي او کورنۍ دنده ورسره یوځای ترسره کړي.

**د هغو شاګردانو معلومول چې ځانګړې ښوونیزې اړتیاوې لري:**

هغه شاګردان چې په درسونو کې پخ ګنل کېږي او یا هماغه یو ټولګی بیا له سره وایي (ناکامېږي)، معمولاً اضافي مرستې ته اړتیا لري. کله چې د شاګردانو د ارزونې فورمې ډکېږي، دا معلومېږي چې کوم شاګردان د مهارتونو په خپلولو راوړلو کې پاتې راځي. معلم باید دا معلومه کړي چې څه شی شاګرد نه پرېږدي چې دا مهارتونه ترلاسه کړي.

- شاګرد کومې مهمې ستونزې لري؟
- شاګرد پر تختې او کتاب لیکل شوي شیان ویني؟

•د معلم غږ اورېدلی شي؟
که د کوم شاګرد لاس یا پښه نه وي، یا د سترګو یا د غوږونو ستونزه ولري، معنا يې دا نه ده چې ګواکې د نورو شاګردانو په نسبت ناتوانه دي، بلکې معنا يې دا ده چې معلم باید ورسره مرسته وکړي چې له درسي کتاب او نورو درسي موادو څخه د نورو په شان استفاده وکړای شي.

**د ځانګړو اړتیاوو درلودونکو زده کوونکو سره مرسته کول**

•هغه شاګردان له پامه مه غورځوئ چې کمزوري ښکاري. دا معلومه کړئ چې هغوی څه کولای شي.
•که کوم شاګرد په لیدلو یا اورېدلو کې ستونزه لري، مخکې چوکیو ته يې راولئ چې درنږدې وي.
•له شاګردانو سره په ساده ژبه خبرې وکړئ. په نرمه، آرامه، مهربانه او واضحه غاړه ورسره وغږېږئ.
• د سیمې په لهجه ورسره وغږېږئ چې په لارښوونو سم پوه شي.
•دا تمه به نه لرئ چې ټول شاګردان دې په یوه اندازه مخته لاړ شي. ځینې شاګردان که یوه کلمه هم ولیکي، دا يې بریا ګڼل کېږي.
•هغوی د تکړه شاګردانو څنګ ته کېنوئ چې د صفحې په موندلو او په ګوته د کلماتو ښودلو کې ورسره مرسته وکړي، یا ورته ووایي چې څه باید وکړي.
•هغوی ته د فکر کولو او د درسي فعالیت د بشپړولو لپاره اضافي وخت ورکړئ.
• څومره چې ممکن وي، اساسات ورسره بیا بیا تکرار کړئ.

**له يادو شاګردانو سره د تدریس پر مهال مرستې**

په ټولګي کې ښه تدریس به اړمنو شاګردانو ته ګټه ورسوي.
• درسي مواد (فلش کارتونه، واقعي شیان، عکسونه، موډلونه او لوی رسمونه) وکاروئ.
•د کلیدي کلمو رسمونه پر تخته یا چارټ رسم کړئ.
• د نویو کلمو او نویو غږونو د ښه تدریس لپاره له هم قافیې کلمو او لوبو څخه کار واخلئ.

**د تدریس عیارولو ته اړتیا**

• په ټولګي کې داسې فضا جوړه کړئ چې هر شاګرد وغواړي په فعالیتونو کې برخه واخلي او دا وېره يې په زړه کې نه وي چې که غلط ځواب ورکړي، څوک به ورپورې وخاندي.
• داسې پوښتنې وکړئ چې معلومه شي شاګرد په درس پوه شوی دی که یوازې د نورو په تقلید سره ځواب وايي.
• تکړه شاګرد وهڅوئ چې کله يې خپل کار خلاص کړ، له بل ملګري سره هم مرسته وکړي.
•یو تکړه شاګرد وهڅوئ چې د ټولګیوالو له یوې وړې ډلې سره د درس په بیا لوستلو یا د نورو فعالیتونو په ترسره کولو کې مرسته وکړي.
د لوستلو همدا طریقه او اصول د لوستلو په نورو برخو لکه انتقالي میتود (زه يې ترسره کوم، موږ يې ترسره کوو، تاسې يې ترسره کوئ) بل چا ته لوستل، له بل چا سره لوستل او په یوازې ځان لوستلو کې وکارول شي.
په ابتدايي دوره کې باید د شاګردانو دلچسپي د هغو شیانو په یادولو سره زیاته کړو چې دوی له پخوا پرې پوهېږي.

**لوستل**

د زده کوونکو د کتاب له کیسو او متنونو څخه استفاده وکړئ او د تصویرونو په اړه يې پوښتنې وکړئ. که شاګرد کومه کلمه لوستلی شي، پرېږدئ چې په لوړ آواز يې ولولي. وګورئ چې شاګردانو کتابونه سم نیولي دي که نه او پوه شوي دي چې متنونه له ښي څخه چپ لوري ته لوستل کېږي؟ شاګردان وپوهوئ چې توري او کلمې معناګانې لري او توري د غږونو رسمونه دي.له شاګردانو سره مرسته وکړئ چې کله متن لوستل کېږي، دوی ګوته پرې تېره کړي.

**لیکل**

وګورئ چې شاګردانو پنسل سم نیولی دی او توري يې سم لیکلي دي که نه. د یوه یا دوو تنو انشاء ته ځیر شئ. که دغه هدفونه پوره شوي وو، بیا مخته تلی شئ.

### غوږ نیول او خبرې کول

هغه شاګردان چې ځانګړې ښوونیزې اړتیاوې لري، ممکن د ټولګي مخې ته د غږېدلو زړه ونه لري. دوی ته لاره هواره کړئ چې زړور شي. لومړی دې له خپل څنګ لوري زده کوونکي سره خبرې وکړي، بیا د ټولګیوالو وړې ډلې ته خبرې وکړي او زده کوونکي یو د بل خبرو ته غوږ ونیسي. کله چې ورڅخه پوښتنه کوئ، کافي وخت ورته ورکړئ چې ځواب ووایي. دا تمه به نه لرئ چې ټول متن/ ټوله کیسه درته ووایي. په ساده ځوابونو یې هم وستایئ.

### اصلاحي فعالیتونه

- هر شاګرد له یوه بل شاګرد سره ملګری کړئ چې ورسره مرسته وکړي او د کتاب پیل، د صفحو شمېرې، کلیدي تصویر، او کلمې ورته وښیي.
- ساده کتابونه ورته انتخاب کړئ چې د کتاب استفاده ورته اسانه شي.
- پر تورو او غږونو تمرکز وکړئ. ورته توضیح یې کړئ چې دا توری د دې غږ لیکلی شکل دی. توري په هوا کې رسم کړئ او ویې لیکئ. (دا تمرین د شاګرد له نوم څخه پیل کړئ.)
- داسې تمرین ترسره کړئ چې لومړني توري، هجاوې او غږونه پکې استعمال شي.
- د لیکلو د لومړنیو مهارتونو تمرین ته دوام ورکړئ (یعنی په هوا کې رسمول، پر ځمکه لیکل، پر تورو دړو لیکل، په لاس د تورو لیکل).
- نوې کلمې د تصویرونو په چارټونو کې وښیاست.
- ساده کلمې په فلش کارټونو کې وروښیاست د کارټ پر یو مخ دې تصویر وي او پر بل مخ یې کلمه.
- له شاګردانو څخه وغواړئ چې د خپلو ورځنیو چارو په اړه خبرې وکړي: مثلاً له خوبه پاڅېدل، ښوونځي ته راتلل.
- په لوړ غږ آشنا او هم قافیه کلمې بیا بیا تکرار کړئ.
- په ټولګي کې سالمه رواني فضا رامنځته کړئ.

### د لوستلو متنونه

| | |
|---|---|
| **لومړی او دوهمه برخه** | ۱۱ – ۱۴ جملې<br>۲ – ۱۰ کلمې په یوه جمله کې (د مرکبو جملو په ګډون)<br>د کلمو اوسط: ۹۲ |
| **دریمه او څلورمه برخه** | ۱۲ – ۱۵ جملې<br>۲ – ۱۱ کلمې په یوه جمله کې (د مرکبو جملو په ګډون)<br>د کلمو اوسط: ۱۰۲ |
| **پنځمه او شپږمه برخه** | ۱۳ – ۱۶ جملې<br>۲ – ۱۲ کلمې په یوه جمله کې (د مرکبو جملو په ګډون)<br>د کلمو اوسط: ۱۱۰ |
| **اومه او اتمه برخه** | ۱۴ – ۱۶ جملې<br>۲ – ۱۳ کلمې په یوه جمله کې (د مرکبو جملو په ګډون)<br>د کلمو اوسط: ۱۲۰ |

### د متن ډولونه (ژانرونه)

په دریم ټولګي کې متنونه درې ډوله دي، چې روایتي، شعر او معلوماتي متنونه بلل کېږي. روایتي متنونه هغه کیسې دي چې کرکټرونه، پلاټ (مشخص ځای، زمان)، غوټه (ستونزه) او د غوټې حل لري. دا کیسې د خوند او پند لپاره وي. توضیحي متنونه هغه متنونه دي چې زده کوونکو ته معلومات ورکوي. دغه متنونه بیا پلاټ او نورې کیسه ییزې برخې نه لري. مثلاً د لاسونو پرېمینځل یا د خپل ځان د پاک ساتلو په اړه د معلوماتو ورکول، معلوماتي متنونو کې راځي. زده کوونکي باید معلوماتي متنونه زده کړي او پر معنا یې پوه شي. همداراز، په درسي کتاب او نورو درسونو کې اکثره متنونه په روایتي او ځینې نور یې په معلوماتي بڼه راغلي دي. د توضیحي او روایتي متنونو په لوستلو سره

به زده کوونکي د متنونو دواړو ډولونو د لوستل او پرې پوهېدل زده کړي.

**د رواني رغونې ټولګی**

**د زده کوونکي خوندیتوب**

د ماشومانو او ځوانانو خوندیتوب دا معنا لري چې څوک ور څخه ناوړه ګټه وانه خلي، استثمار یې نه کړي، بې غوري ورته ونه کړي، د ماشوم رواني، احساسي/ عاطفي، سلوکي، اجتماعي، فزیکي، او اقتصادي اړخونو ته توجه وکړي. ښوونکی خپلو زده کوونکو ته د سالمې درسي فضا په برابرولو کې حیاتي نقش لري. د رواني رغونې په ټولګیو کې ښوونکی له زده کوونکوسره مرسته کولی شي چې پرځان باور پیدا کړي، خپل ارزښت وپېژني، ځان قابو کړي، له نورو سره ټولنیزې اړیکې ټینګې کړي، له ټولګیوالو او ښوونکي سره ښه اړیکي وپالي او دا هر څه د زده کوونکي د عمومي وضعیت په ښه کېدو کې مرسته کوي.

**یو هوسا ماشوم یا ځوان دغه ځانګړنې لري**

- په خپل ژوند کې پر ملګرو او مشرانو باور لري او له هغوی سره ځان تړلی بولي
- پر خپل ځان اعتماد او باور لري
- پر ټولنیزو چارو (لکه مرکه، ګډ کار، د ستونزو حل او داسې نور) پاملرنه او تمرکز کوي
- له خپلو ملګرو او تولګیوالو سره مرسته او همکاري کوي
- د خپلې کورنۍ او ټولنې د نورو غړو درناوی کوي
- د کارونو په تر سره کولو باندې ډېر تمرکز کوي او په پوره پام سره یې تر سره کوي
- خپلې ورځنۍ چارې ښې ترسره کولی شي
- خوشحاله وي او د ژوند په خوند پوهېږي
- په زړه کې یې وېره او اندېښنه نه وي.

> **مهم پیغام**
>
> هر څوک د ماشومانو او ځوانانو د هوساینې لپاره جلا تعریف لري. معمولاً د اعتماد، د مثبتو اړیکو، خوندیتوب او ډاډ احساس؛ او همدارنګه د ورځنیو چارو د پر مخ بیولو، له ملګرو، د کورنۍ له غړو، ښوونکو او د ټولنې له نورو غړو سره د مثبتو اړیکو درلودلو وړتیاوې پکې شاملې دي.

**د هوساینې عناصر**

هوساینه دغه پنځه عنصرونه لري:

۱. د کنټرول احساس
۲. د تړاو/ خپلوي احساس
۳. د ځاني ارزښت احساس
٤. مثبتې ټولنیز اړیکې
۵. ذهني/فکري هڅوونه (ذهني پرمختګ)

**۱. د کنټرول احساس**

- کله چې زده کوونکي په ښوونځي کې د کنټرول احساس کوي، نو هغوی:
  - د خوندیتوب او امنیت احساس کوي
  - د ثبات احساس لري
  - پر دې پوهیږي چې کومې هیلې لري او له دوی څخه کومې تمې کیږي
- د کنټرول حس کېدای شي د هغو ماشومانو او ځوانانو لپاره ځانګړی ارزښت ولري چې د بې ځایه کېدو او تاوتریخوالي له امله یې دغه حس زیانمن شوی وي.
- **ښوونکي د کومو فعالیتونو په ترسره کولو سره د کنټرول حس رامنځته کولی شي؟**
- ورځنی مهال وېش ولرئ او له زده کوونکو هم وغواړئ چې دا ډول مهال ویش له ځان سره وساتي.
- مهال وېش عملي کړئ.
- ټولګی هره ورځ په همدې ډول پیل کړئ او همداسې یې ختم کړئ.

- درسي پلان له ځان سره ولرئ او عملي یې کړئ.
- وګورئ چې زده کوونکو د درس هدفونه تر لاسه کړي دي، که نه.

**۲. د تړاو (خپلوۍ) احساس**

ولې مهمه ده چې زده کوونکي خپل تعلیمي ماحول خپل وګڼي او ځان ورپورې تړلی وبولي؟

- کله چې زده کوونکي په ښوونځي کې د خپلوۍ احساس وکړي نو:
  - خپلو ټولګیوالو، ښوونکو او د ښوونځي ټولنې ته درناوی کوي.
  - پر خپلو ټولګیوالو پام کوي او ورسره خواخوږي کوي.
  - پر خپلو ښوونکو اعتماد کوي او خپل یې ګڼي
  - احساس کوي چې په ښوونځي کې منلی شخص دی او نور یې هرکلی کوي.
  - احساس کوي یوازې نه دی، بلکې د یوې ډلې غړی دی.
  - دا شیان په سبب شي چې زده کوونکي په منظم ډول ښوونځي ته راشي (غیر حاضري ونه کړي).
- دغه د خپلوۍ احساس په تېره بیا د هغو زده کوونکو لپاره ډېر مهم دی چې د بحران او جګړو په وجه راکډه شوي وي.
- **د ټولګي په فعالیتونو کې د زده کوونکو د شاملولو له لارې کولی شو د خپلوۍ یا تړاو حس یې راژوندی کړو.**
- د ټولو زده کوونکو د ګډون لپاره، هغوی ته دوه نفري، ګروپي او خپلواک کارونه وسپارئ.
- هغه زده کوونکي چې په ټولګي کې د یوه ځانګړي رول لپاره ټاکل کېږي، د هغوی نقش وخت پر وخت بدل رابدل کړئ.
- پر ټولو زده کوونکو یو شان پام وکړئ.
- زده کوونکو ته وخت ورکړئ چې خپل کار ټولګي ته وړاندې کړي
- د ټولو زده کوونکو کار ټولګي ته وښیئ.
- **د ټول ټولګي په کچه د پوښتنې د مطرح کولو یا پر ټول ټولګي د غږ کولو تخنیک:**
- که ښوونکی د پوښتنې هغه تخنیکونه وکاروي چې ټولو زده کوونکو ته خطاب کوي، نو د زده کوونکو لپاره په ټولګي کې د ځواب ورکولو فرصت زیاتېږي. دا کار زده کوونکي پوهوي چې په فعالیتونو کې د دوی برخه اخیستلو ته اهمیت ورکول کیږي، او دا چې دوی د ټولګي د ټولنې برخه ګڼل کېږي.
- دا کار له زده کوونکو سره مرسته کوي چې د خپلوۍ احساس ولري.

**۳. د ځاني ارزښت احساس**

کله چې په ښوونځي کې زده کوونکي د ځان ارزښت احساس کړي، نو: ځان ورته غښتلی او باوري ښکاري.

- ځان ورته په چارو کې بریالی ښکاري.
- له خپل ځانه به راضي وي او پر ځان به باور ولري
- پر ځان او خپله توانایي ویاړي.
- سبا ته هیله من وي او احساس کوي چې خپل راتلونکی به پخپله جوړوي.

دا مهمه ده چې په تېره بیا په هغو ماشومانو کې د خپل ارزښت احساس پیدا کړو چې د ناخوالو، جګړو او نورو مصیبتونو په وجه ځپل شوي دي او ځانونه ورته کمزوري ښکاري.

**څنګه په زده کوونکو کې د برترۍ او ښه والي احساس پیدا کړو:**

- زده کوونکي مه سپکوئ.
- له ټولو زده کوونکوسره ښه چلند وکړئ.
- زده کوونکي مه وهئ.
- زده کوونکي وهڅوئ چې د ټولګي په فعالیتونو کې برخه واخلي.
- زده کوونکي مه ګواښئ.
- زده کوونکو ته په احترام قایل شئ.
- د زده کوونکو دندې او نومونه واخلئ او نورو ته یې وښیئ. (مثلاً: احمد به د «قلم» د کلمې توري راته ووایي).
- مقررات او انضباط پر ټولو زده کوونکو یو ډول عملي کړئ.
- زده کوونکي وهڅوئ چې پوښتنې وکړي.
- زده کوونکي وستایئ.

- د زده کوونکو ځایونه بدل رابدل کړئ.
- وګورئ چې درس او فعالیتونه د زده کوونکو له سویې سره برابر دي که نه.

**۴. د مثبتو ټولنیزو اړیکو وده**

- کله چې زده کوونکي په خپلو منځو کې او له خپل ښوونکي سره ښې اړیکې وپالي نو:
  - مثبت اجتماعي مهارت ترلاسه کوي.
  - ځان ورته په دې ارزښتمن ښکاري، چې نور یې خبرو ته غوږ نیسي، پام ورته کوي او ستایل کېږي.
  - رواني ملاتړ احساسوي.
  - پر خپل ځان باور یې زیاتېږي.
  - د باور کولو احساس یې غښتلی کېږي.
- له زده کوونکو او ښوونکي سره د ښو روابطو جوړول د هغو ماشومانو لپاره چې ستونزو ځپلي وي، لا زیات اهمیت لري.
  - په سختو او بیړنیو حالاتو کې له مشرانو، کورنیو او ټولنې سره د ماشومانو اړیکې یو څه خرابېږي چې باید پام ورته وشي. د دغو روابطو په بیا جوړولو کې د ماشومانو لاس نیوی ضروري دی چې په ماشومانو کې د اعتماد، خوندیتوب او رواني امنیت احساس پیدا او پیاوړی کېږي.
  - کله چې زده کوونکو په خپلو کې مثبت اړیکي پالي، د دوی اجتماعي مهارت پیاوړی کېږي، خوشحالېږي، له نورو سره خواخوږي پیدا کوي او زغم یې زیاتېږي.

**ښوونکی څنګه کولای شي چې د زده کوونکو تر منځ مثبتو اړیکو ته وده ورکړي؟**

- ګروپي کار وکړئ.
- زده کوونکو ته وخت ورکړئ چې له یو بل سره لوبې وکړي.
- دې ته پام وکړئ چې د زده کوونکود اداره کولو لپاره قوانین شته.
- زده کوونکو ته د خبرو وخت ورکړئ چې یو بل سره وپېژني.
- له زده کوونکو سره په درنښت وچلېږئ.
- ګروپی تمثیلونه تر سره کړي.
- ډله ییز فعالیتونه زده کوونکو ته مثبته انرژي ورکوي.
- ډله ییز بحث او د نظرونو د تبادلې زمینه برابره کړئ.

**۵. د زده کړې هڅوونکی چاپېریال**

- د زده کړې لپاره زده کوونکي باید ښه احساس ولري. همدا رانګه کله چې زده کوونکي درس ښه زده کړي، نو احساس به یې ښه شي.
- کله چې زده کوونکي ته ښکاره شي چې درس ښه زده کوي او له زده کړې خوند اخلي، نو:
  - پر ځان باور یې زیاتېږي.
  - راتلونکي ته هیله من کېږي.
  - احساسوي چې په ښوونځي کې له وخت څخه سمه استفاده کوي او ښوونځی د دوی پر ژوند مثبت اثر ښندي.
- ورته معلومېږي چې هرڅوک چې په درسي فعالیتونو کې برخه واخلي، درس به یې ښه زده شي.
- هرڅوک درسونه په بېله طریقه ښه زده کولی شي، نو که په مختلفو درسي فعالیتونو کې برخه واخلي، درس به یې ښه زده شي او بیا به له زده کړې څخه خوند اخلي.

ښوونکی باید د تدریس داسې بېلابېلې لارې چارې پلان او عملي کړي چې هره ورځ په کې د زده کوونکو درسي فعالیتونه شامل وي او ټول زده کوونکي پکې ونډه ولري.

- یوه لاره یې دا ده چې ښوونکی مختلفې پوښتنې وکړي او زده کوونکي په درسي فعالیت کې راګډ کړي.
- کله چې زده کوونکي ګوري چې درسونه یې ښه زده کېږي او په درسي فعالیتونو کې هم برخه اخلي، نو هوسا کېږي.

**د زده کړې هڅوونکی چاپېریال د زده کوونکو پر هوساینې څه اغېز ښندي؟**

په درسي فعالیتونو کې فعال زده کوونکي دغه ځانګړنې لري:

- درس او زده کړې ته لېوال وي.
- ټولګي ته په منظم ډول راځي
- له نورو زده کوونکو سره مرسته او ښه چلند کوي.
- د پوښتنې او تجربه کولو خطر پر ځان مني.
- د ټولګي په ټولو فعالیتونو کې برخه اخلي او خپله کورنۍ دنده ترسره کوي.
- ښه عادتونه لري او د نورو درناوي کوي.
- د ښوونکي خبرو ته ښه غوږ نیسي او پوره پام ورته کوي.

**غیرفعال زده کوونکي**

هغه زده کوونکي چې په درسي فعالیتونو کې برخه نه اخلي لاندې ځانګړتیاوې لري:

- په ټولګي کې ستړې ښکاري.
- ټولګي ته چمتو او منظم نه راځي.
- خپل ټولګیوال او ملګري اخلالوي او له هغوی سره مرسته نه کوي.
- د ټولګي په فعالیتونو کې ونډه نه اخلي او ټولګی اخلالوي.
- له نورو سره ښه چلند نه کوي.
- په ټولګي کې درس ته غوږ نه نیسي او درس ته پام نه کوي.

**د زده کوونکي د هوساینې چوکاټ**

په یوه مناسب ښوونیز چاپېریال کې هوسا زده کوونکي دغه کارونه ترسره کوي:

| د زده‌کوونکي هوساینې عناصر | د ښې هوساینې په وخت کې د زده کوونکو د فعالیتونو بېلګې دا دي: |
|---|---|
| د کنټرول احساس لرل | وخت پېژندل او د مهال ویش له مخې کار ترسره کول، د کورنۍ دندي سرته رسول، درس ویل او کوښښ کول، درناوی کول، غوږ نیول، په درسي فعالیتونو کې برخه اخیستل.... |
| د خپلوۍ یا تړاو احساس لرل | یوه بل ته احترام کول، له نورو سره ښه چلند او مثبتې اړیکې درلودل، په منظم ډول ټولګي ته حاضرېدل، ښوونکو او خپلو ملګرو ته درناوی، له خپلو ټولګیوالو سره یوځای کار کول او له هغوی سره مرسته کول، ټولګیوال د هغوی په نومونو بلل، د ښو تکړه زده کوونکو په ډلو کې شاملېدل، ټولګي خپل ګڼل، په ډله ییزو کارونو کې برخه اخیستل، د ټولګي د مقرراتو پېژندل او عملي کول، له خپلو ټولګیوالو او ملګرو سره سټري مه شي کول او هغوی ته ښه راغلاست ویل، د ټولګي په فعالیتونو کې د برخې اخیستولو پرمهال د ویاړ او خوښۍ احساس کول .... |
| د ځاني ارزښت احساس لرل | له نورو سره د خپلو نظرونو شریکول، له نورو سره مرسته کول، په ډله ییزو فعالیتونو کې ګډون کول، په خپل نفس اعتماد او باور درلودل، راتلونکې ته هیله مندي، په ټولګي کې پوښتنې کول او د ښوونکو پوښتنو ته ځواب ورکول، د درس په هدفونو ځان پوهول او لاسته راوړل یې .... |
| د مثبتو ټولنیزو اړیکو پیاوړي کول | په ټولګي کې ښه ملګري لرل، له خپلو ټولګیوالو سره په درسونو کې مرسته کول، له خپلو ټولګیوالو او ملګرو څخه مرسته غوښتل، له خپلو والدینو او د کورنۍ غړو سره مرسته کول، له ښوونکي څخه د خپلو ستونزو د هوارۍ په اړه پوښتنه کول، په ډله ییزو کارونو کې برخه اخیستل، لاسي کارونه تر سره کول، له ټولګیوالو، ښوونکو، مشرانو، ګاونډیانو او د کورنۍ له غړو سره مثبتې اړیکې درلودل .... |
| د زده کړې هڅوونکي چاپیریال را منځته کول | د ذهني ودې لپاره د مناسب چاپېریال درلودل، له نورو سره ښه چلند کول، د ټولګي په فعالیتونو کې په ګډون سره د خوښۍ او ارامتیا احساس کول؛ لکه (روزنیزې لوبې کول، ګروپي کارونه کول، رسامي کول، د کیسو، د هېواد پالنې ترانو او شعرونو لوستل...)، په ټولګي کې د خپل احساس بیانول، تعلیمي پرمختګ درلودل، د زده کړې قابلیت او ملاتړ درلودل |

## ټولنیزه - عاطفي زده کړه

اجتماعي عاطفي مهارتونه هغه شناختي، عاطفي او ادراکي مهارتونه دي چې له هر چا سره مرسته کوي چې په ژوند کې بریالی شي . ټول انسانان (ماشومان او لویان) په دې مهارتونو سره کولی شي معلومات بې له دې چې ګډوډ شي، تنظیم کړي، له خپلې حافظې کار واخلي، خپل احساسات او عواطف کنټرول کړي، کار ته دوام ورکړي، ستونزې حل کړي او له نورو سره ښې اړیکې ټینګې کړي.

د زده کوونکو په درسي کتاب کې د ټولنیزو عاطفي مهارتونو د روزلو لپاره بېلابېل فعالیتونه، پوښتنې او متنونه راغلي دي چې ښوونکی د دې مهارتونو په انتقال کې مهم نقش لرلی شي. د ټولنیزو – عاطفي مهارتونو پنځه اساسي عناصر به په تفصیل سره تشریح شي.

## ټولنیز - عاطفي مهارتونه څه اهمیت لري؟

ټولنیز - عاطفي مهارتونه ماشومانو او لویانو ته هغه مهم اسباب او لارې چارې برابروي چې په خپل ژوند کې بریالي واوسي او ښه پرمختګ وکړي. دغه مهارتونه په تېره بیا د هغو ماشومانو لپاره چې له ناخوالو لکه فقر، تاوتریخوالي، کډوالۍ او بې ځایه کېدو سره مخ شوي وي، ډېر مهم دي. ناخوالې تل د ماشومانو پر هوساینې او پرمختګ منفي اغیزه کوي. ټولنیز – عاطفي مهارتونه ماشومانو ته هغه اسباب او لارې چارې برابروي چې پر خپل درس تمرکز وکړي، احساسات کنټرول کړي، له نورو سره مناسب متقابل عمل وکړي، د فشار او سختیو په مقابل کې ودرېږي او خپل ځان بریالیتوب ته ورسوي.

## ښنګه کولای شو ټولنیز - عاطفي مهارتونه په سمه توګه زده کوونکو ته وښیيو؟

څېړنو ښودلې ده چې په بېلابېلو لارو چارو د ټولنیزو - عاطفي مهارتونو زده کول خورا ګټور وي، خو تل باید له ښو اړیکو او ځانګړې پاملرنو سره مل وي.

۱. د ټولنیزو - عاطفي مهارتونو روښانه لارښوونه: دا لارښوونه باید مستقیمه وي او په روښانه، متمرکز او متداوم ډول ترسره شي.

۲. په ټولو تعلیمي ساحو کې د ټولنیزو - عاطفي مهارتونو تدریس په پام کې نیول. په ټولو ورځنیو پیداګوژیکي او صنفي فعالیتونو کې د ټولنیزو – عاطفي مهارتونو ورښوول باید تقویه شي.

۳. د ابتکاري او تخلیقي فعالیتونو له لارې د ټولنیزو - عاطفي زده کړو عملي کول، مثلاً په ټولګي کې د هغو لوبو او فعالیتونو تر سره کول چې په مستقیم ډول تدریس شوي، عاطفي مهارتونه تقویه کوي.

٤. په دې کار کې د کورنیو او ټولنې شاملول: میندو پلرونو او کورنیو ته دې د ټولنیزو – عاطفي مهارتونو په باره کې معلومات ورکړل شي او هغوی دې په دې پروسه کې شریک کړای شي.

## د ټولنیزو - عاطفي مهارتونو محتویات څه دي؟

په اجتماعي – عاطفي مهارتونو کې دغه برخې شاملې دي:

۱. د زده کوونکو ذهن وده کوي چې له دې سره به دوی په ښوونځي او ژوند کې بریالي شي. (ذهني وده).

۲. د زده کوونکو د عاطفي وړتیاوو او پوهې وده چې خپل احساسات او عواطف وپېژني او کنټرول یې کړي( د احساساتو او عواطفو کنټرول)

۳. زده کوونکي به له نورو سره د اړیکو په جوړولو کې تکړه شي. ملګري به پیدا کړي، خپل احساسات به کنټرول کړای شي او له منفي عکس العملونو څخه به ډډه وکړي (مثبتې ټولنېزې اړیکې)

٤. د شخړو او منازعاتو حل؛ زده کوونکي به دا زده کړي چې ښنګه اختلافونه او شخړې په مناسبه او معقوله توګه حل کړي. (د شخړو او اختلافونو د هواري مهارتونه)

۵. د استقامت او مبارزې مهارت؛ زده کوونکي به زده کړي چې د ځان لپاره هدفونه وټاکي او په سختو او ببړنیو شرایطو کې هم له کار او مبارزې لاس وانه خلي او مثبته نتیجه ترلاسه کړي.

**د ټولنيزو - عاطفي زده کړې د مفاهيمو او بېلګو لنډ جدول**

| وړتياوې | تعريف | بېلګې |
|---|---|---|
| ذ هني وده | د مهارتونو هغه مجموعه ده چې راسره مرسته کوي چې فکري تمرکز ولرو، لاربښوونې په ياد وساتو، په عين وخت کې ګڼ کارونه داسې تنظيم کړو چې په ټولو پسې ورسېږو، د خپل نړدې او لرې راتلونکې لپاره پلان جوړ کړو، منفي فکرونه له ذهنه وباسو او خپل احساسات او هيجان قابو کړو. | د غوږ نيولو مهارتونه، فکري تمرکز، لاربښوونو ته پام کول، د يوه کار د پړاوونو او د معلوماتو منطقي تنظيم، او له حافظې څخه کار اخيستل. |
| د کنټرول احساس | د مهارتونو هغه ټولګه ده چې راسره مرسته کوي چې خپل احساسات او عواطف درک کړو، ويې پېژنو او کنټرول يې کړو. د کنټرول احساس موږ ته هغه اسباب او لارې چارې رابښيي چې د خپلو عواطفو په اړه وړاندوينه وکړو او کنټرول يې کړو. | د احساساتو او عواطفو پېژندل، د احساساتو او عواطفو وړاندوينه، د احساساتو کنټرول لکه: ژوره ساه اخيستل، د عددونو شمېرل. |
| مثبت ټولنيز مهارتونه | د مهارتونو هغه ټولګه ده چې رابښيي، څنګه د نورو احساسات او سلوک درک کړو او له دې لارې ورسره ښه اړيکې وپالو. په دې سره به ملګرتيا جوړه شي او ستونزې به ختمې شي. | د نورو د احساساتو درک کول او منل، د زړه سوي او ترحم زياتېدل، او په ډله‌ييزو فعاليتونو کې برخه اخيستل. |
| د شخړې د هوارولو مهارتونه | دغه مهارتونه راسره مرسته کوي چې شخړې او ستونزې له رامنځته کېدو سره سم، په مثبت او منطقي ډول هوارې کړو. دا ډول مهارتونه پر خلکو د شخړو اغېزه کموي او مثبتې نتيجې رامنځته کوي. | د ستونزو پېژندل او په ګوته کول، شخړو ته د حل لارو پيدا کول او د شخړې د حل لارو سم عملي کول. |
| هڅه او استقامت | د مهارتونو دغه مجموعه موږ ته دا وړتيا راکوي چې د ستونزو او ننګونو پر وړاندې ودرېږو او د خپلو موخو پر لورې پياوړې او کلک ګامونه پورته کړو. د دې مهارتونو لاسته راوړل رابښيي چې د زده کړې ټوله دوره ډېر زيار او کوښښ غواړي. خپل هدف ته په اسانۍ نه شو رسېدلی نو بايد ورته ټينګ شو او د ستونزو د حل لپاره له نورو څخه مرسته وغواړو. | د تصميم نيولو له مهارتونو څخه ګټه اخيستل،<br>د هدف ټاکل او تنظيمول، د خپل هويت تثبيتول. هڅه او هلې ځلې کول.<br>- له نورو څخه مرسته غوښتل. |

## حسن خط

**د خط ارزښت:** خط د شخصي او ټولنیز ژوند او همدارنګه د علومو او تکنالوژۍ په پرمختګ او پراختیا کې مهم او ارزښتناک رول لري. په یقین سره د علومو او تکنالوژۍ پر مختګ او پراختیا چې د نني انسان په برخه شوې ده، د خط د اختراع او کارونې له برکته ده. لکه چې لوی خدای (ج) په قرآن کریم کې فرمایي:( **اقْرَأْ بِاسْمِ رَبِّكَ الَّذِي خَلَقَ* خَلَقَ الْإِنْسَانَ مِنْ عَلَقٍ * اقْرَأْ وَرَبُّكَ الْأَكْرَمُ * الَّذِي عَلَّمَ بِالْقَلَمِ * عَلَّمَ الْإِنْسَانَ مَا لَمْ يَعْلَمْ** ) ژباړه: (ولوله، د خپل پروردګار په نامه* چې انسان یې له یوه ځاځکي وینې پیدا کړی* ولوله په نامه د پروردګار چې کریم دی* هغه چې علم یې د قلم په واسطه ور زده کړ* په هغه څه چې انسان پرې نه پوهیده*)

**د خط عمومي قواعد:** په دې پوهېږو چې ټول هغه خطونه چې عربي رسم الخط لري په یوه اصل او ریښه پورې تړلي دي، دغه ریښه او اصل د الفبې توري دي چې دې تورو له هندسي شکلونو او له هغو شکلونو څخه چې په طبیعت کې موجود دي د یوه داسې پیکر په شان چې په بېلابېلو ټولنو کې ډول ډول لیکونه موجود دي، الهام اخیستی دی. له همدې امله کولای شو ټول د یوې عمومي او کلي قاعدې لاندې برسي کړو، دا ځکه چې ټول په اصل او ریښه کې سره شریک دي.

**عمومي موخه:** د حسن خط مضمون د تدریس موخه دا ده چې زده کوونکي د نسخ خط د خطاطۍ او ښکلي لیکلو له طرز، اصولو او قواعدو سره آشنا شي او ښه یې زده کړي او په ورځني ژوند کې ورڅخه عملاً ګټه واخلي.

**د دریم ټولګي د حسن خط د مضمون د زده کړې موخې:**

- زده کوونکي د حسن خط له وسایلو، لکه: مرکب (رنګ) «د ښکلي لیکلو لپاره ځانګړي مواد دي چې په دوه ډوله (وچ او لانده) په بازار کې موندل کېږي»، نی قلم او یا (پنسل او خودکار) څخه په سمه توګه کار واخلي.
- زده کوونکي دې د څو توري لرونکې کلمې او جملې په ښکلې بڼه په نسخ خط سر خطاطي کړي.
- زده کوونکي دې د نسخ خط کلمې او جملې د کرسي خط پر مخ په سمه توګه ولیکي.
- زده کوونکي دې په کلمو او جملو کې د تورو ځایونه او جهتونه په پام کې ونیسي.
- زده کوونکي دې کلمې او جملې په نسخ خط او د خطاطۍ د اصولو او قواعدو په پام کې نیولو سره په ښکلې بڼه ولیکې.

**د دریم ټولګي د حسن خط میتودولوژي:**

په دریم ټولګي کې د حسن خط مضمون د تدریس لپاره له هماغه میتودولوژۍ څخه ګټه اخیستل کېږي چې د نورو فعالیتونو له پاره مو یاده کړې ده. د « زه یې تر سره کوم» درسي فعالیتونه زیاتره د ښوونکي له خوا تر سره کېږي، د «موږ یې تر سره کوو» درسي فعالیتونه ښوونکي او زده کوونکي په ګډه ترسره کوي، د « تاسو یې تر سره کوئ» فعالیتونه زیاتره د زده کوونکو له خوا تر سره کېږي. د دې میتودولوژي په کارولو سره ښوونکي لومړی زده کوونکو ته د تدریس اړین فعالیتونه تر سره کوي او بیا په تدریجي توګه د تدریس او زده کړې فعالیتونه له ښوونکي څخه زده کوونکو ته لیږدول کېږي. دا له زده کوونکو سره مرسته کوي چې سمه زده کړه وکړي او لازم معلومات او قابلیتونه تر لاسه کړي.

| زه يې تر سره کوم | موږ يې تر سره کوو | تا سو يې تر سره کوئ |
| --- | --- | --- |
| - ښوونکي له زده کوونکو څخه غواړي چې د حسن خط مضمون د اړونده لوست تمرين د مشق او تمرين په کتاب کې را واړوي.<br>- ښوونکي له څو زده کوونکو څخه غواړي چې د تمرين کتاب له اړوند لوست څخه لومړی کلمه يا جمله ولولي. زد ه کوونکي د ( علم) کلمه لولي.<br>ښوونکی لومړی د تختې پر مخ د کرسي خط رسم کوي.<br>- ښوونکی د کرسي خط پر مخ د ( علم) کلمه ليکي.<br><br>- ښوونکي زده کوونکو ته د (علم) په کلمه کې د تورو د ليکلو د ځای او جهت په باره کې چې د کرسي خط پر مخ، پورته او يا کښته واقع دي، توضيحات ورکوي.<br>- ښوونکی زده کوونکو ته روښانه کوي چې په هره کلمه کې کېدای شي د کلمې ځينې توري د کرسي خط پر مخ، ځينې توري د کرسي خط له پاسه او ځينې توري بيا د کرسي خط لاندې راشي.<br>- ښوونکی زده کوونکو ته لارښوونه کوي چې د مشق او تمرين په کتابونو کې د کلمې د تورو د ليکلو لوری په ګوتو او يا پنسل سره وښاري او وليکي.<br>- ښوونکی زده کوونکو ته وايي چې د مشق او تمرين په کتاب کې د رنګ او نی قلم په کارولو سره د ( قلم) کلمه د کرسي خط پر مخ وليکي.<br>- زده کوونکي د تمرين په کتاب کې د کلمو او جملو ليکل تمرين کوي او ښوونکي له هغو زده کوونکو سره چې ستونزې لري، مرسته کوي . | - ښوونکي له زده کوونکو څخه غواړي چې د حسن خط مضمون د اړونده لوست تمرين د مشق او تمرين په کتاب کې را واړوي.<br>- ښوونکي له زده کوونکو څخه غواړي چې د تمرين له کتاب څخه د اړونده لوست لومړی کلمه يا جلمه ولولي.<br>- ښوونکی زده کوونکو ته وايي چې زه کلمه يا جمله د کرسي خط پر مخ ليکم تاسو را ته ووايئ چې د کلمې او يا جملې توري د کرسي خط په کوم ځای کې او په کوم لوري ليکل کېږي.<br>- زده کوونکي د تمرين په کتابونو د کرسي خط پر مخ د کلمو او جملو تمرين کوي او د هر توري موقعيت او د ليکلو لوري ته پام کوي.<br>- ښوونکی د زده کوونکو کار ښاري او له هغو زده کوونکو سره مرسته کوي چې اړتيا لري. | - ښوونکي له زده کوونکو څخه غواړي چې د حسن خط مضمون د اړونده لوست تمرين د مشق او تمرين په کتاب کې را واړوي.<br>- ښوونکی له زده کوونکو څخه غواړي چې د مشق او تمرين په کتابونو کې د اړونده لوست کلمې او يا جملې د کرسي خط پر مخ تمرين کړي.<br>- زده کوونکو ته چې د کرسي خط پر مخ د کلمو د تورو د ځايونو او د ليکلو د لوري په پام کې نيولو سره کلمې خطاطي کړي.<br>- زده کوونکي د ښوونکي له لارښونو سره سم د مشق او تمرين په کتابونو کې کلمې خطاطي کوي.<br>- ښوونکي په ټولګي کې د زده کوونکو کار ښاري او د اړتيا په وخت کې ورسره مرسته کوي. |

**يادونه:**

١. محترم ښوونکي دي د جملو د خطاطۍ مشق او تمرين لپاره کټ مټ پورتني ټول مراحل چې د تورو او کلمو د خطاطۍ د مشق او تمرين لپاره تشريح شول، په پام کې ونيسي.

٢. زده کوونکي دي د حسن خط په مضمون کې د تورو، کلمو او جملو د خطاطۍ د مشق او تمرين په وخت کې بايد له نی قلم او مرکب (رنګ) څخه کار واخلي.

٣. د ښکلي خط ليکلو له پاره په داسي ځای کې تمرين وکړئ چې مناسبه رڼا ولري، همدا شان سترګې مو بايد له کاغذ څخه شاوخوا (٣٠) سانتي متره لرې وي.

**د لوستلو مرستندويه موادو د کارولو لارښود:**

د لوستلو مرستندويه مواد د زده کړې هغه توکي دي چې د ټولګي او د زده کوونکو د سويې پر بنسټ جوړ شوي دي تر څو د هغوی د لوستلو مهارتونه پياوړي کړي. د لوستلو مرستندويه مواد د زده کوونکو د لوستلومهارتونو ته وده ورکوي، هغوی لوستلو ته هڅوي او همدارنګه په هغوی کې د لوستلو روحيه پياوړې کوي.

ښوونکی دي په ټولګي کې د لوستلو مرستندويه مواد د لاندې لارښونو سره سم وکاروي تر څو له دې توکو څخه سمه ګټه پورته شي او د زده کوونکو د لوستلو مهارتونه پياوړي شي.

**الف: د ټولګي د کتابون تنظیمول**

۱. ښوونکي دې د لوستلو مرستندویه کتابونه د کتابتون په نوم، لیبل او مهر سره، په ننبه کړي.
۲. ښوونکي دې د لوستلو مرستندویه کتابونه د ټولګي، سمیستر، سویې او اونۍ پر بنسټ تنظیم کړي.
۳. ښوونکي دې د لوستلو مرستندویه ورته کتابونه د عنوان یا موضوع پر اساس هم تنظیم کړئ.
٤. ښوونکي دې د لوستلو مرستندویه کتابونه د لاندې نمونوي فورمې په څېر لست او ثبت کړي.

ټولګی: دریم د ټولګي د کتابتون نوم: غازي امان الله خان نېټه: ۱۰/۹/۱۳۹۸

| شمېره | د کتاب نوم | د کتاب موضوع | لیکونکی | تعداد |
|---|---|---|---|---|
| ۱ | ناپاک خواړه | روغتیا | امین الله نژند | ۲۰ |
| ۲ | | | | |

۵.ښوونکي دې د لوستلو مرستندویه کتابونو باکس یا الماری په ټولګي کې په داسې ځای کې کېږدي چې ټولو زده کوونکو ته د لیدو وړ، خوندي او د لاسرسی وړ وي.
٦.ښوونکی باید د درسی ساعت په پای کې د ټولګي کتابتون (د لوستلو د مرستندویه کتابونو پلاستیکی باکس) په یوه خوندي ځای لکه: د ښوونځي کتابتون، د ښوونځي اداره او یا په بل هر خوندي ځای کې کېږدي او د بل درسی ساعت په پیل کې له هغه ځای څخه یې راواخلي او ټولګي ته یې له ځان سره یوسي.
۷.کله چې ښوونکي د لوستلو مرستندویه کتابونه زده کوونکو ته د لوستلو لپاره ویشي، هغوی دې د لاندې نمونه وي فورمې په څېر، راجستر کړي.

ټولګی:________ د ټولګي د کتابتون نوم:________ کال:________ اونی:________

| شمېره | ناپاک خواړه | ټولګی | د اخیستلو نېټه | د سپارلو نېټه | لا سلیک / د ګوتې نښه | د ګټې اخیستونکي نوم | | ملاحظات |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| | | | | | | زده کوونکی | نورګټه اخیستونکی | |
| ۱ | ناپاک خواړه | دریم | ۱٦/۱۰/۱۳۹۸ | ۲۱/۱۰/۱۳۹۸ | | ثریا | | |
| ۲ | ناپاک خواړه | دریم | ۱٦/۱۰/۱۳۹۸ | ۲۱/۱۰/۱۳۹۸ | | غیاث | | |

**ب: د لوستلو د مرستندویه کتابونو کارول**

۱.د لوستلو د مرستندویه کتابونو د کمښت په صورت کې دې ښوونکي زده کوونکي د کتابونو د شمېر پر اساس په ډلو وویشي او هرې ډلې ته دې د اونۍ د ورځو په جریان کې په نوبت سره کتابونه د لوستلو لپاره ورکړي چې په دې توګه به ټول زده کوونکی وکولای شي د صنف، سمیستر، سویې او اونۍ اړونده کتابونه ولولي.
۲. ښوونکي دې زده کوونکو ته لارښوونه وکړي چې د لوستلو مرستندویه کتابونه په کورونو کې ولولي، سم ساتلو ته یې دې پام وکړي چې خراب نه شي او په ټاکلي وخت یې بېرته ښوونکی ته وسپاري.
۳. ښوونکي دې د هرې اونۍ په تکراري ورځو ( پنځمه او شپږمه ورځ) کې د متن له بیا لوستلو څخه وروسته له څو زده کوونکو څخه د لوستل شوي کتاب په هکله ځینې پوښتنې وکړي، لکه:
- په کتاب کې مو څه ولوستل؟
- په کتاب کې مو څه شي خوښ شول او څه شي مو د خوښې وړ نه و، او ولې؟
- د کتاب په لوستلو کې له څه ډول ستونزو سره مخ شوئ؟
- آیا تاسو په خپل ژوند کې له داسې پېښو سره مخ شوي یاست، بیان یې کړي؟

**یادښت:** ښوونکی دې هغو ماشومان ته چې د لوستلو مرستندویه کتاب په لوستلو کی ستونزي لري او یا هم ورته آسانه وي نو، یوه سویه یا اونۍ ټیټ کتاب ورکړی چی ویې لولي. دا مهه ده چې زده کونکي باید د خپلې سویې سره سم او مناسب کتاب ولولي او په دې سره یې د لوستلو مهارت اوچت شي. خو که چیری ماشومانو ته د لوستلو د مرستندویه کتاب متن اسانه اوساده وي تاسو ورته یوه سویه جګ کتاب ورکړئ.

## لومړۍ برخه: عمومي کتنه:　　اصلي موضوع: ښوونځی

**د لوستلو او لیکلو موخې:**

زده کوونکي به د دې برخې تر پایه دا وړتیا ترلاسه کړي چې:

۱. له٪ ۹۵ سموالي سره د تکرار شوو تورو لوستل او لیکل زده کړي.
۲. د مفرد او جمع کلمو مفهوم درک کړي او عملي یې کړي.
۳. د مهمو کلمو په معناوو باندې پوه شي.
۴. له انځور، سرلیک، مهمو کلمو او مخکینۍ پوهې څخه په ګټه اخیستنې سره وړاندوینه وکړي، چې کیسه یا متن به د څه په هکله وي.
۵. د لوستلو په بهیر کې د پوهې او وضاحت د ارزولو لپاره تم شي.
۶. د یوې ساده کیسې یا د یوه معلوماتي متن اصلي مفهوم بیان کړي.
۷. کلمې ډلبندي کړي.
۸. له٪۸۰ سموالي سره د لوستل شوي متن پوښتنې ځواب کړي.
۹. کلمې صحیح ولیکلی شي.
۱۰. د ورکړل شوي چوکاټ او مهمو کلمو په کارولو سره د لارښوونو په مرسته یو لنډ پاراګراف ولیکي.
۱۱. زده کوونکي په نسخ خط سره مفردي او جمع کلمې د کرسۍ خط پر مخ په صحیح او ښکلي بڼه ولیکي.

**د حسن خط فعالیت (۳۵دقیقې)**



ښوونکي دې د لارښود د مقدمې د (۲۲- ۲۳) مخونو د لارښوونو سره سم مفردې او جمع کلمې تدریس کړي.

**حسن خط ارزونه او کورنۍ دنده(۵ دقیقې)**

۱- له زده کوونکو څخه دې په کرسۍ خط باندې له پاسه د کلمو د حروفو د ښایسته لیکلو په اړه پوښتنه وشي.
۲- زده کوونکي دې له کړکي(نې قلم) یا پنسل قلم سره مفردې او جمع کلمې په کورونو کې تمرین کړي.

**د ټولنیزې عاطفي زده کړې موخې:**

زده کوونکي به د دې برخې تر پایه د دې وړتیا پیدا کړي چې:

۱- په غوږ نیولو او خبرې کولو کې فعال ګډون وکړي.

**د لوست پیل (۵دقیقې):** د لوست د پیل ټول مقدماتي فعالیتونه دې ترسره شي.

### د دې برخې ځانګړي فعالیتونه

**په لوستلو کې د تم کېدلو او فکر کولو فعالیت په اوږدو کې:**

۱. ښوونکی زده کوونکو ته وایي کله چې متن لولئ، باید وګورئ چې آیا تاسو په هغه څه پوهېږئ چې لولئ یې.
۲. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې په دې برخه کې به تاسو د تم کېدلو او فکر کولو تمرین ترسره کړئ. دا په دې معنا ده کله چې تاسې یو متن لولئ، له خپل ځان څخه پوښتنې کوئ. د بېلګې په ډول: دا څه معنا لري؟ آیا زه په هغه څه پوهېږم چې همدا اوس مې ولوستل؟
۳. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې تاسې به عملاً وښیاست چې دا کار په څه ډول ترسره کېږي؟
٤. ښوونکی لومړی پاراګراف لولي او د تم کېدلو او فکر کولو فعالیت په عملي توګه تمثیلوي.
۵. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې اوس به تاسې په ګډه متن را سره لولئ او د لوستلو په بهیر کې به تم کېږئ او فکر به کوئ؟
٦. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې په دوه کسیزه توګه لومړی پاراګراف ولولي او په ګډه سره (د تم کېدلو او فکر کولو) د مهارت تمرین وکړي.

**له لوستلو څخه وروسته اصلي مفهوم**

**لومړۍ اونۍ:**

۱. ښوونکی زده کوونکو ته وایي: اوس چې تاسې دا متن لوستلی دی، راځئ چې د متن د اصلي مفهوم په اړه فکر وکړو. اصلي مفهوم د متن لنډ او عمومي پیغام دی. د دې متن اصلي مفهوم دا دی چې:
د الله (جَلَ جَلالُهُ) امر ومنو او د پر نعمتونو یې شکر وباسو.
۲. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې د لوست اصلي مفهوم و وایي.
۳. ښوونکی وایي: زه د اصلي مفهوم د بیانولو لپاره یوه جمله لیکم. ښوونکی پر تختې یوه جمله لیکي چې په ساده ډول اصلي مفهوم بیانوي: موږ الله (جَلَ جَلالُهُ) پیدا کړي یو، الله (جَلَ جَلالُهُ) د ټولو مخلوقاتو خالق دی.
٤. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې په خپلو کتابچو کې د متن اصلي مفهوم ولیکي.

دوهمه اونۍ: ښوونکی له زده کوونکو څخه پوښتنه کوي چې آیا زده کوونکي ویلای شي چې د متن تر ټولو مهم مفهوم څه شی دی؟ ښوونکی له زده کوونکو سره د متن د اصلي مفهوم په پیدا کولو کې مرسته کوي.

دریمه اونۍ: ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې د اصلي مفهوم د پیدا کولو لپاره په دوه کسیزه توګه کار وکړي. بیا په خپل منځ کې خو زده کوونکي اصلي مفهوم شریکوي او ښوونکی ورسره مرسته کوي.

**فرعي موضوع:** الله (جَلّ جَلاَلُهُ) **توري: آ، ا، ب، پ، ت، ټ، ث**

**د زده کړې موخې:**

۱. له٪ ۹۵ سموالي سره د اړوندو لوستل شویو تورو پېژندل.
۲. له انځور، سرلیک، مهمو کلمو او مخکینۍ پوهې ځخه په ګټې اخیستنې سره وړاندوینه کول چې کیسه یا متن به د څه په هکله وي.
۳. د لوستلو په بهیر کې د پوهې او لاښې روښانتیا د ارزولو لپاره تم کېدل او فکر کول.
۴. د متن اصلي مفهوم بیانول.

### ۱. توري او کلمې (۱۰ دقیقې)

۱. ښوونکی دغه توري پر تخته لیکی:ا،آ،ب،پ،ت،ټ،ث
۲. ښوونکی له زده کوونکو سره تورو ته اشاره کوي د هر توري نوم او غږ لولي.
۳. ښوونکی د هر توري اړوند کلمې لولي او زده کوونکی د هرې کلمې لاندې ګوته تیره وي.
٤. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې کلمې ولولي او اړوند توري پکې وښیي.
٥. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې د درسي کتاب کلمې د تمرین په کتابونو کې ولیکي.
٦. ښوونکی زده کوونکو ته لارښوونه کوي چې هره ورځ په کورونو کې په خپلو کتابچو کې د دې کلمو لیکل تمرین کړي.
۷. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې د اونۍ په پای کې به دوی همدغه کلمې د املا په توګه و لیکي.

### ۲. د لومړي متن لوستل (۲۵ دقیقې)

**له لوستلو څخه مخکې**

۱. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې عنوان او انځور ته وګوري او وړاندوینه وکړي چې متن به د څه په اړه وي. (د خپل څنګ له ملګرو سره شریکول او بیا له ټولګیوالو سره شریکول.)
۲.ښوونکی درې کلیدي کلمې له زده کوونکو سره معنا او په جملو کې يې استعمالوي.

**د لوستلو پر مهال**

۱. ښوونکی يې تمثیلوي، ښوونکی او زده‌کوونکي يې په ګډه لولي، زده‌کوونکي يې په دوه کسیزه توګه لولي، زده‌کوونکي يې له ځانه سره لولي.
۲. ښوونکی زده کوونکو ته ښیي چې څرنګه کولای شي د تم کېدلو او فکر کولو له تګلارې څخه ګټه واخلي.

**له لوستلو څخه وروسته**

۱. ښوونکی له زده کوونکو څخه پوښتنه کوي چې دکیسې په هکله د هغوی وړاندوینه سمه ده؟ هو/نه



۲. ښوونکی له زده کوونکو څخه لا ندې پوښتنې کوي.

**- پوښتنه: دټولو مخلوقاتو خالق څوک دی؟**
**ځواب: الله (جَلّ جَلاَلُهُ)**
**- پوښتنه: الله (جَلّ جَلاَلُهُ) موږ ته ژبه د څه لپاره راکړې ده؟**
**ځواب: چې ښې خبرې او د الله (ج) ذکر ورباندې وکړو.**
**- پوښتنه: د کومو کارونو په ترسره کولو سره الله (جَلّ جَلاَلُهُ) خوښېږي؟**
**ځواب : په ښو او نېکو کارونو سره الله (جَلّ جَلاَلُهُ) خوښېږي.**
**- پوښتنه: الله (جَلّ جَلاَلُهُ) موږ ته نور کوم نعمتونه راکړي دي؟**
**ځواب: عقل، روغتیا، کورنۍ او دوستان يې راکړي.**

۳. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې اصلي مفهوم په لاندې ډول دی: **باید د الله (جَلّ جَلاَلُهُ) امر ومنو او په نعمتونو يې شکر وباسو.**
۴.ښوونکی د متن اصلي مفهوم په توره تخته لیکي او زده کوونکي يې په خپلو کتابچوکې لیکي.

### تکرار او کورنۍ دنده (۵ دقیقې)

۱. **تکرار:** له زده کوونکو سره د تورو نومونه او غږونه تکرارول
۲. **کورنۍ دنده:** د تمرین په کتابونو کې د کلمو لیکل.

**فرعي موضوع:** الله (جَلّ جَلاَلُهُ)

**د زده کړې موخې:**
۱. د مفرد او جمع نومونو بېلول.
۲. کلمې په دوو ډلو کې وېشل:
۳. د روان لوستنې ښه کول.

### ۱. کلمې (۱۰ دقیقې)

۱. ښوونکی یو پنسل زده کوونکو ته ښیي او له هغوی څخه پوښتنه کوي چې هغوی څه شی ویني؟ بیا ښوونکی پنځه پنسلونه ښیي او له هغوی څخه پوښتنه کوي چې څه شی ویني؟
۲. ښوونکی یې تشریح کوي چې یوه شي ته مفرد ویل کېږي او دوه یا ډېرو څیزونو ته جمع ویل کېږي.
۳. ښوونکی دا مفهوم د څو نورو شیانو په مرسته له زده کوونکو سره تمرین کوي او په دې یې باوري کوي چې ټول زده کوونکي د خپلو ګوتو په ښودلو سره ځواب ورکړي.
۴. ښوونکی له زده کوونکو سره لومړني دوه انځورونه شریکوي. بیا زده کوونکي په ګډه سره کار کولو ته ادامه ورکوي. ښوونکی په زده کوونکو باندې ټینګار کوي چې په فعال ډول د یو بل خبرو ته غوږ ونیسي.
۵. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې د تمرین په کتابونو کې مفرد او جمع کلمې د خطونو په ایستلو سره په نښه کړي.
۶. د زده کوونکو د کار کولو پر مهال، ښوونکی په ټولګي کې ګرځي چې له ستونزو سره د مخ شویو زده کوونکو سره مرسته وکړي.
۷. لږ وخت وروسته ښوونکی د زده کوونکو ځوابونه ګوري.
۸. ښوونکی له زده کوونکو څخه پوښتنه کوي چې و وایي په دې درس کې یې څه شی زده کړي دي. (ځواب: یو شی ته مفرد او ډېرو شیانو ته جمع ویل کېږي.

### ۲. د لغتونو زېرمه (۱۵ دقیقې)

۱. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې اوس وګورئ چې کومې کلمې له یو بل سره تړاو لري. دا کار ډلبندي نومیږي.
۲. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې هغوی کولای شي دغه کلمې په یوه بل ډول په ډلو و وېشي، د بېلګې په توګه ټول هغه زده کوونکي چې نومونه یې په (ح) او (و) پیل کېږي د ټولګي یوې خوا ته دې ولاړ شي. نور ټول زده کوونکي دې د خونې بلې خوا ته ولاړ شي. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې اوس دوه ډلې شتون لري.
۳. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې خپلو درسي کتابونو ته ځیر شي. دوی ۱۰ کلمې ویني چې ځینې یې د اداري له کټګورۍ او ځینې نورې کلمې د زده کوونکو د بکس له کټګورۍ سره تړاو لري.
۴. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې د تمرین په کتابونو کې تمرینونه ترسره کړي. هغوی باید کلمې ولولي او پرېکړه وکړي چې دا کلمې په کومې ډلې پورې تړاو لري او بیا هغوی هغه کلمې په خپله ډله کې لیکي.



ښوونکی لومړۍ دوه کلمې له زده کوونکو سره په ګډه کار وي. بیا زده کوونکي په دوه کسیزه توګه کار ته ادامه ورکوي. ښوونکی په زده کوونکو باندې ټینګار کوي چې یو بل ته په فعال ډول غوږ ونیسي.
۵. د زده کوونکو د کار کولو پر مهال، ښوونکی په ټولګي کې ګرځي چې له ستونزو سره د مخ شوو زده کوونکو سره مرسته وکړي.
۶. لږ وخت وروسته ښوونکی د زده کوونکو ځوابونه ګوري.
۷. ښوونکی له زده کوونکو پوښتنه کوي چې و وایي په دې درس کې یې څه زده کړي دي. ځواب: له بېلا بېلو کټګوریو سره د کلمو تړاو.

### ۳. د لومړي متن بیا لوستل (۱۰ دقیقې)

۱. له څلورو پړاوونو (ښوونکی یې لولي، ښوونکی او زده کوونکي یې په ګډه لولي، زده کوونکي یې په دوه کسیزه توګه لولي، زده کوونکي یې له ځانه سره لولي) څخه په ګټې اخیستنې سره له زده کوونکو سره د لومړي متن بیا لوستل.

### تکرار او کورنۍ دنده (۵ دقیقې)

۱. **تکرار:** د مفرد او جمع مفهوم بیا لوستل.
۲. **کورنۍ دنده:** ښوونکی دې زده کوونکو ته و وایي چې کلمې په خپلو کورونو کې په کتابچو کې ولیکئ او لومړی متن بیا ولولئ.

فرعي موضوع: حضرت محمد ﷺ توري: ج، چ، ح، خ، څ، ځ

**د زده کړې موخې:**

١- له٪ ٩٥ سموالي سره د ټولو لوستل شویو تورو پېژندل.
٢- له انځور، سرلیک، مهمو کلمو او مخکینۍ پوهې څخه په ګټې اخیستنې سره وړاندوینه کول چې یوه کیسه یا متن به د څه په هکله وي.
٣- د پوهې او لا ښې روښانتیا د ارزولو لپاره د لوستلو په بهیر کې تم کېدل (تم کېدل او فکر کول).
٤- د لوستلو د متن اصلي مفهوم بیانول.

### ١. توري او کلمې (١٠ دقیقې)

١. ښوونکی دغه توري پر تختې لیکي: ج- چ- ح- خ- څ- ځ.
٢. ښوونکی له زده کوونکو سره تورو ته اشاره کوي د هر توري نوم او غږ لولي.
٣. ښوونکی د هر توري اړوند کلمې لولي او زده کوونکي د هرې کلمې لاندې ګوته تیره وي.
٤. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې توري او کلمې ولولي او اړوند توری پکې وښیي.
٥. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې د تمرین په کتابونو کې د کلمو لیکل تمرین کړي.
٦. ښوونکی زده کوونکو ته لارښوونه کوي چې هره ورځ په کورونو کې په کتابچو کې د کلمو د لیکلو تمرین وکړي.
٧. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې د اونۍ په پای کې به دوی همدغه کلمې د املا په توګه ولیکي.

### ٢. د دویم متن لوستل (٢٥ دقیقې)

**له لوستلو څخه مخکې**

١. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې انځور او عنوان ته وګورئ او وړاندوینه وکړئ، چې متن به د څه په اړه وي ( په خپل منځ کې شریکول، له ټولګي سره شریکول).
٢. ښوونکی درې کلیدي کلمې له زده کوونکو سره معنا او په جملو کې یې استعمالوي.

**د لوستلو پر مهال**

١. ښوونکی د متن لوستل تمثیلوي.
٢. ښوونکی او زده کوونکي په ګډه متن لولي.
٣. زده کوونکي له ځان سره متن لولي.
٤. ښوونکی زده کوونکو ته ښیي چې څه ډول کولای شي د تم کېدلو او فکر کولو تګلارې څخه ګټه واخلي.

**له لوستلو څخه وروسته**

١. ښوونکی له زده کوونکو څخه پوښتنه کوي چې دکیسې په هکله د هغوی وړاندوینه سمه ده؟ هو/نه



حضرت مُحَمّد ﷺ

څنګه د حضرت مُحَمّد ﷺ ښه امتیان کېدای شو؟

الله ﷻ حضرت مُحَمّد ﷺ د انسانانو د لارښوونې لپاره رالېږلی دی.

حضرت مُحَمّد ﷺ له ماشومتوب څخه د ښو اخلاقو څښتن و. تل به یې رښتیا ویل امانت به یې خوندي ساتل. ځکه به ټولو امین باله. حضرت مُحَمّد ﷺ به خلک ښو کارونو ته هڅول. حضرت مُحَمّد ﷺ فرمایي: «د علم زده کړه پر هر نارینه او ښځینه مسلمان فرض ده.» نو باید

- علم زده کړو
- رښتیا ووایو او ښه کارونه وکړو
- امانت ښه وساتو

که د حضرت مُحَمّد ﷺ لارښوونې عملي کړو، ښه امتیان به یې شو

٢. ښوونکی له زده کوونکو څخه لاندې پوښتنې کوي.

- **پوښتنه: خلکو ولې حضرت محمد ﷺ امین باله؟**
**ځواب: ځکه چې امانت یې ښه ساتل.**
- **پوښتنه: حضرت محمد ﷺ د تعلیم په هکله څه فرمایلي وو؟**
**ځواب: د علم زده کړه پرهر نارینه او ښځینه مسلمان فرض ده.**
- **پوښتنه: حضرت محمد ﷺ موږ ته د څه شي لارښوونه کړې ده؟**
**ځواب: رښتیا ویل، امانت ښه ساتل، د علم زده کول.**
- **پوښتنه: دحضرت محمد ﷺ اخلاق موږته څه پیغام راکوي.**
**ځواب موږ ته د ښو کارونو کولو پیغام راکوي.**

٣. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې د متن اصلي مفهوم په لاندې ډول دی: **څنګه د حضرت محمد ﷺ ښه امتیان کېدلای شو؟ ښه امتیان هغه دي چې د حضرت محمد ﷺ په ټولو لارښوونو عمل کوي.**
٤. ښوونکی اصلي مفهوم پر تختې لیکي او زده کوونکي یې په خپلو کتابچو کې لیکي.

### تکرار او کورنۍ دنده (٥ دقیقې)

١. **تکرار:** له زده کوونکو سره د تورو نومونه او غږونه تکرارول.
٢. **کورنۍ دنده:** په کورونو کې توري او کلمې په خپلو کتابچو کې ولیکئ او دوهم لوست تکرار کړئ.

**فرعي موضوع: حضرت محمد ﷺ**

**د زده کړې موخې:**

١. د پای ټکي (.) او پوښتنې نښې (؟) په کارولو پوهېدل.
٢. د کلمو وېشل په دوو ډلو کې.
٣. روان لوستنې ښه کول.

### ١.جملې (١٠ دقيقې)

١. ښوونکی زده کوونکو ته وايي چې اوس به هغوی د ګرامري نښو کارول زده کوي.
٢. ښوونکی د پای ټکی (.) او د پوښتنې نښه (؟) پر تختې ليکي او له زده کوونکو څخه پوښتنه کوي چې دغه دواړه نښې پېژني؟ ځينې زده کوونکي ځواب ورکوي او بيا ښوونکی سم ځواب له زده کوونکو سره شريکوي.
٣. ښوونکی لاندينۍ دوه جملې پر تختې ليکي:
٤. موږ بايد د حضرت محمد ﷺ په لارښوونو عمل وکړو.
٥. ښوونکی له زده کوونکو پوښتنه کوي چې آيا جمله ټکي (.) او که د پوښتنې نښې (؟) ته اړتيا لري؟ ډېر ښوونکي ځواب ورکوي خو بيا ښوونکی سم ځواب له زده کوونکو سره شريکوي.
٦. ښوونکی زده کوونکو ته وايي چې خپلو کتابونو ته ځير شي. په کتاب کې پنځه جملې دي چې ټکي يا هم پوښتنې نښې ته اړتيا لري.
٧. ښوونکی لومړۍ دوه بېلګې له زده کوونکو سره ترسره کوي.
٨. ښوونکی زده کوونکو ته وايي چې په دوه کسيزه توګه کار وکړي او وليکي چې آيا پاتې جملې ټکي ته اړتيا لري که پوښتنې نښې ته؟
٩. ښوونکی له هغو زده کوونکو سره مرسته کوي چې له ستونزو سره مخ وي.ښوونکی له زده کوونکو څخه د پوښتنو په کولو سره هغه څه خلاصه کوي چې هغوی زده کړي دي. هغوی ته وخت ورکوي چې له خپلو ټولګيوالو سره يې شريک کړي، بيا يوه يا دوو زده کوونکو ته وايي چې خپل ځوابونه له نورو سره شريک کړي. ځواب: هغوی د پای ټکي او د پوښتنې نښې په اړه پوهه ترلاسه کړې ده.

### ٢.د لغتونو زېرمه (١٥ دقيقې)

١. ښوونکی زده کوونکو ته وايي چې اوس به هغوی وګوري چې کومې کلمې يو له بل سره تړاو لري د دې لپاره چې کلمې ډلبندي کړي.
٢. ښوونکی زده کوونکو ته وايي چې د تمرين په کتابونو کې تمرينونه ترسره کړي. ښوونکی لومړۍ دوه کلمې له زده کوونکو سره په ګډه کار کوي. بيا زده کوونکي



په دوه کسيزه توګه کار ته ادامه ورکوي.
٣. ښوونکی په ټولګي کې د کار کولو پر مهال پر زده کوونکو ګرځي چې له ستونزو سره د مخ شوو زده کوونکو سره مرسته وکړي.
٤. لږ وخت وروسته ښوونکی د زده کوونکو ځوابونه ګوري.
٥. ښوونکی له زده کوونکو څخه پوښتنه کوي چې و وايي په دې درس کې يې څه زده کړي دي. (ځواب: له بېلا بېلو کټګوريو سره د کلمو تړاو)

### ٣.د دويم متن بيا لوستل(١٠دقيقې)

١- له څلورو پړاوونو (ښوونکی يې تمثيلوي، ښوونکی او زده کوونکي يې په ګډه لولي، زده کوونکي يې په دوه کسيزه توګه لولي، زده کوونکي يې له ځانه سره لولي) څخه په ګټه اخيستنې له زده کوونکو سره د دوهم متن بيا لوستل.

### تکرار او کورنۍ دنده (۵ دقيقې)

١. **تکرار:** د ټکي او پوښتنې نښې بيا لوستل.
٢. **کورنۍ دنده:** ښوونکی زده کوونکو ته وايي چې د جملو تمرين په خپلو کورونو کې په کتابچو کې ترسره کړي.
ښوونکی په زده کوونکو د املا د تمرين لپاره د متن د بيا لوستلو او د کلمو د تمرين کولو ټينګار کوي.

د حسن خط فعاليت، ارزونه او کورنۍ دنده (۴۰ دقيقې )

**فرعي موضوعگانې: الله (جَلّ جَلاَلُهُ) او حضرت محمدﷺ**

**د زده کړې موخې:**

۱- د غوږنیول او خبرې کولو تمرین.
۲- د نوښتي لیکنې د متن بشپړول.
۳- له مناسب لحن، حرکاتو او٪ ۹۵ سموالي سره د متن لوستل.



### ۰۱ غوږنیول او خبرې کول (۱۰ دقیقې)

۱.ښوونکی زده کوونکو ته وايي چې اوس به د ښه غوږ نیولو او خبرې کولو په اړه بحث کوو.

۲.ښوونکی له زده کوونکو سره د غوږ نیولو پر دې قواعدو بحث کوي: ( مخامخ کېدل، د سترګو تماس، د معلوماتو د تاييدولو لپاره د سر خوځول، چپ پاتې کېدل، د بل خبرې نه قطع کول، د بحث پر موضوع تمرکز کول او د ځینو معلوماتو بیا تکرارول.)

۳. ښوونکی زده کوونکو ته وايي چې د درسي کتابونو انځورونو ته وګوري او د غوږ نیولو په اړه په دوه کسیزه توګه یو له بل سره بحث وکړي. ښوونکی دا پوښتنې له زده کوونکو څخه کوي ( تاسې په انځورونو کې څه وینئ؟ که ځوک راته خبرې کوي څه باید وکړو؟ موږ یو د بل پر خبرو څنګه ښه پوهیدلی شو؟).

٤. ښوونکی له خو زده کوونکو څخه غواړي چې خپل معلومات او نظرونه له ټولګیوالو سره شریک کړي.

٥. ښوونکی زده کوونکو ته وايي چې د تمرین په کتابونو کې ځینو هغو انځورونو ته ځیر شي چې زده کوونکي پکې یو له بل سره خبرې کوي او ورته غوږ نیسي خو په ځینو نورو انځورونو کې یو او بل ته غوږ نه نیسي.

٦. ښوونکی له زده کوونکو څخه غواړي چې و وايي کوم انځورونه ښه غوږ نیول ښیي او کوم انځورونه ښه غوږ نیول نه ښیي. زده کوونکو ته و وايي چې د غوږ نیولو او خبرې کولو تمرین په دوه کسیزه توګه تر سره کړي او له څو زده کوونکو څخه وغواړئ چې خپل ځوابونه له ټولګیوالو سره شریک کړي.

٧. ښوونکی له زده کوونکو څخه دا پوښتنې کوي: څه احساس کوئ کله چې یو څوک ستاسو خبرو ته ښه غوږ نیسي؟ کله چې یو څوک ستاسو خبرو ته غوږ نه نیسي څه احساس کوئ؟

٨. ښوونکی له زده کوونکو څخه د غوږ نیولو د مهمو قواعدو په اړه پوښتنه کوي او درس خلاصه کوي.

### ۲. نوښتي لیکنه (۱۵ دقیقې)

۱. ښوونکی زده کوونکو ته وايي چې هغوی به اوس د ښه غوږ نیولو په اړه یو متن ولیکي.

۲. ښوونکی د درسي کتاب جملې او د چوکاټ کلمې له زده کوونکو سره یو ځای لولي.

۳. ښوونکی زده کوونکو ته وايي چې د تمرین په کتابونو کې د چوکاټ د کلمو په کارولو سره په تشو ځایونو کې په دوه کسیزه توګه جملې جوړې کړي او نیمګړی متن دې بشپړ کړي.

۴. ښوونکی په ټولګي کې ګرځي او هغو زده کوونکو ته چې ستونزې لري مرسته او لارښوونه کوي.

۵. ښوونکی له څو زده کوونکو غواړي چې خپل بشپړ کړي متنونه ټولګیوالو ته و وايي.

### ۳. د لومړي او دوهم متن بیا لوستل (۱۰) دقیقې

۱- ښوونکی دې دوو پړاوونو ( د زده کوونکو له لوري په دوه کسیزه توګه لوستل، د زده کوونکو لخوا له خپل ځان سره لوستل) په کارولو سره لومړی او دوهم متن له زده کوونکو سره تکرارکړي.

### تکرار او کورنۍ دنده (۵ دقیقې)

۱. **تکرار:** د غوږنیولو د قواعدو تکرار.
۲. **کورنۍ دنده:** د لومړي او دوهم متن بیا لوستل. په نوښتي لیکلو کې د کیسې پوره کول او یو انځور ورسره اضافه کول.

## فرعي موضوع: تکرار او دوامداره ارزونه

**د زده کړې موخې:**

۱- کلمې د مفرد او جمع په توګه ډلبندي کول.
۲- له٪ ۹۰ سموالي سره د متن لوستل.
۳- د کلمو او جملو په کچه د مناسب لحن او فشار په کارولو سره د متن لوستل.
۴- له٪ ۹۰ سموالي سره د کلمو لیکل.

### ۱.کلمې او جملې(۱۰ دقیقې)

۱. ښوونکی د مفرد او جمع کلمو مفکوره له زده کوونکو سره تکراروي.
۲. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې د خپلو کتابونو (الف) تمرین ترسره کړي.
۳. ښوونکی له زده کوونکو سره د پای ټکي(.) او د پوښتنې نښې(؟) استعمال تکراروي.
٤. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې د خپلو کتابونو (ب) تمرین ترسره کړي.
٥. ښوونکی له زده کوونکو سره په ډلو کې د کلمو د وېشلو مفکوره تکراروي.
٦. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې د خپلو کتابونو د (ج) تمرین ترسره کړي.
٧. ښوونکی د زده کوونکو ځوابونه ګوري.
٨. ښوونکی د اوږدمهالې ارزونې په کتاب کې یادښت لیکي چې هر زده کوونکی د دې کار په ښه توګه ترسره کولو باندې توانېدلای دی.

### ۲.د لومړي او دویم متن بیا لوستل(۱۰دقیقې)

۱. ښوونکی زده کوونکو ته په دوه کسیزه توګه د لومړي یا دوهم متن د لوستلو لپاره دوې دقیقې وخت ورکوي.
۲. ښوونکی د زده کوونکو څلورو جوړو ته وایي چې د ټولګي مخې ته راشي.
۳. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې هره جوړه دې د متن یوه برخه ولولي. دوی به متن په روانه توګه او د خبرې د اغېزمنتیاوو او حرکتونو په ښودلو سره چې د پای ټکي او پوښتنې نښې انعکاس کوي، لولي.
٤. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې ورو ورو متن له ځان سره ولولي.
٥. د اتو زده کوونکو د لوستلو پر مهال ښوونکی د هغوی د لوستلو څرنګوالی مشاهده کوي او د اوږدمهالې ارزونې په فورمه کې یې ثبتوي.
٦. هغه زده کوونکي چې په ښه لوستلو کې پاتې راغلل بله اونۍ مرستې ته اړتیا لري.



### ۳. املا (۱۵دقیقې)

۱. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې هغوی به اوس ځینې توري او کلمې ولیکي.
۲. ښوونکی زده کوونکو ته د خپلو درسي کتابونو د ښندولو او د تمرین کتابونو د پرانیستلو وایي.
۳. ښوونکی لومړی توری /ا/ لولي: (درې ځلې یې غږ وایي)، زده کوونکي توری لیکي.
٤. ښوونکی همدا کار د لاندینیو (۱۱) تورو لپاره هم ترسره کوي: **ب- پ- ت- ټ- ث-ج چ- ح- خ- څ- ځ.**
٥. ښوونکی لومړی کلمه ( **الله** (ج) )په کراره لولي او څلور ځلې یې تکراروي. زده کوونکي هغه کلمه لیکي.
٦. ښوونکی همدا کار د لاندینیو (۱۱) کلمو لپاره هم ترسره کوي: **بابا حرکت، پېښې، ټولګی، ثواب، جومات، چمن، محمد، مخ، سمڅ، ړمنځ.**
٧. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې د تمرین کتابونه د کتلو لپاره راوړي. ښوونکی د هغوی املا ګوري او نومرې ورکوي.
٨. ښوونکی یې د اوږدمهالې ارزونې په کتاب کې ثبتوي چې آیا زده کوونکو وکولای شول چې دا کار په ښه توګه ترسره کړي که نه.

### تکرار او کورنۍ دنده (۵ دقیقې)

۱. **تکرار:** د هغه څه تکرارول چې د اونۍ په اوږدوکې یې پرې بحث کړی دی.
۲. **کورنۍ دنده:** ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې په کورونو کې د درسونو د هغو برخو بیا لیکل او لوستل دې ترسره کړي چې د اونۍ په جریان کې یې ورسره ستونزې لرلې.

د حسن خط فعالیت، ارزونه او کورنۍ دنده (۴۰ دقیقې)

فرعي موضوع: پوهه  توري: د، ډ، ذ

**د زده کړې موخې:**

۱. له ٪۹۵ سمواليي سره د اړوندو لوستل شوو تورو پېژندل.
۲. له انځور، سرليک، مهمو کلمو او مخکېنۍ پوهې څخه په ګټې اخيستنې سره وړاندوينه کول چې کيسه يا متن به د څه په هکله وي.
۳. د پوهې او لاښې روښانتيا د ارزولو لپاره د لوستلو په بهير کې تم کېدل.
۴. د لوستل شوي متن اصلي مفهوم بيانول.

**۲. توري او کلمې (۱۰ دقيقې)**

۱. ښوونکی دغه توري پر تخته ليکي: **د، ډ، ذ**
۲. ښوونکی له زده کوونکو سره تورو ته اشاره کوي د هر توري نوم او غږ لولي.
۳. ښوونکی د هر توري اړوند کلمې لولي او زده کوونکي د هرې کلمې لاندې ګوته تيره وي.
۴. ښوونکی زده کوونکو ته وايي چې توري او کلمې ولولي او اړوند توری پکې وښيي.
۵. ښوونکی زده کوونکو ته وايي چې د تمرين په کتابونو کې د کلمو ليکل تمرين کړي.
۶. ښوونکی زده کوونکو ته لارښوونه کوي چې هره ورځ په کورونو کې په کتابچو کې د ليکلو تمرين وکړي.
۷. ښوونکی زده کوونکو ته وايي چې د اونۍ په پای کې به دوی همدغه کلمې د املا په توګه و ليکي.

**۲. د لومړي متن لوستل (۲۵ دقيقې)**

**له لوستلو څخه مخکې**

۱. ښوونکی زده کوونکو ته وايي چې سرليک او انځور ته وګوري او وړاندوينه وکړي چې متن به د څه په اړه وي، (له خپل ملګري سره شريکول، بيا له ټولګيوالو سره شريکول).
۲. ښوونکی درې کليدي کلمې له زده کوونکو سره معنا او په جملو کې يې استعمالوي.

**د لوستلو پر مهال**

۱- ښوونکی يې تمثيلوي، ښوونکی او زده‌کوونکي يې په ګډه لولي، زده کوونکي يې په دوه کسيزه توګه لولي، زده کوونکي يې له ځانه سره لولي.
۲- ښوونکی له زده کوونکو سره د تم کېدلو او فکر کولو له تګلارې څخه په ګټه اخيستنې او تمرين کولو په برخه کې مرسته کوي.

**له لوستلو څخه وروسته**

۱. ښوونکی له زده کوونکو څخه پوښتنه کوي چې دکيسې په هکله د هغوی وړاندوينه سمه ده؟ هو/نه
۲. ښوونکی له زده کوونکو څخه لاندې پوښتنې کوي:




**- پوښتنه: ښوونځی د څه شي ځای دی؟**
**ځواب: ښوونځی د زده کړې ځای دی.**
**- پوښتنه: ولې پوهه ترلاسه کوئ؟**
**ځواب: د دې لپاره چې ژوند مو ښه شي. خپل هېواد او خلکو ته خدمت وکړو.**
**- پوښتنه: که پوهه ترلاسه کړو، په ژوند کې مو کوم بدلون راځي؟**
**ځواب: ښه دنده به پيدا کړو او ژوند به مو ښه شي.**
**- پوښتنه: څه احساس کوئ په پوهه کې کومې ښېګڼې پرتې دي؟**
**ځواب: پوهه مو په ښه او بد، ګټه او زيان پوهوي.**

۳. ښوونکی زده کوونکو ته وايي چې د متن اصلي مفهوم په لاندې ډول دی: **موږ بايد پوهه ترلاسه کړو څو ژوند مو ښه، هېواد او خلکو ته خدمت وکړو.**

۴. ښوونکی اصلي مفهوم پر تختې ليکي او زده کوونکي يې اصلي مفهوم په خپلو کتابچو کې ليکي.

**تکرار او کورنۍ دنده (۵ دقيقې)**

۱. **تکرار:** له زده کوونکو سره د تورو نومونه او غږونه تکرارول.
۲. **کورنۍ دنده:** ښوونکی زده کوونکو ته وايي چې په کورونو کې په خپلو کتابچو کې د تورو او کلمو ليکل ترسره کړي.

## فرعي موضوع: پوهه

**د زده کړې موخې:**

۱. مفرد او جمع کلمې په ښه کول.
۲. کلمې په دوو ډلو وېشل.
۳. روان لوستنه ښه کول.

### ۱. کلمې (۱۰ دقیقې)

۱. ښوونکی له زده کوونکو څخه پوښتنه کوي چې آیا اوس هم په یاد لري چې مفرد او جمع څه ډول دي؟ ښوونکی له زده کوونکو څخه د یو څو بېلګو د وړاندې کولو غوښتنه کوي.
۲. ښوونکی لاندینۍ څلور کلمې پر تختې لیکي: **میز، کتابونه، هلکان، توپ.**
۳. ښوونکی له زده کوونکو څخه د کلمو د لوستلو غوښتنه کوي او له هغوی څخه پوښتنه کوي چې په څلورو کلمو کې کومه کلمه مفرد ده؟ (**توپ**) کلمه، ځکه چې دا مفرد ده او نورې ټولې جمع کلمې دي.
۴. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې د هغوی د تمرین په کتابونو کې دا ډول ډېرې کلمې دي. ښوونکی د کلمو لومړی کرښه له زده کوونکو سره په ګډه تمرین کوي.
۵. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې نورې کلمې په دوه کسیزه توګه ولولي او د تمرین په کتاب کې جمع او مفرد په ښه کړي.
۶. د زده کوونکو د کار کولو پر مهال، ښوونکی په ټولګي کې ګرځي او له ستونزو سره د مخ شوو زده کوونکو سره مرسته کوي.
۷. لږ وخت وروسته، ښوونکی د زده کوونکو ځوابونه ګوري.

### ۲. د لغتونو زېرمه (۱۵ دقیقې)

۱. ښوونکی له زده کوونکو څخه پوښتنه کوي چې اوس هم په یاد لري چې څه ډول کلمې له بېلابېلو کټګوریو سره تړاو لري؟
۲. ښوونکی له زده کوونکو څخه د یو څو بېلګو د وړاندې کولو غوښتنه کوي.
۳. ښوونکی له زده کوونکو څخه غوښتنه کوي چې خپلو درسي کتابونو ته خیر شي. هغوی دوه چوکاټونهویني. د (الف) چوکاټ کلمې د (ب) چوکاټ له کلمو سره مطابقت لري. لومړی کلمه (**رنګه قلمونه**) له بلې کلمې (**رسمول**) سره مطابقت لري ځکه دواړه په یوې ډلې پورې تړاو لري.
۴. زده کوونکي په دوه کسیز توګه د (الف) او (ب) د چوکاټونو اړوندې کلمې یو له بل سره ښلوي.



| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| ۱ | میز | کتابونه | هلکان | توپ |
| ۲ | زده‌کوونکي | هیواد | نجونې | قلمونه |
| ۳ | کتابچې | بکسونه | خان | کمپیوټرونه |
| ۴ | ښوونکي | الخورونه | ټولګي | تخته |
| ۵ | ښوونځی | پنسل پاکونه | تباشیر | کاغذونه |
| ۶ | ګلان | سرښوونکي | ونې | څوکۍ |



۵. ښوونکی د زده کوونکو د کار کولو پر مهال په ټولګي کې ګرځي او له ستونزو سره د مخ شوو زده کوونکو سره مرسته کوي.
۶. لږ وخت وروسته ښوونکی د زده کوونکو ځوابونه ګوري.

### ۳. د لومړي متن بیا لوستل (۱۰ دقیقې)

۱. له څلورو پړاوونو (ښوونکی یې تمثیلوي، ښوونکی او زده کوونکي یې په ګډه لولي، زده کوونکي یې په دوه کسیزه توګه لولي، زده کوونکي یې له ځانه سره لولي) په کارولو سره له زده کوونکو سره د لومړي متن بیا لوستنه.

### تکرار او کورنۍ دنده (۵ دقیقې)

۱. **تکرار:** مفرد او جمع کلمې تکرارول.
۲. **کورنۍ دنده:** ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې کلمې په خپلو کورونو کې په کتابچو کې ولیکئ او لومړی لوست تکرار کړئ.

فرعي موضوع: مطالعه        توري: ر، ړ، ز، ژ، ږ

**د زده کړې موخې:**

۱- له٪ ۹۵ سموالي سره د ټولو لوستل شویو تورو پېژندل.
۲- له انځور، سرلیک، مهمو کلمو او مخکینی پوهې څخه په ګټه اخیستنې سره وړاندوینه کول چې کیسه یا متن به د څه په اړه وي.
۳- د پوهې او لانبې روښانتیا د ارزولو لپاره د لوستلو په بهیر کې تم کېدل او فکر کول.
٤- د لوستلو د متن اصلي مفهوم بیانول

### ۱. توري او کلمې (۱۰ دقیقې)

۱. ښوونکی دغه توري پر تختې لیکي( ر، ړ، ز، ژ، ږ)
۲. ښوونکی هر توري ته اشاره کوي او له زده کوونکو سره د هر توري نوم او غږ لولي.
۳. ښوونکی د هر توري اړوند کلمې لولي او زده کوونکي د هرې کلمې لاندې ګوته تېروي.
٤. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې توري او کلمې ولولي او اړوند توری پکې وښیي.
٥. ښوونکی زده کوونکو ته لارښوونه کوي چې هره ورځ په کورونو کې په کتابچو کې د لیکلو تمرین وکړي.
٦. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې د اونۍ په پای کې به دوی همدغه کلمې د املا په توګه ولیکي.

### ۲. د دویم متن لوستل (۲۵ دقیقې)

**له لوستلو څخه مخکې**

۱. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې عنوان او انځور ته وګوري او وړاندوینه وکړي چې متن به د څه په اړه وي. (له خپل ملګري سره بیا له ټولګیوالو سره شریکول).
۲. ښوونکی درې کلیدي کلمې له زده کوونکو سره معنا او په جملو کې یې استعمالوي.

**د لوستلو پر مهال**

۱. ښوونکی له زده کوونکو سره د تم کېدلو او فکر کولو په تګلارې د تمرین کولو په برخه کې مرسته کوي.
۲. ښوونکی د لوستلو متن تمثیلوي.
۳. ښوونکی او زده کوونکي په ګډه متن لولي.
٤. ښوونکی زده کوونکو ته ښیي چې څنګه کولای شي د تم کېدلو او فکر کولو له تګلارې څخه ګټه واخلي.

**له لوستلو څخه وروسته**

۱. ښوونکی له زده کوونکو څخه پوښتنه کوي چې


توري او کلمې
ر ړ ز ژ ږ
رڼا ړنګ زمرد ژرنده ږمنځ
ګور پیاز روژه

مطالعه

مطالعه څنګه وکړو؟

د کتاب او نورو لیکنو لوستلو ته مطالعه وايي کوو. ښوونځی او کتابتون د مطالعې لپاره مناسب ځایونه دي. په پارکونو او باغونو کې هم مطالعه کولای شو. د مطالعې پر وخت ناسم کېناستل او نامناسبه رڼا تاوان لري. نو باید:

- په لږه رڼا کې مطالعه ونه کړو.
- رڼا دې د ښي یا څنګ له خوا پر کتاب ولګېږي.
- موږ باید په کوږه ملا مطالعه ونه کړو.
- کتاب له سترګو څخه دېرش سانتي متره لرې ونیسو.
- په ځیر سره مطالعه وکړو.
- د مطالعې په وخت کې ټول پام کتاب ته واړوو.

دکیسې په هکله د هغوی وړاندوینه سمه ده؟ هو/نه

۲. ښوونکی له زده کوونکو څخه لاندې پوښتنې کوي:

- **پوښتنه: مطالعه څه ته وايي؟**
**ځواب: د کتاب او نورو لیکنو لوستلو ته مطالعه وايي.**
- **پوښتنه: د مطالعې پر وخت کتاب باید څو سانتي له سترګو لرې وساتو؟**
**ځواب: دېرش سانتي لرې وي.**
- **پوښتنه: مطالعه څه ګټې لري؟**
**ځواب: پوهه او معلومات مو ډېروي.**
- **پوښتنه: مطالعه زموږ په ژوند کې څه بدلون راولي؟**
**ځواب: خلک راته د قدر په سترګه ګوري او ژوند مو ښه کېږي.**

۳. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې د متن اصلي مفهوم په لاندې ډول دی: **مطالعه باید په مناسب ځای کې او په ځیر سره یې وکړو.**

۴. ښوونکی اصلي مفهوم پر تختې لیکي او زده کوونکي یې اصلي مفهوم په خپلو کتابچو کې لیکي.

### تکرار او کورنۍ دنده (۵ دقیقې)

۱. **تکرار:** له زده کوونکو سره د تورو نومونه او غږونه تکرارول.
۲. **کورنۍ دنده:** زده کوونکي دې توري او کلمې په خپلو کورونو کې په کتابچو کې ولیکي او دوهم متن دې تکرار کړي.

**فرعي موضوع: مطالعه**

**د زده کړې موخې:**

۱. د ټکي (.) او پوښتنې نښې (؟) د کارولو تمرین کول.
۲. له دوو کټګوریو څخه کلمو ته ارتباط ورکول.
۳. روان لوستنه ښه کول.

### ۱. جملې (۱۰ دقیقې)

۱. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې د ټکي (.) او پوښتنې نښې (؟) استعمال بیان کړي.
۲. ښوونکی لاندینۍ دوه جملې پر تخته لیکي: د مطالعې لپاره کوم وختونه مناسب دي؟ کوم کتابونه باید ولولو؟
۳. ښوونکی له زده کوونکو څخه پوښتنه کوي چې جمله ټکي (.) او که پوښتنې نښې (؟) ته اړتیا لري؟ ډېر زده کوونکي ځواب ورکوي خو بیا ښوونکی سم ځواب له زده کوونکو سره شریکوي.
٤. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې خپلو کتابونو ته ځیر شي. په کتاب کې پنځه جملې دي چې ټکي یا هم پوښتنې نښې ته اړتیا لري.
٥. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې په دوه کسیزه توګه کار وکړي او ولیکي چې آیا جملې ټکي ته اړتیا لري که پوښتنې نښې ته؟
٦. ښوونکی له ستونزو سره د مخ شوو زده کوونکو سره مرسته کوي.
۷. لږ وخت وروسته ښوونکی د هغوی ځوابونه ګوري.

### ۲. د لغتونو زیرمه (۱۵ دقیقې)

۱. ښوونکی له زده کوونکو څخه پوښتنه کوي چې اوس هم په یاد لرئ چې څنګه کلمې له بېلابېلو کټګوریو سره تړاو لري.
۲. ښوونکی له زده کوونکو څخه غوښتنه کوي چې خپل درسي کتابونو ته ځیر شي. هغوی دوه چوکاټونهویني. د (الف) چوکاټ کلمې د (ب) چوکاټ له کلمو سره مطابقت لري. لومړی کلمه (**ښوونځی**) د (**ښوونکی**) له کلمې سره مطابقت لري ځکه دواړه په یوې ډلې پورې تړاو لري.
۳. ښوونکی له زده کوونکو څخه غوښتنه کوي چې په دوه کسیزه توګه تمرین ترسره کړي.
٤. ښوونکی د زده کوونکو د کار کولو پر مهال په ټولګي کې ګرځي او له ستونزو سره د مخ شوو زده کوونکو سره مرسته کوي.
٥. لږ وخت وروسته ښوونکی د زده کوونکو ځوابونه ګوري.



### ۳. د دویم متن بیا لوستنه (۱۰ دقیقې)

۱- د څلورو پړاوونو (ښوونکی یې تمثیلوي، ښوونکی او زده کوونکي یې په ګډه لولي، زده کوونکي یې په دوه کسیزه توګه لولي، زده کوونکي یې له ځانه سره لولي) په کارولو سره، له زده کوونکو سره د دوهم متن بیا لوستل.

### تکرار او کورنۍ دنده (۵ دقیقې)

۱. **تکرار:** د ټکي او د پوښتنې نښې تکرارول.
۲. **کورنۍ دنده:** ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې جملې په خپلو کورونو کې په خپلو کتابچو کې ولیکئ او دوهم لوست تکرار کړي.

د حسن خط فعالیت، ارزونه او کورنۍ دنده (۴۰ دقیقې)

**فرعي موضوعګانې: پوهه، مطالعه**

**د زده کړې موخې:**

۱- د پام ساتلو تمرین کول.

۲- د نوښتي لیکنې د متن بشپړول.

۳- له مناسب لحن،حرکاتو او٪ ۹۵ سموالي سره د متن لوستل.

### ۱.غوږنیول او خبرې کول (۱۰ دقیقې)

۱. ښوونکی زده کوونکو ته وايي چې موږ به په دې لوست کې د دې په اړه بحث وکړو چې څنګه کولی شو د درس لوستلو ته یا د یو چا خبرو ته ښه پام وکړو. د پام ساتل د زده کړې لپاره ډېر ارزښت لري او له تاسو سره مرسته کوي چې په خپلو کارونو کې بریالي شئ.

۲. ښوونکی زده کوونکو ته وايي چې په ټولګي کې کوم شیان ستاسو پام له درس څخه بلې خوا ته اړوي؟ څو زده کوونکو ته اجازه ورکړئ چې خپل ځوابونه و وايي.

۳. ښوونکی زده کوونکو ته وايي چې په خپلو درسي کتابونو کې اړونده انځورونو ته وګوري او څرګنده کړي چې په کوم انځور کې زده کوونکي درس ته خپل پام ساتي او په کوم انځور کې درس ته پام نه کوي؟

۴. ښوونکی وايي چې زده کوونکي د خپل پام ساتلو لپاره کولی شي لاندې لارې چارې وکاروي، تر څو مو ذهن بلې خوا ته و نه ګرځي:

- شورماشور آرام کړئ

-له هغو شیانو څخه چې پام مو ګډه وډوي ځان لرې وساتئ.

- کله چې یو متن لولئ د هغه لاندې ګوته تېروئ.

- ژوره ساه وباسئ او خپل پام متمرکز کړئ.

- د لوستلو پر مهال خپل لاسونه داسې ونیسئ چې نور شیان و نه وینئ

۵. زده کوونکو ته و وایاست چې د تمرین په کتابونو کې انځورونو ته وګوري. په دې انځورونو کې زده کوونکي د خپل پام ساتلو ځینې لارې چارې کاروي. زده کوونکو ته اجازه ورکړئ چې یو له بل سره د پام ساتلو د ګڼو لارو چارو په اړه بحث وکړي او خپل ځوابونه ټولګیوالو ته و وايي.

٦. له څو زده کوونکو څخه وغواړئ چې د ټولګي په مخ کې د پام ساتلو په اړه تمثیل وکړي. (یو زده کوونکی کوښښ کوي چې په پوره پام او ځیر سره کتاب ولولي په داسې حال کې چې نور زده کوونکي خبرې کوي.) هغه زده کوونکي چې درس وايي روښانه کوي چې خپل درس ته څه ډول پوره پام وساتي.

۷. ښوونکي وايي چې د درس د ښه زده کولو او همدارنګه د بل چا خبرو ته د سم غوږ نیولو لپاره د پام ساتل ډېر اړین او ارزښتناک دي.

### ۲. نوښتي لیکنه (۱۵ دقیقې)

۱. ښوونکی زده کوونکو ته وايي چې اوس به د پام ساتلو په اړه یو متن ولیکي.

۲. ښوونکی زده کوونکو ته وايي چې د درسي کتاب جملې او د چوکاټ کلمې یو له بل سره په ګډه ولولي.




۳. ښوونکی زده کوونکو ته وايي چې د تمرین په کتابونو کې د چوکاټ د کلمو په کارولو سره په تشو ځایونو کې په دوه کسیزه توګه جملې جوړې کړي او نیمګړی متن دې بشپړ کړي.

۴. ښوونکی په ټولګي کې ګرځي او هغو زده کوونکو ته چې ستونزې لري مرسته او لارښوونه کوي.

۵. ښوونکی له څو زده کوونکو غواړي چې خپل بشپړ کړي متنونه ټولګیوالو ته و وايي.

### ۳.د لومړي او دویم متن بیا لوستل (۱۰) دقیقې)

۱. د دوو پړ اوونو (په دوه کسیزه توګه د زده کوونکو لخوا لوستل، د زده کوونکو لخوا له ځان سره لوستل) په کارولو سره لومړی او دوهم متن له زده کوونکو سره تکرارول.

### تکرار او کورنۍ دنده (۵ دقیقې)

۱. **تکرار :** پام ساتلو د لاروچارو تکرار.

۲. **کورنۍ دنده:** د لومړي او دوهم متن بیا لوستل. د نوښتي کیسې بشپړول او یو انځور ورسره اضافه کول.

## موضوع: تکرار او دوامداره ارزونه

**د زده کړې موخې:**

۱- مفرد او جمع کلمو ته له يوه بل سره مطابقت ورکول.
۲- د ټکي او پوښتنې نښې د کارولو تمرين کول.
۳- د کلمو پېژندل.
۴- له ٪ ۹۰ سموالي سره متن لوستل.
۵- د کلمې او جملې په کچه د مناسب فشار او لحن په کارولو سره متن لوستل.
٦- له ٪ ۹۰ سموالي سره کلمې ليکل.

### ۱. کلمې او جملې (۱۰ دقيقې)

۱. ښوونکی د مفرد او جمع کلمو مفکوره له زده کوونکو سره تکراروي.
۲. ښوونکی زده کوونکو ته وايي چې د خپلو کتابونو (الف) تمرين ترسره کړي.
۳. ښوونکی د ټکي او د پوښتنې نښې استعمال له زده کوونکو سره تکراروي.
٤. ښوونکی زده کوونکو ته وايي چې د خپلو کتابونو (ب) تمرين ترسره کړي.
٥. ښوونکی له زده کوونکو سره په ډلو کې د کلمو د مطابقت مفکوره تکراروي.
٦. ښوونکی زده کوونکو ته وايي چې د خپلو کتابونو (ج) تمرين ترسره کړي.
٧. ښوونکی د زده کوونکو ځوابونه ګوري.
٨. ښوونکی د اوږد مهالي ارزونې په کتاب کې يادښت ليکي چې هر زده کوونکی د دې کار په ښه توګه ترسره کولو باندې توانېدلی دی.

### ۲. د لومړي او دويم متن بيا لوستل (۱۰ دقيقې)

۱. ښوونکی زده کوونکو ته په دوه کسيزه توګه د لومړي يا دوهم متن د لوستلو لپاره دوې دقيقې وخت ورکوي.
۲. ښوونکی د زده کوونکو له د(څلورو) جوړو نه غوښتنه کوي چې د ټولګي مخې ته راشي.
۳. ښوونکی هغوی ته وايي چې هره جوړه به د متن يوه برخه لولي. دوی به متن په روانه توګه او د خبرې د اغيزمنتياوو او حرکاتو په ښودلو سره چې ټکی او پوښتنې نښه منعکس کوي، لولي.
٤. ښوونکی زده کوونکو ته وايي چې متن ورو ورو له ځانونو سره ولولي او په ځير سره ورته غوږ ونيسي.
٥. ښوونکی زده کوونکي د لوستلو پر مهال د هغوی د لوست د څرنګوالي مشاهده کوي او د اوږدمهالي ارزونې په فورمه کې يې ثبتوي. له هغه زده کوونکو سره چې په ښه لوستلو کې پاتې راغلل بله اونۍ بايد مرسته وشي.



### ۳. املا (۱۵ دقيقې)

۱. ښوونکی زده کوونکو ته وايي چې هغوی به اوس ځينې توري او کلمې ليکي.
۲. ښوونکی زده کوونکو ته خپل درسي کتاب د بندولو او د تمرين کتاب د پرانيستلو وايي.
۳. ښوونکی لومړی توری(**د**) لولي:(درې ځلې غږ لوستل)، زده کوونکي توری ليکي.
٤. ښوونکی همدا کار د لاندينيو اتو تورو لپاره هم ترسره کوي، لکه: **د ډ، ذ، ر، ړ، ز، ژ، ږ.**
٥. ښوونکی لومړی کلمه **(دنده)** په کراره لولي او څلور ځلې يې تکراروي. زده کوونکي هغه کلمه ليکي.
٦. ښوونکی همدا کار د لاندينيو يوولسو کلمو لپاره هم ترسره کوي: **ډنډ، ذره بين، رڼا، ړنګ، زمرد، مژګان، ږمنځ، کيږدی، کوړ، کاغذ، ربړ.**
٧. ښوونکی زده کوونکو ته وايي چې د تمرين کتابونه د کتلو لپاره راوړي. ښوونکی د هغوی املا ګوري او نومرې ورکوي.
٨. ښوونکی يې د اوږدمهالي ارزونې په کتاب کې ثبتوي چې آيا زده کوونکو وکولای شول چې دا کار په ښه توګه ترسره کړي.

### تکرار او کورنۍ دنده (۵ دقيقې)

۱. **تکرار:** هغه څه تکرارول چې زده کوونکو په دې اونۍ کې زده کړي دي.
۲. **کورنۍ دنده:** ښوونکی زده کوونکو ته وايي چې په کورونو کې د درسونو د هغو برخو بيا ليکل او لوستل دې ترسره کړي چې د اونۍ په جريان کې يې ورسره ستونزې لرلې.

د حسن خط فعاليت، ارزونه او کورنۍ دنده (۴۰ دقيقې)

فرعي موضوع: ښه ټولګیوال          توري: س، ش، ښ

**د زده کړې موخې:**

۱. له ۹۵٪ سموالي سره د ټولو لوستل شویو تورو پېژندل.
۲. له انځور، سرلیک، مهمو کلمو او مختکیني پوښتو څخه په ګټه اخیستنې سره وړاندوینه کول چې کیسه یا متن به د څه په هکله وي.
۳. د پوهې او لاښې روښانتیا د ارزولو لپاره د لوستلو په بهیر کې تم کېدل او فکر کول.
۴. د لوستل شوي متن اصلي مفهوم بیانول.

### ۱. توري او کلمې (۱۰ دقیقې)

۱. ښوونکی دغه توري پر تختې لیکي: **س، ش، ښ.**
۲. ښوونکی له زده کوونکو سره تورو ته اشاره کوي د هر توري نوم او غږ لولي.
۳. ښوونکی د هر توري اړوند کلمې لولي او زده کوونکي د هرې کلمې لاندې ګوته تېره وي.
۴. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې توري او کلمې ولولي او اړوند توري پکې وښيي.
۵. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې د تمرین په کتابونو کې د کلمو لیکل تمرین کړي.
٦. ښوونکی زده کوونکو ته لارښوونه کوي چې هره ورځ په کورونو کې په کتابچو کې د لیکلو تمرین وکړي.
۷. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې د اونۍ په پای کې به دوی همدغه کلمې د املا په توګه و لیکي.

### ۲. د لومړي متن لوستل (۲۵ دقیقې)

**له لوستلو څخه مخکې**

۱. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې عنوان او انځور ته وګوري او وړاندوینه وکړي چې متن به د څه په اړه وي. (په خپلو منځونو کې له خپلو ملګرو سره شریکول او بیا له ټولګیوالو سره شریکول).
۲. ښوونکی درې کلیدي کلمې له زده کوونکو سره معنا او په جملو کې یې استعمالوي.

**د لوستلو پر مهال**

۱. ښوونکی له زده کوونکو سره د تم کېدلو او فکر کولو تګلارې د تمرین کولو په برخه کې کاروي.
۲. ښوونکی د لوستلو متن تمثیلوي.
۳. ښوونکی او زده کوونکي په ګډه متن لولي.
٤. زده کوونکي له ځان سره متن لولي.

**له لوستلو څخه وروسته**

۱. ښوونکی له زده کوونکو څخه پوښتنه کوي چې آیا دکیسې په هکله د هغوی وړاندوینه سمه ده؟ هو/نه
۲. ښوونکی له زده کوونکو څخه لاندې پوښتنې کوي:




- پوښتنه: **ښه ټولګیوال**
**ځواب: له ټولګیوالو سره په ښه چلند.**
- **پوښتنه: د ښه ټولګیوال ځانګړتیاوې کومې دي؟**
**ځواب: ټولګیوالو ته مزاحمت نه کوي، مرسته ورسره کوي، یوځای لوبې کوي او مهربان وي.**
- **پوښتنه: له ټولګیوالو سره ښې اړیکې څه ګټې لري؟**
**ځواب: ښې اړیکې د انسانانو تر منځ مینه او محبت پیدا کوي.**

۳.ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې د متن اصلي مفهوم په لاندې ډول دی: **موږ یو بل ته درناوی کوو، مرسته او سوله ییز ژوند خوښوو.)**

۴.ښوونکی اصلي مفهوم پر تختې لیکي او زده کوونکي یې اصلي مفهوم په خپلو کتابچو کې لیکي.

### تکرار او کورنۍ دنده (۵ دقیقې)

۱. **تکرار:** له زده کوونکو سره د تورو نومونه او غږونه تکرارول.
۲. **کورنۍ دنده:** ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې په کورونو کې توري او کلمې په خپلو کتابچو کې ولیکي او لومړی لوست دې تکرار کړي.

**فرعي موضوع: ښه ټولګیوال**

**د زده کړې موخې:**

۱. مفردو کلمو ته له جمع کلمو سره مطابقت ورکول.
۲. کلمې په دوو ډلو وېشل:
۳. روان لوستل ښه کول.

### ۱. کلمې (۱۰ دقیقې)

۱. ښوونکی له زده کوونکو څخه پوښتنه کوي چې آیا اوس هم په یاد لري چې مفرد او جمع څه ډول کلمې دي.
۲. ښوونکی له زده کوونکو څخه غوښتنه کوي چې د مفردو او جمع کلمو څو بېلګې وړاندې کړي.
۳. ښوونکی له زده کوونکو څخه غوښتنه کوي چې په خپلو کتابونو کې د مفردو کلمو د (الف) په چوکاټ کې لومړۍ کلمې ته ځیر شي او د جمع کلمو د (ب) په چوکاټ کې یې د دې اړونده جمع کلمې سره مطابقت ورکړي.
٤. ښوونکی له زده کوونکو څخه غوښتنه کوي چې په دوه کسیزه توګه تمرین ترسره کړي.
۵. د زده کوونکو د کار کولو پر مهال، ښوونکی په ټولګي کې ګرځي او له هغو زده کوونکو سره چې ستونزې لري مرسته کوي.
٦. لږ وخت وروسته ښوونکی د زده کوونکو ځوابونه ګوري.

### ۲. د لغتونو زېرمه (۱۵ دقیقې)

۱. ښوونکی له زده کوونکو پوښتنه کوي چې آیا اوس هم په یاد لري چې څنګه کلمې له بېلابېلو کټګوریو سره تړاو لري. ښوونکی له زده کوونکو څخه غوښتنه کوي چې یو څو بېلګې وړاندې کړي.
۲. ښوونکی لاندینۍ څلور کلمې پر تخته لیکي: (**سپین غر، تورغر، باباغر، بزګر**) ښوونکی له زده کوونکو څخه غوښتنه کوي چې کلمې ولولي او له هغوی څخه پوښتنه کوي چې په څلورو کلمو کې کومه کلمه د دریوکلمو له ډلې سره مطابقت نه لري. د **بزګر** کلمه د ډلې له نورو کلمو سره مطابقت نه لري.
۳. ښوونکی زده کوونکي ته وایي چې د هغوی د تمرین په کتابونو کې دا ډول کلمې ډېرې دي. ښوونکی د کلمو لومړۍ خط له زده کوونکو سره په ګډه تمرین کوي.
٤. ښوونکی زده کوونکو ته په دوه کسیزه توګه د تمرین ترسره کولو او د هغې کلمې د پیدا کولو وایي چې د



کلمې

الف: مېز، قلم، توپ، مېنه، کتابچه

ب: قلمونه، کتابچې، مېنې، توپونه، مېزونه

د لغتونو زېرمه

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| ۱ | سپین غر | تورغر | باباغر | بزګر |
| ۲ | کتاب | ګل | خط کښونه | قلم |
| ۳ | لوبغاړي | لوبه | تېره | بېټ |
| ۴ | الماري | کاغذ | کتابونه | ونه |
| ۵ | ښایسته | ښکلې | ښه | کمپیوترونه |
| ۶ | تجربې | هلکان | زنګ | ماشوم |

د لومړي متن بیا لوستل

ډلې له دریو نوروکلمو سره مطابقت نه لري.
۵. د زده کوونکو د کار کولو پر مهال، ښوونکی په ټولګي کې ګرځي چې له ستونزو سره مخ شویو زده کوونکو سره مرسته وکړي.
٦. لږ وخت وروسته ښوونکی د زده کوونکو ځوابونه ګوري.

### ۳. د لومړي متن بیا لوستل (۱۰ دقیقې)

۱. د څلورو پړاوونو (ښوونکی یې تمثیلوي، ښوونکی او زده کوونکي یې په ګډه لولي، زده کوونکي یې په دوه کسیزه توګه لولي، زده کوونکي یې له ځانه سره لولي) په کارولو سره، له زده کوونکو سره د لومړي متن بیا لوستل.

### تکرار او کورنۍ دنده (۵ دقیقې)

۱. **تکرار:** مفردو او جمع کلمو تکرارول.
۲. **کورنۍ دنده:** ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې کلمې په خپلو کورونو کې په کتابچو کې ولیکئ او لومړی لوست تکرار کړي.

**فرعي موضوع: کتاب** **توري: ص، ض، ط، ظ، ع، غ**

**د زده کړې موخې:**

۱- له ٪ ۹۵ سموالي سره د ټولو لوستل شوو تورو پېژندل.
۲- له انځور، سرلیک، مهمو کلمو او مخکینۍ پوهې څخه په ګټې اخیستنې سره وړاندوینه کول چې کیسه یا متن به د څه په هکله وي.
۳- د پوهې او لانبې روښانتیا د ارزولو لپاره د لوستلو په بهیر کې تم کېدل او فکر کول.
۴- د لوستل شوي متن اصلي مفهوم بیانول.

### ۱. توري او کلمې ا(۱۰ دقیقې)

۱. ښوونکی دغه توري پر تختې لیکي: **ص، ض، ط، ظ، ع، غ.**
۲. ښوونکی له زده کوونکو سره تورو ته اشاره کوي د هر توري نوم او غږ لولي.
۳. ښوونکی د هر توري اړوند کلمې لولی او زده کوونکي د هرې کلمې لاندې ګوته تیره وي.
۴. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې توري او کلمې ولولي او اړوند توری پکې وښيي.
۵. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې د تمرین په کتابونو کې د کلمو لیکل تمرین کړي.
٦. ښوونکی زده کوونکو ته لارښوونه کوي چې هره ورځ په کورونو کې په کتابچو کې د لیکلو تمرین وکړي.
۷. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې د اونۍ په پای کې به دوی همدغه کلمې د املا په توګه و لیکي.

### ۲. د دویم متن لوستل (۲۵ دقیقې)

**له لوستلو څخه مخکې**

۱. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې عنوان او انځور ته وګوري او وړاندوینه وکړي چې متن به د څه په اړه وي. په خپلو منځونو کې، له خپل ملګري سره بیا له ټولګیوالو سره شریکول.
۲. ښوونکی درې کلیدي کلمې له زده کوونکو سره معنا او په جملو کې یې استعمالوي.

**د لوستلو پر مهال**

۱. ښوونکی له زده کوونکو سره د تم کېدلو او فکر کولو تګلارې بحث کوي.
۲. ښوونکی د لوستلو متن تمثیلوي.
۳. ښوونکی او زده کوونکي په ګډه متن لولي.
٤. زده کوونکي له ځان سره متن لولي.

**له لوستلو څخه وروسته**

۱. ښوونکی له زده کوونکو څخه پوښتنه کوي چې آیا دکیسې په هکله د هغوی وړاندوینه سمه ده؟ هو/نه
۲. ښوونکی له زده کوونکو څخه لاندې پوښتنې کوي:




**- پوښتنه: ښه دوست او ملګري مو څه شی دی؟**
**ځواب: ښه دوست او ملګری مو کتاب دی.**
**- پوښتنه: خپل کتابونه باید څنګه وساتو؟**
**ځواب: خپل کتابونه باید پاک وساتو، په پاڼو کې یې لیکل ونکړو او خیرې یې نه کړو.**
**- پوښتنه: د کتاب لوستل کومې ګټې لري؟**
**ځواب: د کتابونو لوستلو په واسطه پوهه او علم ترلاسه کوو.**
**- پوښتنه: که کتاب نه وای، په زده کړه کې به له کومو ستونزو سره مخ شوي وای؟**
**ځواب: لیکل او لوستل به مو نشو کولای او په ډېرو برخو کې به مو معلومات نه درلودلی.**

۳.ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې د متن اصلي مفهوم په لاندې ډول دی: **د کتابونو په لوستلو سره پوهه ترلاسه کوو.**
۴.ښوونکی اصلي مفهوم پر تختې لیکي او زده کوونکي یې اصلي مفهوم په خپلو کتابچو کې لیکي.

### تکرار او کورنۍ دنده (۵ دقیقې)

۱. **تکرار:** له زده کوونکو سره د تورو نومونه او غږونه تکرارول.
۲. **کورنۍ دنده:** ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې توري او کلمې په خپلو کورونو کې په کتابچو کې ولیکي او دوهم متن تکرار کړي.

**فرعي موضوع: کتاب**

**د زده کړې موخې:**

١. د ټکي (.) او پوښتنې نښې (؟) د کارولو تمرین کول.
٢. په دوه ډلو کې د کلمو وېشل:
٣. روان لوستل ښه کول.

### ١. جملې (١٠ دقيقې)

١. ښوونکی له زده کوونکو څخه غوښتنه کوي چې هغوی دې ټکی(.) او پوښتنې نښه (؟) په عملي توګه وکاروي.
٢. ښوونکی زده کوونکو ته وايي چې خپلو کتابونو ته ځير شي. په کتاب کې (۵) جملې دي چې ټکي يا هم د پوښتنې نښې ته اړتيا لري.
٣. ښوونکی زده کوونکو ته وايي چې په دوه کسيزه توګه کار وکړي او وليکي چې آيا جملې ټکي ته اړتيا لري که د پوښتنې نښې ته؟
٤. ښوونکی له هغو زده کوونکو سره مرسته کوي چې ستونزې لري.
٥. لږ وخت وروسته ښوونکی د هغوی ځوابونه ګوري.
٦. ښوونکی د اوړد مهالي ارزونې په کتاب کې يادښت ليکي چې آيا زده کوونکي د دې کار په ښه توګه ترسره کولو توانېدلي دي؟

### ٢. د لغتونو زيرمه (١٥ دقيقې)

١. ښوونکی له زده کوونکو پوښتنه کوي چې آيا اوس هم په ياد لري چې څنګه کلمې له بېلابېلو ډلو سره تړاو لري.
٢. ښوونکی لاندينۍ څلور کلمې پر تخته ليکي:(**ديوال، کور، کوټه، آسمان** ) ښوونکی له زده کوونکو څخه غوښتنه کوي چې دا کلمې ولولي او له هغوی څخه پوښتنه کوي چې په څلورو کلمو کې کومه کلمه له دې نورو کلمو سره مطابقت نه لري. د(**آسمان**) کلمه د ډلې له نورو کلمو سره مطابقت نه لري.
٣. ښوونکی زده کوونکو ته وايي چې د هغوی د تمرين په کتابونو کې دا ډول نورې کلمې هم شته. ښوونکی د کلمو لومړی خط له زده کوونکو سره په ګډه تمرين کوي.
٤. ښوونکی زده کوونکو ته په دوه کسيزه توګه د تمرين ترسره کول او د هغې کلمې د پيدا کولو وايي چې د ډلې له نورو کلمو سره مطابقت نه لري.
٥. د زده کوونکو د کار کولو پر مهال، ښوونکی په ټولګي کې ګرځي او له ستونزو سره مخ شوو زده کوونکو سره مرسته کوي.



جملې

د لغتونو زیرمه

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| ۱ | دیوال | کور | کوټه | آسمان |
| ۲ | رسم | انګور | کتابچه | رنګې |
| ۳ | قلم | باغ | کاغذ | رنګ |
| ۴ | کتاب | مجله | غر | کتابتون |
| ۵ | انار | مېوه | مڼه | خط کش |
| ۶ | دقیقه | موټر | ثانیه | ساعت |

د دویم متن بیا لوستل

٦. لږ وخت وروسته ښوونکی د زده کوونکو ځوابونه ګوري.
٧. ښوونکی د اوږدمهالي ارزونې په کتاب کې يادښت ليکي چې آيا هر زده کوونکی د دې کار په ښه توګه په ترسره کولو باندې توانېدلي دي؟

### ٣. د دويم متن بيا لوستل (١٠ دقيقې)

١- د څلورو پړاوونو (ښوونکی يې تمثيلوي، ښوونکی او زده کوونکي يې په ګډه لولي، زده کوونکي يې په دوه کسيزه توګه لولي، زده کوونکي يې له ځانه سره لولي) په کارولو سره له زده کوونکو سره دوهم متن بيا لولي.

### تکرار او کورنۍ دنده (۵ دقيقې)

١. **تکرار:** د ټکي او د پوښتنې د نښې بيا تکرارول.
٢. **کورنۍ دنده:** ښوونکی زده کوونکو ته وايي چې جملې په کورونو کې په خپلو کتابچو کې وليکئ او د لومړي او دوهم متن لوستل تکرار کړي.

د حسن خط فعاليت، ارزونه او کورنۍ دنده (۴۰ دقيقې)

## فرعي موضوعګانې: ښه ټولګيوال او کتاب

**د زده کړې موخې:**
۱- د ځان د اداره کولو تمرين کول.
۲- د نوښتي ليکنې د متن بشپړول.
۳- له مناسب لحن،حرکاتو او٪ ۹۵ سموالي سره د متن لوستل.

### ۱.غوږنيول او خبرې کول (۱۰ دقيقې)

۱. ښوونکی زده کوونکو ته وايي نن به په دې اړه بحث وکړو چې څنګه کولی شو خپل ځانونو ته پام وکړو؟ ښوونکی څرګندوي چې تاسو ځينې وخت يو کار ترسره کوئ، خو په هغه وخت کې يې ترسره کول مناسب نه وي يا د دې کار ترسره کول خطرناک وي يا ښه کار نه وي. د خپل ځان اداره کول له تاسو سره مرسته کوي چې په کور، ښوونځي، ټولنه او ژوند کې بريالي واوسئ.
۲. ښوونکی زده کوونکو ته ځينې مثالونه وايي: کله چې تاسو پر خپل ملګري غوسه ياست، نو کيدای شي وغواړئ هغه ووهئ چې دا ښه کار نه دی، تاسو بايد خپل ځان اداره کړئ. کله چې ښوونکی پوښتنه کوي نو تاسو بايد په خپل وار ځواب و واياست. کله چې هوا ښه وي او تاسو غواړئ چې له ټولګي څخه بهر لوبې وکړئ، نو تاسو بايد خپل حواس اداره کړئ او له لوبو وروسته خپل ځان ته و واياست چې نور نو بايد ټولګي ته ولاړ شو. کله چې غواړئ له سړک څخه تېر شئ، نو لومړی د سړک پر غاړه ودرېږئ او دواړو خواوو ته وګورئ چې په سړک څه شی نشته او وروسته له سړک څخه تير شئ. کله چې چای څښئ، نو لومړی يې وګورئ چې ډېر ګرم نه وي او د دې کار په ترسره کولو سره د خپلې خولې د سوځيدو مخ نيوی وکړئ.
۳. ښوونکی زده کوونکو ته وايي چې په درسي کتابونو کې انځورونو ته وګوري او و وايي چې که خپل ځانونه اداره نه کړو څه ستونزه به رامنځ ته شي؟
۴. ښوونکو زده کوونکو ته وايي چې د ځينو نورو وختونو په اړه فکر وکړي چې خپل ځانونه پکې بايد اداره کړي. زده کوونکو ته اجازه ورکړئ چې په دوه کسيزه توګه فکر وکړي او څو زده کوونکي دې خپل ځوابونه له ټولګيوالو سره شريک کړي.
۵.لوبه: ښوونکی زده کوونکو ته وايي چې زه تاسو د ځينو کارونو ترسره کولو ته رابولم، خوکله چې ما د دې کارونو د ترسره کولو لپاره له تاسو څخه غوښته وکړه او د (هو) کلمه مې وويله، نو تاسو به يې ترسره کوئ او که د (هو) کلمه مې ونه ويله، نو هغه کار به نه ترسره کوئ؟
- بلی، ودرېږئ - هو،کښينئ- خپل لاسونه پورته کړئ - پوزې مو ونيسئ - هو، لاسونه مو پورته کړئ - غوږونه مو ونيسئ - هو، غوږونه مو ونيسئ.
۶. ښوونکی څرګندوي موږ بايد خپل ځان اداره کړو چې دغه کار له موږ سره مرسته کوي، ترڅو په ټولګي او کور کې ښې کړنې ترسره کړو او بريالي واوسو.

### ۲. نوښتي ليکنه (۱۵ دقيقې)

۱. ښوونکی زده کوونکو ته وايي چې هغوی به اوس خپلو کړو وړو ته د پام کولو په اړه يو متن وليکي.




۲. ښوونکی زده کوونکو ته وايي چې د درسي کتاب جملې او د چوکاټ کلمې په يوازې توګه ولولي.
۳. ښوونکی زده کوونکو ته وايي چې د تمرين په کتابونو کې د چوکاټ د کلمو په کارولو سره په تشو ځايونو کې په يوازې توګه جملې جوړې کړي او نيمګړی متن بشپړ کړي.
۴. ښوونکی په ټولګي کې ګرځي او هغو زده کوونکو ته چې ستونزې لري مرسته او لارښوونه کوي.
۵. ښوونکی له څو زده کوونکو غواړي چې خپل بشپړ کړي متنونه ټولګيوالو ته و وايي.

### ۳.د لومړي او دويم متن بيا لوستل (۱۰دقيقې)

۱. د دوو پړاوونو (په دوه کسيزه توګه او له ځان سره لوستل) په کارولو سره لومړی او دوهم متن له زده کوونکو سره تکرارول.

### تکرار او کورنۍ دنده (۵ دقيقې)

۱. **تکرار:** د هغو وختونو او حالتونو تکرارول چې ځانونه بايد پکې اداره کړو.
۲. **کورنۍ دنده:** د لومړي او دوهم متن بيا لوستل. د نوښتي کيسې بشپړول او يو انځور ورسره اضافه کول.

## فرعي موضوع: تکرار او دوامداره ارزونه

**د زده کړې موخې:**

۱- دا معلومول چې کومه کلمه د جمع کلمه نه ده.
۲- د ټکي او د پوښتنې د نښې د کارولو تمرین کول.
۳- کلمې ته له ورته کټګورۍ سره مطابقت ورکول.
۴- له٪ ۹۰ سموالي سره متن لوستل.
۵- د کلمې او جملې په کچه د مناسب فشار او لحن په کارولو سره متن لوستل.
۶- له٪ ۹۰ سموالي سره کلمې لیکل.

### ۱. کلمې او جملې (۱۰ دقیقې)

۱. ښوونکی د مفرد او جمع کلمو مفکوره له زده کوونکو سره تکراروي.
۲. ښوونکی زده کوونکو ته وايي چې د خپلو کتابونو (الف) تمرین ترسره کړي.
۳. ښوونکی د ټکي او د پوښتنې نښې کارول استعمال له زده کوونکو سره تکراروي.
۴. ښوونکی زده کوونکو ته وايي چې د خپلو کتابونو (ب) تمرین ترسره کړي.
۵. ښوونکی له زده کوونکو سره د (ج) په چوکاټ کې دا روښانه کوي چې د هر کتار په کلمو کې کومه کلمه له نورو سره مطابقت نه لري.
۶. ښوونکی زده کوونکو ته وايي چې د خپلو کتابونو (ج) تمرین ترسره کړي.
۷. ښوونکی د زده کوونکو ځوابونه ګوري.
۸. ښوونکی د اوړدمهالې ارزونې په کتاب کې یادښت لیکي چې هر زده کوونکی په ښه توګه د دې کار ترسره کولو باندې توانېدلی دی.

### ۲. د لومړي او دویم متن بیا لوستل (۱۰ دقیقې)

۱. ښوونکی زده کوونکو ته په دوه کسیزه توګه د لومړي یا دوهم متن د لوستلو لپاره ۲ دقیقې وخت ورکوي.
۲. ښوونکی د زده کوونکوله ۴ جوړو نه غوښتنه کوي چې د ټولګي مخې ته راشي.
۳. ښوونکی هغوی ته وايي چې هره جوړه به د متن یوه برخه لولي. دوی به متن په روانه توګه او د خبرې د اغېزمنتیاوو او حرکاتو په ښودلو سره چې ټکی(.) او د پوښتنې نښه(؟) منعکس کړي، لولي.
۴. ښوونکی زده کوونکو ته وايي چې ورو ورو متن له نورو سره ولولي او په دقت سره ورته غوږ ونیسي.
۵. کله چې زده کوونکي په لوستلو بوخت وي، ښوونکی د هغوی د لوستلو څرنګوالی مشاهده کوي او د ارزونې په کتاب کې يې ثبتوي. هغه زده کوونکي چې نه شي کولای دا فعالیت ترسره کړي په بله اونۍ کې دې ورسره مرسته وکړي.




### ۳. املا (۱۵ دقیقې)

۱. ښوونکی زده کوونکو ته وايي چې هغوی به اوس ځینې توري او کلمې لیکي.
۲. ښوونکی زده کوونکو ته خپل درسي کتاب د بندولو او خپل د تمرین کتاب د پرانیستلو وايي.
۳. ښوونکی لومړی توری **(س)** لولي: (درې ځلې غږ لوستل)، زده کوونکي توری لیکي.
۴. ښوونکی همدا کار د لاندینیو (۷) تورو لپاره هم ترسره کوي: **ش، ښ، ص، ض، ط، ظ، ع، غ**
۵. ښوونکی لومړی کلمه**(سلام)** په کراره لولي او (۴) ځلې يې تکراروي. زده کوونکي هغه کلمه لیکي.
۶. ښوونکی همدا کار د لاندینیو (۱۱) کلمو لپاره هم ترسره کوي: **شفتالو، ښار، صابون، حوض، طاووس، طاهر، نعناع، غوږ، احتیاط، بیرغ، خوښ.**
۷. ښوونکی زده کوونکو ته وايي چې د تمرین کتابونه د کتلو لپاره راوړي. ښوونکی د هغوی املا ګوري او نومري ورکوي.
۸. ښوونکی د اوږدمهالې ارزونې په کتاب کې ثبتوي چې زده کوونکو وکولای شول دا کار په ښه توګه ترسره کړي.

### تکرار او کورنۍ دنده (۵ دقیقې)

۱. **تکرار:** هغه څه تکرارول چې زده کوونکو په دې اونۍ کې زده کړي دي.
۲. **کورنۍ دنده:** ښوونکی زده کوونکو ته وايي چې په کورونو کې د درسونو د هغو برخو بیا لیکل او لوستل دې ترسره کړي چې د اونۍ په جریان کې يې ورسره ستونزې لرلې.

د حسن خط فعالیت، ارزونه او کورنۍ دنده (۴۰ دقیقې)

## د دوهمې برخې عمومي کتنه: اصلي موضوع: ټولنه

د لوستلو او ليکلو موخې:
زده کوونکي به د دې برخې تر پايه دا وړتيا ترلاسه کړي چې:
١. له٪ ۹۵ سموالي سره تکرار شوي توري ولولي او وېي ليکي.
٢. په مرکبو نومونو باندې پوه شي او کارول يې زده کړي.
٣. د مهمو کلمو پر معنا به پوه شي.
٤. په دې اړه دا وړاندوينه کول چې کيسه يا متن به د څه په اړه وي له انځور، سرليک، مهمو کلمو او مخکينۍ پوهې څخه ګټه واخلي.
٥. د پوهې د لاښې روښانتيا لپاره د يوه متن برخې تکراري ولولي.
٦. د څوک، څه، کله، چېرته او څرنګه په څېر پوښتنې به ځواب کړي.
٧. د يو کرکټر د تشريح کولو لپاره به يوه جمله وليکي.
٨. په عامه توګه کارول کېدونکي متضادې او مخالفې معناګانې به وکاروي.
٩. له٪ ۸۰ سموالي سره د لوستلو پوښتنې به ځواب کړي.
١٠. ٪۸۰ کلمې په سمه ټوګه وليکي.
١١. يوه لنډه کيسه به وليکي چې پيل، منځ او پای ولري.
١٢. زده کوونکي به په نسخ خط سره مرکبې کلمې د کرسۍ خط پر مخ په صحيح او ښکلې بڼه وليکلای شي.

**د حسن خط فعاليت (۳۵دقيقې)**

ښوونکي دې د لاربنود د مقدمې د (۲۲- ۲۳) مخونو د لارښوونو سره سم مرکبې کلمې تدريس کړي.

**د حسن خط ارزونه او کورنۍ دنده(۵ دقيقې)**

۱- له څو زده کوونکو څخه د کلمو د ښايسته ليکلو په اړه پوښتنه وکړي.
۲- زده کوونکي دې له کړکي(نی قلم) يا پنسل قلم سره مرکبې کلمې په کورونو کې تمرين کړي.

**د ټولنيزې عاطفي زده کړې موخې:**
زده کوونکي به د دې برخې تر پايه د دې وړتيا ترلاسه کړي چې:
١. د معلوماتو د ساتلو وړتيا ښودل او په ذهن کې يې تازه کول.
٢. په ذهن کې د معلوماتو ساتل او په اړونده کارونو کې يې کارول.
٣. په سمه توګه د پېښو د تنظيمولو وړتيا ښودل.

**د لوست پيل (۵ دقيقې)**: د لوست د پيل ټول مقدماتي فعاليتونه دې ترسره شي.

### د دې برخې ځانګړي فعاليتونه

١. تخليقي ليکل
٢. يوه کيسه ليکل چې پيل، منځ او پای ولري.
٣. ښوونکی زده کوونکو ته وايي چې اوس به هغوی د ځارويو يوه کيسه وليکي. دا کيسه کټ مټ هماغه کيسې ته ورته ده چې هغوی په دې اونۍ کې په خپلو درسي کتابونو کې لوستلې ده. کيسه پيل، منځ او پای لري.
٤. ښوونکی زده کوونکو ته وايي چې هغوی به په ګډه يوه کيسه جوړوي. ښوونکی له زده کوونکو سره د يوې نوې کيسې په اړه فکر کولو کې د مرستې په موخه لانديني پوښتنې کوي. کرکټر چېرته اوسېږي؟ د هغوی د کيسې په سر کې څه پېښېږي؟ د هغوی د کيسې په منځ کې څه پېښېږي؟ د هغوی کيسه څنګه پای مومي؟ څرنګه چې اړين و، ښوونکی زده کوونکو ته نظرونه ورکوي او په ګډه د يوې کيسې په جوړولو کې ورسره مرسته کوي.
٥. ښوونکی پر توره تخته درې داسې چوکاټونه رسموي کوم چې په درسي کتاب کې ورکړل شوي دي.
٦. ښوونکی زده کوونکي ته وايي اوس به د دغو چوکاټونو په ګټې اخيستنې سره يوه کيسه وليکي.
٧. ښوونکی له زده کوونکو څخه پوښتنه کوي چې زموږ د کيسې په سر کې څه پېښ شوي وو؟ لومړی زده کوونکي ځواب ورکوي او ښوونکی جمله(جملې) پر تخته د کيسې پيل چوکاټ کې ليکي.
٨. ښوونکی له زده کوونکو څخه پوښتنه کوي چې زموږ د کيسې په منځ کې څه پېښ شوي وو؟ زده کوونکي ځواب ورکوي او ښوونکی جمله (جملې) پر تخته د کيسې د منځ په چوکاټ کې ليکي.
٩. ښوونکی له زده کوونکو نه پوښتنه کوي چې زموږ د کيسې په پای کې څه پېښ شوي وو؟ زده کوونکي ځواب ورکوي او ښوونکی جمله (جملې) پر تخته د کيسې پای چوکاټ کې ليکي.
١٠. زده کوونکي جملې خپل د تمرين کتابونو کې ليکي.
١١. کله چې متن پوره شي، ښوونکی دوه يا درې زده کوونکو ته د هغه څه د لوستلو وايي چې هغوی ليکلي دي.
١٢. که وخت وي ښوونکی زده کوونکو ته وايي چې له خپل متن سره يو انځور رسم کړي.

**د لوستلو فعاليت پر مهال**
**د مفهوم اخيستلو لپاره بيا لوستل**

ښوونکی زده کوونکو ته وايي چې کله تاسو لوست لولئ وګورئ چې آيا ورباندې پوهېږئ او که نه.
ښوونکی زده کوونکو ته وايي چې په دې برخه کې به دوی د مفهوم اخيستلو لپاره بيا لوستل تمرين کړي، يعنې کله چې تاسې يو متن لولئ تاسې په ځينو برخو نه پوهېږئ، نو د دې لپاره چې تاسې پوه شی نو يوه جمله يا څو جملې بيا لولئ.
ښوونکی د دې کار ترسره کول په عملي توګه تمثيلوي.
ښوونکی لومړی پاراګراف لولي او د مفهوم اخيستلو لپاره بيا لوستل تمثيلوي. ښوونکی د متن يوه برخه لولي او بيا تم کېږي او په لوړ غږ وايي باور نه لرم چې زه پوهېږم او که نه؟ راځئ چې دا جمله يو ځل بيا ولولم. بيا ښوونکی هغه جمله بيا لولي او وايي، زه اوس په دې ښه وپوهيدم.
ښوونکی زده کوونکو ته وايي هغه به اوس بل پاراګراف په ګډه له زده کوونکو سره ولولي او د مفهوم اخيستلو لپاره به يې بيا ولولي.

فرعي موضوع: ښه ملګرتیا          توري: ف، ق، ک، ګ، ل، م

**د زده کړې موخې:**

۱. له٪ ۹۵ سموالي سره د ټولو لوستل شویو تورو پیژندل.
۲. له٪ ۹۵ سموالي سره ټول لوستل شوي توري په ګوته کول.
۳. دا وړاندوینه کول چې یوه کیسه یا متن به د څه په اړه وي له انځور، سرلیک، مهمو کلمو او مخکینۍ پوهې څخه ګټه اخیستل.
٤. د مفهوم اخیستلو لپاره بیا لوستل.
٥. د کرکټر په اړه پوښتنو ته ځواب ویل .

### ۱. توري او کلمې (۱۰ دقیقې)

۱. ښوونکی دغه توري پر تخته لیکي: **ف، ق، ک، ګ، ل، م** ښوونکی هر توري ته اشاره کوي او وایي: د توري نوم **(فې)** دی او غږیې **/ ف /** دی.
۲. ښوونکی له زده کوونکو سره تورو ته اشاره کوي د هر توري نوم او غږ لولي.
۳. ښوونکی د هر توري اړوند کلمې لولي او زده کوونکي د هرې کلمې لاندې ګوته تیره وي.
٤. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې توري او کلمې ولولي او اړوند توري پکې وښیي.
٥. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې د تمرین په کتابونو کې د کلمو لیکل تمرین کړي.
٦. ښوونکی زده کوونکو ته لارښوونه کوي چې هره ورځ په کورونو کې په کتابچو کې د لیکلو تمرین وکړي.
۷. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې د اونۍ په پای کې به دوی همدغه کلمې د املا په توګه و لیکي.

### ۲. د لومړي متن لوستل (۲۵ دقیقې)

**له لوستلو څخه مخکې**

۱. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې سرلیک او انځور ته وګوري او وړاندوینه وکړي چې متن به د څه په اړه وي په (په خپلو کې شریکول او بیا له ټولګیوالو سره شریکول.)
۲. ښوونکی درې کلیدي کلمې له زده کوونکو سره معنا او په جملو کې یې استعمالوي.

**د لوستلو پر مهال**

۱. ښوونکی د کیسې د متن لوستل تمثیلوي.
۲. ښوونکی او زده کوونکي متن یوځای لولي.
۳. زده کوونکي له ځان سره متن لولي.
٤. ښوونکی زده کوونکو ته ښیي چې د مفهوم اخیستلو لپاره د بیا لوستلو ستراتیژي څخه څنګه کولای شي ګټه واخلي.


۴ اونۍ
توري او کلمې

| ف | ق | ک | ګ | ل | م |
|---|---|---|---|---|---|
| فیل مرغه | قلم | کوتره | ګل | لعل | مرغه |
| معارف | برق | موږک | چرګ | فیل | سلام |

ښه ملګري

**له لوستلو څخه وروسته**

۱. ښوونکی له زده کوونکو څخه پوښتنه کوي چې د کیسې په اړه یې وړاندوینه سمه ده؟ (هو/نه).
۲. ښوونکی له زده کوونکو څخه لاندې پوښتنې کوي:
- **پوښتنه: چا له موږک څخه مرسته وغوښته.**
**ځواب: کوترې.**
- **پوښتنه: ولې کوتره موږک ته ورغله؟**
**ځواب: ځکه د فیل مرغې بچی په اغزن بوټي کې نښتی و.**
- **پوښتنه: ولې کوترې له موږک څخه د مرستې غوښتنه وکړه؟**
**ځواب: د فیل مرغې د بچي د خلاصولو لپاره.**
- **پوښتنه: له دې کیسې نه مو څه زده کړل؟**
**ځواب: ښه ملګرتیا، مرسته، زړه سوی او مهرباني.**
۳. ښوونکی زده کوونکو ته د یوې کیسې د کرکټر رول تشریح کول ښیي . ځواب: **کوترې او موږک له فیل مرغې سره مرسته وکړه فیل مرغه خوشحاله شوه.**
٤. ښوونکي زده کوونکو ته د دوو جملو د لیکلو طریقه ښیي چې د کرکټر ځانګړنې بیانوي.

### تکرار او کورنۍ دنده (۵ دقیقې)

۱. **تکرار:** ښوونکی له زده کوونکو سره د تورو نومونه او غږونه تکراروي.
۲. **کورنۍ دنده:** زده کوونکي توري او کلمې په خپلو کورونو کې په کتابچو کې لیکي او لومړی متن تکراروي.

**فرعي موضوع: ښه ملګرتیا**

**د زده کړې موخې:**

۱. د دوو کلمو سره یو ځای کول او د یوې مرکبې کلمې جوړل.
۲. د کلمو ډلبندي کول.
۳. روان لوستل ښه کول.

### ۱. کلمې (۱۰ دقیقې)

۱. ښوونکی زده کوونکو ته دوه کلمې (**خوشحال** او **مینه**) ښیي. ښوونکی وایي که چېرې دا دوه کلمې یوځای شي، دا یوه نوې کلمه جوړوي.
۲. ښوونکی همدا کار د لاندینیو بېلګو لپاره هم ترسره کوي:
**فیل + مرغه= فیل مرغه**
۳. ښوونکی تشریح کوي چې کله یو سړی دوه کلمې سره یوځای کړي، نو نوې کلمه ترې جوړېږي او نوی معنا لري.
٤. ښوونکی پر توره تخته لاندینی بېلګې لیکي: (**سپین، شپه، غر**)
٥. ښوونکی له زده کوونکو د کلمو د لوستلو غوښتنه کوي.
٦. ښوونکی له زده کوونکو پوښتنه کوي چې کومې دوه کلمې چې یوځای شي نوې کلمه جوړوي چې نوې معنا لري. (**ځواب: سپین غر**)
٧. ښوونکی له زده کوونکو د کلمو د لوستلو غوښتنه کوي.
٨. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې خپل درسي کتاب ته ځیر شي او لومړۍ دوه بېلګې له زده کوونکو سره یوځای ترسره کړي.
٩. بیا زده کوونکي په ګډه سره کار کولو ته ادامه ورکوي. ښوونکی په زده کوونکو باندې ټینګار کوي چې یو بل ته په فعاله توګه غوږ ونیسي.
١٠. کله چې زده کوونکي په کار بوخت وي، ښوونکی په ټولګي کې ګرځي او له هغو زده کوونکو سره مرسته کوي چې ستونزې لري.
١١. ١٠. ښوونکی ځوابونه له زده کوونکو سره ګوري. ښوونکی له زده کوونکو څخه غوښتنه کوي چې څه شی یې په دې درس کې زده کړي، تکرار دې کړي.




### ۲. د لغتونو زېرمه (۱۵ دقیقې)

۱. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې تاسې به د متضادو کلمو په اړه نور معلومات ترلاسه کړئ. ښوونکی یو غټ پنسل او یو کوچنی پنسل زده کوونکو ته ښیي. ښوونکی وایي: دا پنسل کوچنی دی او دا پنسل غټ دی. دا پنسلونه د اندازې له پلوه د یو بل ضد دي.
۲. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې خپل درسي کتابونو ته ځیر شي. هغوی د بېلابېلو شیانو لوی او واړه انځورونه ویني ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې د لوی کلمه د واړه کلمې متضاد ده.
۳. ښوونکی لومړی تمرین له زده کوونکو سره په ګډه ترسره کوي او زده کوونکو ته ښیي چې څنګه دوه متضاد څیزونه د یو خط په مرسته سره نښلول کېږي.
٤. ښوونکی زده کوونکو ته د تمرین په کتابونو کې د کار کولو لارښوونه کوي. کله چې زده کوونکي په کار بوخت وي، ښوونکی په ټولګي کې ګرځي چې له ستونزو سره مخامخ شوو زده کوونکو سره مرسته وکړي.
٥. لږ وخت وروسته، ښوونکی د زده کوونکو ځوابونه ګوري.
٦. ښوونکی له زده کوونکو څخه غوښتنه کوي هغه څه بیان کړي چې په دې درس کې یې زده کړي دي. (ځواب: مور د متضادو کلمو په اړه زده کړه ترلاسه کړې ده.)

### ۳. د لومړي متن بیا لوستل (۱۰ دقیقې)

د ځلور پړاوونو څخه په ګټې اخیستنې (لکه ښوونکی یې تمثیلوي، ښوونکی او زده کوونکي یې په ګډه سره لولي، زده کوونکي یې په دوه کسیزه توګه لولي او زده کوونکي یې له ځانه سره لولي) په ترسره کولو کې ه له زده کوونکو سره لومړی متن بیا لولي.

### تکرار او کورنۍ دنده (۵ دقیقې)

١. **تکرار:** د مفرد او جمع کلمو مفهوم بیا لوستل او د مرکب نومونو پر مفهوم او مفکوره بیا کتنه.
**۲. کورنۍ دنده:** ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې په کورونو کې کلمې په خپلو کتابچو کې ولیکي او لومړی متن بیا تکرار کړي.

**فرعي موضوع: ښه ګاونډي** **توري: ن، ڼ**

**د زده کړې موخې:**

۱- له٪ ۹۵ سموالي سره د ټولو لوستل شویو تورو پیژندل.

۲- له انځور، سرلیک، مهمو کلمو او مخکینۍ پوهې څخه په ګټې اخیستنې سره وړاندوینه کول چې یوه کیسه یا متن به د څه په هکله وي.

۳- د پوهې او لاښې روښانتیا د ارزولو لپاره د لوستلو په بهیر کې تم کېدل او فکر کول.

٤- د لوستلو د متن اصلي مفهوم بیانول.

### ۱. توري او کلمې (۱۰ دقیقې)

۱. ښوونکی دغه توري پر تختې لیکي: **ن، ڼ**

۲. ښوونکی له زده کوونکو سره تورو ته اشاره کوي د هر توري نوم او غږ لولي.

۳. ښوونکی د هر توري اړوند کلمې لولي او زده کوونکي د هرې کلمې لاندې ګوته تیره وي.

٤. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې کلمې ولولي او اړوند توري پکې وښیي.

۵. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې د تمرین په کتابونو کې د کلمو لیکل تمرین کړي.

٦. ښوونکی زده کوونکو ته لارښوونه کوي چې هره ورځ په کورونو کې په کتابچو کې د لیکلو تمرین وکړي.

۷. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې د اونۍ په پای کې به دوی همدغه کلمې د املا په توګه و لیکي.

### ۲. د دویم متن لوستل (۲۵ دقیقې)

**له لوستلو څخه مخکې**

۱. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې سرلیک او انځور ته وګوري او وړاندوینه وکړي چې متن به د څه په اړه وي (په خپل منځ کې شریکول او له ټولګي سره شریکول).

۲. ښوونکی درې کلیدي کلمې له زده کوونکو سره معنا او په جملو کې یې استعمالوي.

**د لوستلو پر مهال**

۱. ښوونکی د متن لوستل تمثیلوي.

۲. ښوونکی او زده کوونکي په ګډه متن لولي.

۳. زده کوونکي له ځان سره متن لولي.

٤. د تم کېدلو او فکر کولو له تګلارې څخه ګټه واخلئ.

**له لوستلو څخه وروسته**

۱. ښوونکی له زده کوونکو څخه پوښتنه کوي چې ایا دکیسې په هکله د دوی وړاندوینه سمه ده؟ هو یا نه

۲. ښوونکی له زده کوونکو څخه لاندې پوښتنې کوي:




۳. **پوښتنه: کوترې له کاغۍ سره څه شی جوړول؟**
**ځواب: ځاله.**

- **پوښتنه: کوترې او مرغۍ چا سره مرسته وکړه؟**
**ځواب : له کاغۍ سره.**

- **پوښتنه: ځنګه کولی شو چې ښه ګاونډیان واوسو؟**
**ځواب: یو له بل سره مرسته، ښه چلند او مهرباني وکړو.**

- **پوښتنه:له دې کیسې څخه مو څه زده کړل؟**
**ځواب: یو بل ته درناوی، ښه چلند، تګ راتګ وکړو او مهربانه واوسو.**

٤. ښوونکی زده کوونکو ته د یو کیسې د کرکټر رول داسې تشریح کول ښیي. ( **کوترې او مرغۍ له کاغۍ سره مرسته وکړه کاغۍ خوشحاله وه.**)

۵. ښوونکي زده کوونکو ته د دوه جملو لیکلو لاره ښیي چې کړنو یا عمل ځانګړنې بیانوي.

### تکرار او کورنۍ دنده (۵ دقیقې)

۱. **تکرار:** ښوونکی له زده کوونکو سره د تورو نومونه او غږونه تکراروي.

۲. **کورنۍ دنده:** ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې توري او کلمې په کورونو کې په خپلو کتابچو کې ولیکي او لومړی متن تکرار کړي.

## فرعي موضوع: ښه گاونډی

**د زده کړې موخې:**

١. په مستقیم نقل کې د شارحې (:) د کارولو پوهه ترلاسه کول

٢. متضادو کلمو ته مطابقت ورکول.

٣. روان لوستل ښه کول.

### ١. جملې (١٠ دقیقې)

١. ښوونکی زده کوونکو ته وايي چې هغوی به د هغو کلمو د لیکلو طریقه زده کړي چې یو شخص یې په یوه کیسه کې د خبرو په ترځ کې وايي. ښوونکی شارحه (:) پر تخته لیکي. ښوونکی له زده کوونکو څخه پوښتنه کوي چې آیا هغوی ته د دې نښې نوم معلوم دی.

٢. ښوونکی تشریح کوي چې دې نښې ته (شارحه) ویل کېږي او نن به هغوی په لیکلو کې د دې نښې کارول زده کوي.

٣. ښوونکی لاندینۍ جمله پر تخته لیکي: **د ډیوي دغه میوې خوښې دي لکه: مڼې او انگور.** ښوونکی له زده کوونکو څخه پوښتنه کوي: څوک خبرې کوي؟ هغه څه وايي؟ ځینې زده کوونکي ځواب ورکوي، بیا ښوونکی سم ځواب له زده کوونکو سره شریکوي. ښوونکی زده کوونکو ته تشریح کوي چې که یو شخص څه وايي، هغوی باید د یو شخص د خبرو څخه وړاندې د شارحې نښه کېږدي. ښوونکی په جمله کې د شارحې نښې ږدي.

٤. ښوونکی لاندینۍ جمله پر تخته لیکي: **زبیر میرویس ته وویل: زه هم درسره ځم.** ښوونکی له زه کوونکو نه پوښتنه کوي، څوک خبرې کوي؟ هغه څه وايي؟ په جمله کې د خبرې کوونکي شخص خبرې له کومه ځای څخه پیل کېږي؟ بیا ښوونکی زده کوونکو ته ښیي چې په جمله کې چېرته باید د شارحې نښه ولیکي.

٥. ښوونکی زده کوونکو ته وايي چې خپلو کتابونو ته ځیر شي. په کتاب کې شپږ جملې ورکړل شوي چې په هغه ځای کې چې خلک خبرې پیل کوي، د شارحې نښې ته اړتیا لري. ښوونکی لومړۍ دوه جملې له زده کوونکو سره تمرین کوي.

٦. ښوونکی زده کوونکو ته وايي چې په دوه کسیزه توگه کار وکړي او په ټولو جملو کې د شارحې نښې په سم ځای کې وکاروي.

٧. ښوونکی له هغو زده کوونکو سره مرسته کوي چې ستونزې لري.

٨. لږ وخت وروسته د هغوي ځوابونه گوري.

٩. ښوونکی له زده کوونکو څخه غوښتنه کوي چې و وايي هغوی په دې درس کې څه زده کړي دي. (ځواب: د یو چا د خبرو له پیل څخه مخکې په یوه جمله کې د شارحې نښه اېښودل.)

### ٢. د لغتونو زېرمه (١۵ دقیقې)

١. ښوونکی زده کوونکو ته وايي چې هغوی به د متضادو کلمو په باره کې نور معلومات ترلاسه کړي. ښوونکی له زده کوونکو څخه پوښتنه کوي چې آیا اوس هم په یاد لرئ چې متضادې کلمې کومې دي؟

٢. ښوونکی زده کوونکو ته وايي چې خپل درسي کتابونو




د (الف) او (ب) چوکاټونو ته ځیر شي. هغوی متضادې کلمې ویني. ښوونکی لومړی تمرین له زده کوونکو سره په گډه ترسره کوي او زده کوونکو ته ښیي چې څرنگه دوه متضاد خیزونه د یو خط په مرسته سره نښلول کېږي.

٣. ښوونکی زده کوونکو ته د تمرین په کتابونو کې د کار ترسره کولو وايي. کله چې زده کوونکي په کار کې بوخت وي ښوونکی په ټولگي کې گرځي چې له ستونزو سره مخامخ شوو زده کوونکو سره مرسته وکړي.

٤. لږ وخت وروسته ښوونکی د زده کوونکو ځوابونه گوري.

۵. ښوونکی له زده کوونکو څخه غوښتنه کوي چې هغه څه و وايي چې په دې درس کې یې زده کړي دي. (ځواب: موږ د متضادو کلمو په اړه زده کړه ترلاسه کړې ده.)

### ٣. دوهم متن بیا لوستل (١٠ دقیقې)

د څلور پړاوونو (لکه ښوونکی یې تمثیلوي، ښوونکی او زده کوونکي یې په گډه سره لولي، زده کوونکي یې په دوه کسیزه توگه لولي، او زده کوونکي یې له ځانه سره لولي) په کارولو سره، له زده کوونکو سره دوهم متن بیا لولي.

### تکرار او کورنۍ دنده (۵ دقیقې)

١. **تکرار:** په مستقیم نقل قول کې د شارحې پر کارولو تمرین کول.

٢. **کورنۍ دنده:** ښوونکی زده کوونکو ته وايي چې په کورونو کې جملې په خپلو کتابچو کې ولیکي او دوهم لوست دې تکرار کړي.

د حسن خط فعالیت، ارزونه او کورنۍ دنده (۴۰ دقیقې)

## فرعي موضوعګانې: ښه ملګرتیا او ښه ګاونډي

**د زده کړې موخې:**

۱- د حافظې د کارولو تمرین کول.
۲- د نوښتي لیکنې د کیسې بشپړول.
۳- له مناسب لحن،حرکاتو او٪ ۹۵ سموالي سره د متن لوستل.

### ۱.غوږنیول او خبرې کول (۱۰ دقیقې)

۱. ښوونکې وایي چې په دې لوست کې به د حافظې د کارولو په اړه بحث وکړو. زموږ حافظه د زده کړې لپاره ډېره مهمه او ارزښتناکه ده. د دې په خاطر چې حافظه مو ښه شي، نو باید خپله حافظه وکاروو او تمرین یې کړو. کله چې تاسې ډېر شیان په خپله حافظه او ذهن کې ولرئ، نو تاسې کولی شئ په ښوونځي او ژوند کې ښې لاسته راوړنې ولرئ.
۲. ښوونکې زده کوونکو ته وایي، راځئ وګورو چې موږ کولی شو کوم شیان په یاد وساتو او څنګه یې په یاد وساتو؟ ښوونکې له زده کوونکو دا پوښتنه کوي: تاسو په دې اونۍ کې کوم توري زده کړل؟ ( څو زده کوونکو ته اجازه ورکړئ چې خپل ځوابونه و وایي.) بیا له زده کوونکو څخه پوښتنه وکړئ چې تېره اونۍ مو کوم توري زده کړل؟ څوک یې تر اوسه په یاد لري؟ (څو زده کوونکو ته وخت ورکړئ چې خپل ځوابونه و وایي). یو ځل بیا له زده کوونکو څخه وپوښتئ چې درې اونۍ مخکې مو کوم توري زده کړي وو؟ (کیداشي چې ډېر زده کوونکي به سم ځوابونه و نه شي ویلی)، ځکه چې د هغو تورو په یاد ساتل به ستونزمن وي. زده کوونکو ته و وایاست د هغو شیانو په یاد ساتل به چې په دې نژدې وختونو کې مو په زده کړې د هغو شیانو په پرتله چې یو څه موده پخوا مو زده کړي، آسانه وي.
۳. ښوونکې له زده کوونکو پوښتنه کوي چې تاسو په ښوونځي کې د کومو شیانو په یاد ساتلو ته اړتیا لرئ؟ زده کوونکو ته اجازه ورکړئ چې د درسي کتاب انځورونو ته وګوري او کیدای شي د لاندې موضوعګانو په اړه څه و وایي.
( د ښوونکې لارښوونې - الفبې د توري- د درس لپاره مهم او اړین معلومات- مفرد او جمع نومونه - د ټولګې قوانین.)
۴. زده کوونکو ته وواياست چې موږ باید ډېر شیان او معلومات په یاد وساتو، نو له همدې امله حافظې ته د دې معلوماتو د سپارلو تمرین باید وکړو.
۵. تاسو څنګه کولی شئ معلومات خپلې حافظې او یاد ته وسپارئ؟
ښوونکې زده کوونکو ته وایي چې د تمرین د کتاب انځورونو ته وګوري.
- په ښوونځي کې د معلوماتو د یاد ساتلو تمرین کوي.
- په کور کې د معلوماتو د یاد ساتلو تمرین کوي.
- له خپل ورور یا خور سره د معلوماتو د یاد ساتلو تمرین کوي.
- د ښوونځي پر لار د معلوماتو د یاد ساتلو تمرین کوي.
٦. ښوونکې له زده کوونکو څخه غوښتنه کوي چې د یاد ساتلو تمرین وکړي: ښوونکې وایي زه د دې اونۍ له درسونو څخه یوه کلمه وایم، لومړی زده کوونکی به زما کلمه تکراروي او یوه بله کلمه به ورسره زیاتوي، دوهم زده کوونکی به هغه کلمه چې ما او لومړي زده کوونکي ویلې ده تکراروي او یوه بله کلمه به ورسره زیاتوي. دغه تمرین په همدې ډول ادامه پیدا کوي. کله چې په دې تمرین کې کوم زده کوونکي غلطي وکړه، نو دا تمرین له همغه زده کوونکي څخه بیا له سره پیل کېږي. کوښښ وکړئ معلومه کړئ چې زده کوونکي په یوه وخت کې څو کلمې خپلې حافظې او یاد ته سپارلی شي.
۷. زده کوونکو ته و وایاست چې حافظه او یاد ساتل د زده کړې لپاره ډېر ارزښت لري. هغه شیان او معلومات چې غواړئ په یاد یې وساتئ، نو باید د یاد ساتلو تمرین یې وکړئ.



### ۲. نوښتي لیکنه (۱۵ دقیقې)

۱. ښوونکې زده کوونکو ته وایي چې هغوی به اوس د خپلې حافظې د کارولو په اړه یوه کیسه ولیکي.
۲. ښوونکې د درسي کتاب جملې او د چوکاټ کلمې له زده کوونکو سره یو ځای لولي.
۳. ښوونکې زده کوونکو ته وایي چې د تمرین په کتابونو کې د چوکاټ د کلمو په کارولو سره په تشو ځایونو کې په دوه کسیزه توګه جملې جوړې کړي او نیمګړې کیسه دې بشپړ کړي.
۴. ښوونکې په ټولګې کې ګرځي او هغو زده کوونکو ته چې ستونزې لري مرسته او لارښوونه کوي.
۵. ښوونکې له څو زده کوونکو غواړي چې خپلې بشپړې کړې کیسې ټولګیوالو ته و وایي.

### ۲.دلومړي اودویم متن بیا لوستل(۱۰دقیقې)

۱. له زده کوونکو سره د دوو پړاوونو (زده کوونکي یې په دوه کسیزه توګه لولي، زده کوونکي یې له ځانه سره لولي) په کارولو سره لومړی او دوهم متن بیا لولي.

### تکرار او کورنۍ دنده (۵ دقیقې)

۱. **تکرار:** د دې اونۍ د تورو د غږونو او نومونو تکرارول.
۲. **کورنۍ دنده:** لومړی او دوهم متن بیا لوستل. د نوښتي لیکلو په برخه کې د کیسې لیکل او د انځورونو زیاتول.

## فرعي موضوع: تکرار او دوامداره ارزونه

### د زده کړې موخې:

۱- د مرکبو نومونو د جوړولو لپاره د نومونو پرتله کول.
۲- په مستقیم نقل قول کې جملو ته د شارحې (:) ورزیاتول.
۳- د متضادو کلمو پرتله کول.
٤- له٪ ۹۰ سموالي سره د متن لوستل.
٥- د کلمې او جملې په کچه د مناسب فشار او لحن په کارولو سره متن لوستل.
٦- له٪ ۹۰ سموالي سره د کلمو لیکل.

### ۱. کلمې او جملې (۱۰ دقیقې)

۱. ښوونکی د مرکب نومونو مفهوم تکراروي.
۲. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې د خپل کتاب (الف) تمرین ترسره کړي.
۳. ښوونکی له مستقیم نقل قول سره د شارحې کارول له زده کوونکو سره تکراروي.
٤. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې د خپل کتاب (ب) تمرین ترسره کړي.
٥. ښوونکی د متضادو کلمو مفهوم له زده کوونکو سره تکراروي.
٦. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې د خپل کتاب (ج) تمرین ترسره کړي.
۷. ښوونکی د زده کوونکو ځوابونه ګوري.
۸. ښوونکی د اوږدمهالې ارزونې په کتاب کې ثبتوي چې زده کوونکو وکولای شول چې دا کار په ښه توګه ترسره کړي (له ٪ ۹۰ پورته سم لپاره △، د ۷۰ او٪ ۹۰ ترمنځ لپاره ^ او له ٪ ۷۰ ټیټ لپاره /. د ٪۷۰ او ټیټو نومرې ترلاسه کوونکو سره باید راتلونکې اونۍ په دې تمرین کې مرسته وشي.

### ۲. د لومړي او دویم متن بیا لوستل (۱۰ دقیقې)

۱. ښوونکی زده کوونکو ته دوه دقیقې وخت ورکوي چې په دوه کسیزه توګه لومړی یا دوهم متن ولولي.
۲. ښوونکی د زده کوونکو (۴) جوړو نه غوښتنه کوي چې د ټولګي مخې ته راشي.
۳. ښوونکی هغوی ته وایي چې هره دوه تنه به د متن یوه برخه لولي. دوی باید متن په روان ډول او د خبرې د اغیزمنتیاوو په ښکاره کولو سره ولولي چې ټکی او د پوښتنې نښه منعکس کوي.
٤. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې متن له لوستونکي سره غلی غلی ولولي او په ځیر سره غوږ ونیسي.
٥. کله چې (۸) تنه زده کوونکي په لوستلو بوخت وي، ښوونکی د هغوی د ښه لوستلو ځرنګوالی مشاهده کوي او خپل د اوږدمهالې ارزونې په کتاب کې یې لیکي. هغه زده کوونکو سره چې ونه شي کولای ښه فعالیت ولري، باید په بله اونۍ کې ورسره مرسته وشي.



### ۳. املا (۱۵ دقیقې)

۱. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې هغوی به اوس ځینې توري او کلمې ولیکي.
۲. ښوونکی زده کوونکو ته خپل درسي کتاب د بندولو او خپل د تمرین کتاب د پرانیستلو وایي.
۳. ښوونکی لومړی توری **(ف)** لولي: (درې ځلې غږ لوستل)، زده کوونکي توری لیکي.
٤. ښوونکی همدا کار د لاندینیو تورو لپاره هم ترسره کوي.
**ق، ک، ګ، م، ل، ن، ڼ.**
ښوونکی لومړی کلمه **فیل** په کراره لولي او څلور ځلې یې تکراروي. زده کوونکي هغه کلمه لیکي.
٥. ښوونکی همدا کار د لاندینیو (۱۱) کلمو لپاره هم ترسره کوي.
**فیل مرغه، قلم، کوترې، ګل، لمن، موږک، نارنج، منه، شکوڼ، ژوبڼ، سالون**
٦. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې خپل د تمرین کتابونه د کتلو لپاره راوړي. ښوونکی د هغوی املا ګوري او نومرې ورکوي.
۷. ښوونکی د اوږدمهالې ارزونې په کتاب کې ثبتوي چې زده کوونکو وکولای شول چې دا کار په ښه توګه ترسره کړي (له٪ ۹۰ پورته سم لپاره ـ\ـ، د ۷۰ او٪ ۹۰ ترمنځ لپاره \/ او له٪۷۰ ټیټ لپاره /. د٪ ۷۰ او ټیټو نومرې ترلاسه.

### تکرار او کورنۍ دنده (۵ دقیقې)

۱. **تکرار:** پر هغه څه بیا کتنه چې زده کوونکو په دې اونۍ کې زده کړي دي.
۲. **کورنۍ دنده:** ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې په کورونو کې د درسونو د هغو برخو بیا لیکل او لوستل دې ترسره کړي چې د اونۍ په جریان کې یې ورسره ستونزې لرلې.

د حسن خط فعالیت، ارزونه او کورنۍ دنده (۴۰ دقیقې)

**فرعي موضوع: د یو بل منل توري: و، ه، هـ، ي**

**د زده کړې موخې:**

۱. له ٪۹۵ سموالي سره ټول لوستل شوي توري په ګوته کول.
۲. دا وړاندوینه کول چې یوه کیسه یا متن به د څه په اړه وي له انځور، سرلیک، مهمو کلمو او مخکینۍ پوهې څخه ګټه اخیستل.
۳. د مفهوم اخیستلو لپاره بیا لوستل.

### ۱. توري او کلمې (۱۰ دقیقې)

۱. ښوونکی دغه توري پر تختې لیکي: **و، ه، هـ، ي.**
۲. ښوونکی هر توري ته اشاره کوي، د هر توري نوم او غږ لولي.
۳. ښوونکی د هر توري اړوند کلمې لولي او زده کوونکي د هرې کلمې لاندې ګوته تیره وي.
٤. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې کلمې ولولي او اړوند توری پکې وښیي.
٥. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې د تمرین په کتابونو کې د کلمو لیکل تمرین کړي.
٦. ښوونکی زده کوونکو ته لارښوونه کوي چې هره ورځ په کورونو کې په کتابچو کې د کلمو لیکلو تمرین وکړي.
۷. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې د اونۍ په پای کې به دوی همدغه کلمې د املا په توګه و لیکي.

### ۲. د لومړي متن لوستل (۲۵ دقیقې)

**له لوستلو څخه مخکې**

۱. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې سرلیک او انځور ته وګوري او وړاندوینه وکړي چې متن به د څه په اړه وي، (په خپلو منځو کې شریکول او له ټولګیوالو سره شریکول).
۲.ښوونکی درې کلیدي کلمې له زده کوونکو سره معنا او په جملو کې یې استعمالوي.

**د لوستلو پرمهال**

۲. ښوونکی د متن لوستل تمثیلوي.
۳. ښوونکی او زده کوونکي متن یوځای لولي.
٤. زده کوونکي له ځان سره متن لولي.
٥. ښوونکی له زده کوونکو سره مرسته کوي چې د مفهوم اخیستلو او د بیا لوستلو له ستراتیژۍ څخه ګټه واخلي.

**له لوستلو څخه وروسته**

۱. ښوونکی له زده کوونکو څخه پوښتنه کوي چې د کیسې په اړه یې وړاندوینه سمه ده؟ (هو/نه).
۲. ښوونکی له زده کوونکو څخه لاندې پوښتنې کوي:




**- پوښتنه: کاغۍ فیل مرغي ته څه وویل؟**
**ځواب: همېشه مې زړه خپه وي. له ګاونډۍ بلبلې مې بد راځي.**
**- پوښتنه: فیل مرغي کاغۍ ته څه لارښوونه وکړه؟**
**ځواب: له زړه څخه د بلبلې کینه وباسه.**
**- پوښتنه: کینه د خلکو ترمنځ څه پېښوي؟**
**ځواب: کینه د خلکو ترمنځ زړه بدوالی، کرکه، بې باوري او بېلتون رامنځته کوي.**
**- پوښتنه: که له چا سره کینه ختمه کړو څه احساس کوو؟**
**ځواب: د خوښۍ، مینې او آرامۍ احساس کوو.**

**۳**. ښوونکي له زده کوونکو سره د یوې کیسې د کرکټر رول تشریح کولو او د هغوی د ځانګړنو په لیکلو کې مرسته کوي.

**ځواب: د فیل مرغي په لارښوونه کاغۍ جوړه شو.**

۴. ښوونکی له زده کوونکو سره د کرکټر رول په تشریح کولو او د هغوی د ځانګړنو په لیکلو کې مرسته کوي.

### تکرار او کورنۍ دنده (۵ دقیقې)

۱. **تکرار:** ښوونکی له زده کوونکو سره د تورو نومونه او غږونه تکراروي.
۲. **کورنۍ دنده:** زده کوونکي توري او کلمې په خپلو کورونو کې په کتابچو کې لیکي او لومړی متن تکراروي.

## فرعي موضوع: د یو بل منل

**د زده کړې موخې:**

۱. د یوه مرکب نوم بدلولو لپاره دوو کلمو ته سره مطابقت ورکول
۲. د مترادف کلمو کارول.
۳. روان لوستل ښه کول.

### ۱. کلمې (۱۰ دقیقې)

۱. ښوونکی له زده کوونکو څخه پوښتنه کوي چې هغوی اوس هم د دوو کلمو یوځای کول په یاد لري چې د یوې معنا لرونکې یوه نوې کلمه ترې جوړېږي.
۲. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې خپل درسي کتاب کې د کلمو د مطابقت فعالیت ته ځیر شي او لومړی دوه بېلګې له زده کوونکو سره په ګډه ترسره کړي. بیا زده کوونکي په ګډه سره خپل کار ته ادامه ورکوي. ښوونکی په زده کوونکو ټینګار کوي چې یو بل ته ښه غوږ شي.
۳. ښوونکی زده کوونکو ته و وایي چې د تمرین په کتاب کې تمرین ترسره کړي. په داسې حال کې چې زده کوونکي په کار بوخت وي، ښوونکی په ټولګي کې ګرځي او له ستونزو سره مخ زده کوونکو سره مرسته کوي.
٤. ښوونکی د زده کوونکو ځوابونه ګوري.
٥. ښوونکی له زده کوونکو څخه غوښتنه کوي چې هغه څه بیان کړي چې په دې درس کې یې زده کړي دي. (ځواب: کله چې دوه کلمې سره یوځای شي، کولای شي یوه نوې کلمه جوړه کړي چې نوې معنا لري.)

### ۲. د لغتونو زېرمه (۱۵ دقیقې)

۱. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې هغوی به د مترادفو کلمو نور تمرین ترسره کړي.
۲. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې په خپلو درسي کتابونو کې د (الف) او (ب) چوکاټونو ته ځیر شي. هغوی به د(الف) د چوکاټ مترادفې کلمې دي د (ب) په چوکاټ کې پیدا کړي. زده کوونکي به کلمو ته په ګوتې اشاره کوي او لولي به یې. ښوونکی لومړی دوه کلمې له زده کوونکو سره په ګډه ترسره کوي.
۳. ښوونکی زده کوونکو ته په دوه کسیزه توګه د تمرین په کتابونو کې د ترسره کولو وایي.
٤. کله چې زده کوونکي په کار بوخت وي، ښوونکی په ټولګي کې ګرځي چې له ستونزو مخ شوو زده کوونکو سره مرسته وکړي.



٥. لږ وخت وروسته، ښوونکی د زده کوونکو ځوابونه ګوري.
٦. ښوونکی له زده کوونکو څخه غوښتنه کوي چې هغه څه وایي چې هغوی په دې درس کې زده کړي دي. (ځواب: موږ د مترادفو او مرکبو کلمو په اړه زده کړه ترلاسه کړې ده.)

### ۳. د لومړي متن بیا لوستل (۱۰ دقیقې)

د څلور پړاوونو (لکه ښوونکی یې تمثیلوي، ښوونکی او زده کوونکي یې په ګډه سره لولي، زده کوونکي یې په دوه کسیزه توګه لولي او زده کوونکي یې له ځانه سره لولي) په ترسره کولو سره، له زده کوونکو سره لومړی متن بیا لولي.

### تکرار او کورنۍ دنده (۵ دقیقې)

۱. **تکرار:** په مرکبو او متضادو نومونو بیاکتنه.
۲. **کورنۍ دنده:** ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې په کورونو کې کلمې په خپلو کتابچو کې ولیکي او لومړی لوست تکرار کړي.

**فرعي موضوع: نیکي**     **توري: ې، ی، ۍ، ئ**

**د زده کړې موخې:**

۱- له٪ ۹۵ سموالي سره ټول لوستل شوي توري په ګوته کول.

۲- دا وړاندوینه کول چې یوه کیسه یامتن به د څه په اړه وي، له انځور، سرلیک، مهمو کلمو او مخکینۍ پوهې څخه ګټه اخیستل.

۳- د مفهوم اخیستلو لپاره بیا لوستل

۴- د کرکټر په اړه پوښتنو ته ځواب ویل.

## ۱. توري او کلمې (۱۰ دقیقې)

۱. ښوونکی دغه توري پر تختې لیکي: **ې، ی، ۍ، ئ.**

۲. ښوونکی له زده کوونکو سره تورو ته اشاره کوي د هر توري نوم او غږ لولي.

۳. ښوونکی د هر توري اړوندې کلمې لولي او زده کوونکي د هرې کلمې لاندې ګوته تېره وي.

۴. ښوونکی زده کوونکو ته وايي چې کلمې ولولي او اړوند توري پکې وښیي.

۵. ښوونکی زده کوونکو ته وايي چې د تمرین په کتابونو کې د کلمو لیکل تمرین کړي.

۶. ښوونکی زده کوونکو ته لارښوونه کوي چې هره ورځ په کورونو کې په کتابچو کې د لیکلو تمرین وکړي.

۷. ښوونکی زده کوونکو ته وايي چې د اونۍ په پای کې به دوی همدغه کلمې د املا په توګه و لیکي.

## ۲. د دویم متن لوستل (۲۵ دقیقې)

### له لوستلو څخه مخکې

۱. ښوونکی زده کوونکو ته وايي چې عنوان او انځور ته وګوري د متن په اړه د وړاندوینه کوي چې متن به د څه په اړه وي (په خپلو منځونو کې له خپل ملګري سره شریکول، بیا له ټولګیوالو سره شریکول.)

۲. ښوونکی درې کلیدي کلمې له زده کوونکو سره معنا او په جملو کې یې استعمالوي.

### د لوستلو پر مهال

۱. ښوونکی د متن لوستل تمثیلوي.

۲. ښوونکی او زده کوونکي په ګډه متن لولي.

۳. زده کوونکي له ځان سره متن لولي.

۴. ښوونکی زده کوونکو ته ښیي چې څنګه کولای شي د تم کېدلو او فکر کولو تګلارې څخه ګټه واخلي.

### له لوستلو څخه وروسته

۱. ښوونکی له زده کوونکو څخه پوښتنه کوي چې دکیسې په هکله د هغوی وړاندوینه سمه ده؟ هو یا نه

۲. ښوونکی له زده کوونکو څخه لاندې پوښتنې کوي.



- **پوښتنه: کوتره چېرته ولاړه؟**
**ځواب: کوتره په هیلۍ پسې ولاړه.**
- **پوښتنه: هیلۍ څه وکړل چې له موږک سره مرسته وکړي؟**
**ځواب: هیلۍ په منډه راغله د موږک بچی یې له اوبو څخه راوایسته.**
- **پوښتنه: که څوک مرستې ته اړتیا ولري څه باید وکړو؟**
**ځواب: یا به خپله مرسته ورسره وکړو یا بل څوک یې مرستې ته راوبولو.**
- **پوښتنه: دې کیسې ته په کتو سره که نور له موږ سره مرسته وکړي، څه باید وکړو؟**
**ځواب: باید مننه ترې کوو.**

۳. ښوونکی له زده کوونکو سره د یوې کیسې د کرکټر د رول تشریح کولو په اړه مرسته کوي. (ځواب: **کوترې او هیلۍ د موږک د بچي ژوند وژغوره.**

۴. ښوونکی له زده کوونکو سره د کرکټر د رول په تشریح کولو او په خپلو د تمرین په کتابونو کې د کرکټر د ځانګړنو د تشریح په لیکلو کې مرسته کوي.

## تکرار او کورنۍ دنده (۵ دقیقې)

۱. **تکرار:** ښوونکی له زده کوونکو سره د تورو نومونه او غږونه تکراروي.

۲. **کورنۍ دنده:** زده کوونکي توري او کلمې په کورونو کې په خپلو کتابچو کې لیکي او دوهم متن تکراروي.

## فرعي موضوع: نیکي

**د زده کړې موخې:**

۱. په مستقیم نقل کې د شارحې (:) د کارولو پوهه ترلاسه کول.
۲. مترادف کلمې یو بل سره مطابقت ورکول.
۳. روان لوستل ښه کول.

### ۱. جملې (۱۰ دقیقې)

۱. ښوونکی د شارحې (:) نښه پر تختې لیکي. ښوونکی له زده کوونکو څخه پوښتنه کوي چې تاسو ته د دې نښې نوم یاد دی؟
۲. ښوونکی تشریح کوي چې نن به هغوی په لیکلو کې د شارحې نښې د کارولو تمرین کوي.
۳. ښوونکی لاندینۍ جمله پر تخته لیکي: **کوترې هیلۍ ته وویل: د مورک بچی ډوبیږي**. ښوونکی له زده کوونکو څخه پوښتنه کوي: څوک خبرې کوي؟ هغه څه وایي؟ ځینې زده کوونکي ځواب ورکوي، بیا ښوونکی سم ځواب له زده کوونکو سره شریکوي. ښوونکی زده کوونکو ته تشریح کوي چې که یو شخص څه وایي، هغوی باید د یو شخص د خبرونو نه وړاندې د شارحې نښه کېږدي. ښوونکی په جمله کې د شارحې نښې ړدي.
٤. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې خپلو کتابونو ته ځیر شي. په کتاب کې شپږ جملې ورکړل شوې چې په هغه ځای کې چې خلک خبرې پیل کوي، د شارحې نښې ته اړتیا لري. ښوونکی لومړۍ دوه جملې له زده کوونکو سره تمرین کوي.
٥. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې په دوه کسیزه توګه کار وکړي او په ټولو جملو کې د شارحې نښه په سم ځای کې وکاروي.
٦. ښوونکی له هغو زده کوونکو سره مرسته کوي چې ستونزې لري.
٧. لږ وخت وروسته د هغوی ځوابونه ګوري.
٨. ښوونکی له زده کوونکو څخه غوښتنه کوي چې و وایي هغوی په دې درس کې څه زده کړي دي. (ځواب: د یو چا د خبرو د پیل نه مخکې په یوه جمله کې د شارحې نښه ایښودل کېږي.)

### ۲. د لغتونو زېرمه (۱۵ دقیقې)

۱. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې هغوی به د مترادفو کلمو په باره کې ډېر تمرینونه وکړي.
۲. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې په خپلو کتابونو کې د (الف) او( ب) چوکاټونو ته ځیر شئ. هغوی به د (الف) د چوکاټ د مترادفې کلمې د (ب) په چوکاټونو کې پیدا کړي او په خپلو ګوتو سره به کلمې ته اشاره وکړي او کلمه به ولولي. ښوونکی له زده کوونکو سره په ګډه په لومړیو دووکلمو کار کوي. او په پاتې کلمو پخپله زده کوونکوي کار کوي.




۳. ښوونکی زده کوونکو ته د تمرین خپل تمرین کتابونو کې د ترسره کولو وایي. کله چې زده کوونکي په کار کې بوخت وي، ښوونکی په ټولګي کې ګرځي چې ستونزو سره مخ شوو زده کوونکو سره مرسته وکړي.
٤. لږ وخت وروسته ښوونکی د زده کوونکو ځوابونه ګوري.
٥. ښوونکی له زده کوونکو څخه غوښتنه کوي چې هغه څه و وایي چې هغوی په دې درس کې زده کړي دي. (ځواب: موږ د مترادفو کلمو په اړه زده کړه ترلاسه کړې ده.)

### ۳. د دویم متن بیا لوستل (۱۰ دقیقې)

د څلور پراوونو څخه په ګټې اخیستنې (لکه ښوونکی یې تمثیلوي، ښوونکی او زده کوونکي یې په ګډه سره لولي، زده کوونکي یې په دوه کسیزه توګه لولي او زده کوونکي یې له ځانه سره لولي) له زده کوونکو سره دوهم متن بیا لولي.

### تکرار او کورنۍ دنده (۵ دقیقې)

۱. **تکرار:** د شارحې او مترادفو کلمو پر کارولو بیاکتنه کول.
۲. **کورنۍ دنده:** ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې په کورونو کې جملې په خپلو کتابچو کې ولیکي او دې دوهم متن لوستل تکرار کړي.

د حسن خط فعالیت، ارزونه او کورنۍ دنده (۴۰ دقیقې)

## فرعي موضوعګانې: د یو بل منل او نیکي

**د زده کړې موخې:**

۱- په یوه وخت کې د څو فعالیتونو ترسره کول.
۲- د نوښتي لیکنې د کیسې بشپړول.
۳- له مناسب لحن،حرکاتو او٪ ۹۵ سموالي سره د متن لوستل.

### ۱.غوږنیول او خبرې کول (۱۰ دقیقې)

۱. ښوونکی وایي چې په دې لوست کې به پر دې تمرکز وکړو چې څنګه کولی شو څو فعالیتونه په یوه وخت کې په سمه توګه ترسره کړو. تاسو په ښوونځي کې هره ورځ ډېر فعالیتونه په یوه وخت کې ترسره کوئ. تاسو د درس پر مهال باید درس ته غوږ ونیسئ او په خپلو کتابونو کې یې ولولئ. تاسو باید ښوونکي ته غوږ ونیسئ او د تمرین په کتابونو کې ځینې کلمې ولیکئ. په یوه وخت کې د دغو ټولو کارونو ترسره کول ذهني وده بلل کېږي. دا کار له تاسو سره مرسته کوي چې په ټولګي کې فعال واوسئ او ښې کړنې ولرئ.
۲. زده کوونکو ته و وایاست چې په خپلو درسي کتابونو کې انځورونو ته وګوري. له زده کوونکو څخه پوښتنه وکړئ چې په انځورونو کې ماشومان څه کار کوي؟ څو زده کوونکو ته وخت ورکړئ چې خپل ځوابونه له ټولګیوالو سره شریک کړي.
۳. له زده کوونکو پوښتنه وکړئ چې آیا دوی کله هم په یوه وخت کې څو کارونه ترسره کړي له زده کوونکو څخه پوښتنه وکړئ چې دوی دغه ډول کارونه په ښوونځي کې ترسره کوي یا په کور کې؟
الف: زده کوونکي کېدای شي لاندې ځوابونه ورکړي:
- درسي کتاب مو را واخلئ او ښوونکي ته غوږ ونیسئ.
- د املا کلمې ولولئ، وېې لیکئ او هره ورځ یې لوستل او لیکل تمرین کړئ.
- زده کوونکي لومړی متن لولي بیا ښوونکی څو پوښتنې کوي او زده کوونکي د لوستل شوي متن په اړه فکر کوي او بیا ځوابونه وایي.
ب: په کور کې:
- خپل لاسونه ومینځئ او ډوډۍ وخورئ.
- مور او پلار ته ټول غوږ ونیسئ او بیا ځواب ورکړئ.
- د خوب له پاڅېدو وروسته خپله بستره ټوله کړئ.
- له کورنۍ سره یو ځای د سهار چای وڅښئ.
- د ښوونځي کالي مو واغندئ.
۴. زده کوونکو ته و وایاست چې پرون مو د درسي کتاب یو متن ولوست. له هغوی څخه وغواړئ چې دغه متن په دوه کسیزه توګه بیا ولولي. زده کوونکي د لوستلو پر مهال ټولې هغه کلمې چې د (و، هـ، ي) توري لري په نښه کوي.
- لومړی زده کوونکی د دویم متن اوله جمله لولي، دویم زده کوونکی متن په غور سره اوري او هغه کلمې چې اړونده توري پکې راغلي دي په نښه کوي. بیا دویم زده کوونکی دویمه جمله لولي او لومړی زده کوونکی هغه په غور سره اوري او د اړونده توري لرونکي کلمې په نښه کوي. وروسته بیا زده کوونکي دویم متن په دوه کسیزه توګه لولي او د اړونده تورو لرونکي کلمې په نښه کوي.
۵. کله چې زده کوونکي متن لولي او اړونده کلمې په نښه کوي، ښوونکی د دوی فعالیت څاري او وروسته له څو زده کوونکو څخه غواړي چې په نښه کړې کلمې خپلو ټولګیوالو ته و وایي.
۶. له زده کوونکو څخه وغواړئ چې متن مو څنګه ولوست او د



اړونده تورو لرونکې کلمې مو څه ډول په نښه کړې. آیا دا سخت کار و چې دوه کارونه په یوه وخت کې ترسره کړئ؟ تاسو د متن لوستلو او د کلمو په نښه کولو ته خپل پام څنګه ونیو؟

### ۲. نوښتي لیکنه (۱۵ دقیقې)

۱. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې هغوی به اوس په یوه وخت کې د څو کارونو ترسره کولو په اړه یوه کیسه ولیکي.
۲. ښوونکی د درسي کتاب جملې او د چوکاټ کلمې له زده کوونکو سره یو ځای لولي.
۳. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې د تمرین په کتابونو کې د چوکاټ د کلمو په کارولو سره په تشو ځایونو کې په دوه کسیزه توګه جملې جوړې کړي او نیمګړې کیسه دې بشپړه کړي.
۴. ښوونکی په ټولګي کې ګرځي او هغو زده کوونکو ته چې ستونزې لري مرسته او لارښوونه کوي.
۵. ښوونکی له څو زده کوونکو غواړي چې خپلې بشپړې کړې کیسې ټولګیوالو ته و وایي.

### ۳.د لومړي او دویم متن بیل لوستل (۱۰ دقیقې)

۱. له زده کوونکو سره د دوو پړاوونو (زده کوونکي یې په دوه کسیزه توګه لولي، زده کوونکي یې له ځانه سره لولي) په کارولو سره لومړی او دوهم متن بیا لولي.

### تکرار او کورنۍ دنده (۵ دقیقې)

۱. **تکرار:** د هغو فعالیتونو تکرارول چې دوی یې په یوه وخت کې ترسره کوي.
۲. **کورنۍ دنده:** د لومړي او دوهم متن بیا لوستل. د نوښتي د کیسې بشپړول او یو انځور ورسره زیاتول.

## فرعي موضوع: تکرار او دوامداره ارزونه

**د زده کړې موخې:**

۱- د مرکبو نومونو د جوړولو لپاره د نومونو پرتله کول.
۲- په مستقیم نقل قول کې جملو ته د شارحې(:) ورزیاتول.
۳- مترادفې کلمې سره پرتله کول.
۴- له٪ ۹۰سموالي سره د متن لوستل.
۵- د کلمې او جملې په کچه د مناسب فشار او لحن په کارولو سره د متن لوستل.

### ۰۱ کلمې او جملې(۱۰ دقیقې)

۱. ښوونکی د مرکبو نومونو مفهوم تکراروي.
۲. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې د خپل کتاب (الف) تمرین ترسره کړي.
۳. ښوونکی له مستقیم نقل قول سره د شارحې کارول له زده کوونکو سره تکراروي.
٤. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې دخپل کتاب(ب)تمرین ترسره کړي.
۵. ښوونکی مترادفو کلمو مفهوم له زده کوونکو سره تکراروي.
٦. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې د خپل کتاب (ج) تمرین ترسره کړي.
۷. ښوونکی د زده کوونکو ځوابونه ګوري.
۸. ښوونکی د اوږدمهالې ارزونې کتاب کې ثبتوي چې زده کوونکو وکولای شول چې دا کار په ښه توګه ترسره کړي (له٪ ۹۰ پورته سم لپاره △، د ۷۰ او٪ ۹۰ ترمنځ لپاره ^ او له٪ ۷۰ ټیټ لپاره /. د٪ ۷۰ او ټیټو نومرې ترلاسه کوونکو سره باید راتلونکې اونۍ په دې تمرین کې مرسته وشي.

### ۲.دلومړي او دویم متن بیا لوستل (۱۰ دقیقې)

۱. ښوونکی زده کوونکو ته دوې دقیقې وخت ورکوي چې په دوه کسیزه توګه د لومړي او دوهم متن بیا ولولي.
۲. ښوونکی د زده کوونکو (۴) جوړو څخه غوښتنه کوي چې د ټولګي مخې ته راشي.
۳. ښوونکی هغوی ته وایي چې هره جوړه به د متن یوه برخه لولي. دوی باید متن په روان ډول او د خبرې د اغیزمنتیاوو په ښکاره کولو سره ولولي چې ټکی او د پوښتنې نښه منعکس کوي.
٤. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې متن له لوستونکي سره غلې غلې ولولي او په ځیرتیا سره غوږ ونیسي.
۵. کله چې (۸) تنه زده کوونکي په لوستلو بوخت وي، ښوونکی د هغوی د ښه لوستلو څرنګوالی مشاهده کوي او د اوږدمهالې ارزونې په کتاب کې یې لیکي. له هغه زده کوونکو سره چې ونه شي کولای ښه فعالیت ولري، باید په بله اونۍ کې مرسته وشي.



### ۳. املا (۱۵ دقیقې)

۱. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې هغوی به اوس ځینې توري او کلمې لیکي.
۲. ښوونکی زده کوونکو ته خپل درسي کتاب د بندولو او خپل د تمرین کتاب د پرانیستلو وایي.
۳. ښوونکی لومړی توری (و) لولي: (دري ځلې غږ لوستل)، زده کوونکي توري لیکي.
٤. ښوونکی همدا کار د لاندینیو اوو تورو لپاره هم ترسره کوي، **ه، هـ، ي، ې، ی، ۍ، ئ**
۵. ښوونکی لومړی کلمه **(ورځ)** په کراره لولي او څلور ځلې یې تکراروي. زده کوونکي هغه کلمه لیکي.
٦. ښوونکی همدا کار د لاندینیو کلمو لپاره هم ترسره کوي **روغه، هیواد، یو، کوترې، ښکلې، سپوږمۍ، ولیکۍ، ولولئ، پیښې، کینه،زړه.**
۷. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې خپل د تمرین کتابونه د کتلو لپاره راوړي. ښوونکی د هغوی املا ګوري او نومرې ورکوي.
۸. ښوونکی د اوږدمهالې ارزونې کتاب کې ثبتوي چې زده کوونکو وکولای شول چې دا کار په ښه توګه ترسره کړي (له ٪ ۹۰ پورته سم لپاره△، د ۷۰ او٪ ۹۰ترمنځ لپاره^او له٪ ۷۰ټیټ لپاره /. د٪ ۷۰ او ټیټو نومرې ترلاسه کوونکو سره باید راتلونکې اونۍ په دې تمرین کې مرسته وشي.

### تکرار او کورنۍ دنده: (۵ دقیقې)

۱. **تکرار:** د هغه څه بیا تکرار چې زده کوونکو په دې اونۍ کې زده کړي دي.
۲. **کورنۍ دنده:** ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې په کورونو کې د درسونو د هغو برخو بیا لیکل او لوستل دې ترسره کړي چې د اونۍ په جریان کې یې ورسره ستونزې لرلې.

د حسن خط فعالیت، ارزونه او کورنۍ دنده (۴۰ دقیقې)

فرعي موضوع: بې احتیاطي توري: ت، ټ، ط، ث، س، ص، ز

**د زده کړې موخې:**

١. له ٪۹۵ سموالي سره ټول لوستل شوي توري په ګوته کول.
٢. په دې اړه وړاندوینه کول چې یوه کیسه یا متن به د څه په اړه وي له انځور، سرلیک، مهمو کلمو او مخکینۍ پوهې څخه ګټه اخیستل.
٣. د مفهوم اخیستلو لپاره بیا لوستل.
٤. د کرکټر په اړه پوښتنو ته ځواب ویل.

### ١. توري او کلمې (١٠ دقیقې)

١. ښوونکی توري پر تختې لیکي: **ت،ټ، ط، ث، س، ص، ز**
٢. ښوونکی له زده کوونکو سره تورو ته اشاره کوي د هر توري نوم او غږ لولي.
٣. ښوونکی د هر توري اړوند کلمې لولي او زده کوونکي د هرې کلمې لاندې ګوته تیره وي.
٤. ښوونکی زده کوونکو ته وايي چې کلمې ولولي او اړوند توری پکې وښيي.
٥. ښوونکی زده کوونکو ته وايي چې د تمرین په کتابونو کې د کلمو لیکل تمرین کړي.
٦. ښوونکی زده کوونکو ته لارښوونه کوي چې هره ورځ په کورونوکې په کتابچو کې د لیکلو تمرین وکړي.
٧. ښوونکی زده کوونکو ته وايي چې د اونۍ په پای کې به دوی همدغه کلمې د املا په توګه و لیکي.

### ٢. د لومړي متن لوستل (٢٥ دقیقې)

**له لوستلو څخه مخکې**

١. ښوونکی زده کوونکو ته وايي چې سرلیک او انځور ته وګوري او وړاندوینه وکړي چې متن به د څه په اړه وي. (په خپلو منځونو کې شریکول او له ټولګیوالو سره شریکول).
٢. ښوونکی درې کلیدي کلمې له زده کوونکو سره معنا او په جملو کې یې استعمالوي.

**د لوستلو پرمهال**

١. ښوونکی له زده کوونکو سره په لوستلو کې مرسته کوي چې د مفهوم اخیستلو لپاره د بیا لوستلو له ستراتیژۍ څخه ځنګه ګټه واخلي.
٢. ښوونکی د متن لوستل تمثیلوي.
٣. ښوونکی او زده کوونکي متن یوځای لولي.
٤. زده کوونکي له ځان سره متن لولي.

**له لوستلو څخه وروسته**

١. ښوونکی له زده کوونکو څخه پوښتنه کوي چې د کیسې په اړه یې وړاندوینه سمه ده؟ (هو/ نه).



بې احتیاطي

په ځنګله کې حیواناتو مېله جوړه کړې وه پیشو په ځان جوړولو ډېر وخت تېر کړ. سوې پیشو ته وویل:
پیشو! ملګري وايي چې ژر کوه، ناوخته شو. پیشو ځواب ورکړ: غم مه کوه اوس به مو د سترګو په رپ کې ورسوم.
پیشو موټر چالان کړ. خو ډېر تېز یې چلاوه.
سوې په وارخطايي ورته وویل: پیشو! ترافیکي نښو ته پام کوه. باید موټر ورو وچلوې.
پیشو موټر نور هم تېز کړ. موټر ناڅاپه له اوسپنې څخه جوړې شوې لوحې سره وجنګېده. پر لوحه لیکل شوي وو:
«له نه رسېدو څخه، وروسته رسېدل ښه دي.»

٢. ښوونکی له زده کوونکو څخه لاندې پوښتنې کوي.

- **پوښتنه: په ځنګله کې چا مېله جوړه کړې وه؟**
**ځواب: حیواناتو.**
- **پوښتنه: سوېې په وارخطايۍ پیشو ته څه وویل؟**
**ځواب: پیشو! ترافیکو نښو ته پام کوه.**
- **پوښتنه: ځنګه د موټرو د ټکر پېښې کمولای شو؟**
**ځواب: بې احتیاطي ونکړو او ترافیکي قوانین په پام کې ونیسو.**
- **پوښتنه: د سړک څخه د تېرېدو پر مهال څه باید وکړو؟**
**ځواب: احتیاط وکړو، ترافیکي قوانین په پام کې ونیسو، چې د مرګ او ژوبلې سبب مو و نه ګرځي.**

٣. ښوونکی زده کوونکو ته د متن د اصلي مفهوم د اخیستلو طریقه ښیي. (ځواب: اصلي مفهوم (**پیشو موټر چلاوه. پیشو ترافیکي قوانین په پام کې نه نیول**).)

### تکرار او کورنۍ دنده (٥ دقیقې)

١. **تکرار:** له زده کوونکو سره د تورو نومونه او غږونه تکرارول.
٢. **کورنۍ دنده:** زده کوونکي په کورونو کې توري او کلمې په خپلو کتابچو کې لیکي او لومړی لوست تکراروي.

فرعي موضوع: بې احتیاطي

**د زده کړې موخې**

۱. د یوه مرکب نوم د بدلولو لپاره دوو کلمو ته مطابقت ورکول.
۲. دمتضادو کلمو کارول.
۳. روان لوستل ښه کول.

### ۱. کلمې (۱۰ دقیقې)

۱. ښوونکی له زده کوونکو څخه پوښتنه کوي چې هغوی اوس هم د دوو کلمو یوځای کول په یاد لري چې د یوې معنا لرونکې یوه نوې کلمه ترې جوړېږي.
۲. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې خپل درسي کتاب کې د کلمو د مطابقت فعالیت ته ځیر شي او لومړی دوه بېلګې له زده کوونکو سره په ګډه ترسره کوي. بیا زده کوونکي په ګډه سره خپل کار ته ادامه ورکوي. ښوونکی په زده کوونکو ټینګار کوي چې یو بل ته ښه غوږ شي.
۳. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې خپل د تمرین په کتاب کې تمرین ترسره کړي. په داسې حال کې چې زده کوونکي په کار بوخت وي، ښوونکی په ټولګي کې ګرځي له هغو زده کوونکو سره مرسته کوي چې ستونزې لري.
٤. ښوونکی د زده کوونکو ځوابونه ګوري.
۵. ښوونکی له زده کوونکو غوښتنه کوي، هغه څه بیان کړي چې په دې درس کې یې زده کړي دي. (ځواب: کله چې دوې کلمې سره یوځای شي، کولای شي یوه نوې کلمه جوړه کړي چې نوې معنا لري.)

### ۲. د لغتونو زېرمه (۱۵ دقیقې)

۱. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې هغوی به د متضادو کلمو تمرین ترسره کړي.
۲. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې خپلو درسي کتابونو ته ځیر شي. زده کوونکي به د هغو کلمو متضادې کلمې ووینې چې په چوکاټ کې ورکړل شوې دي. زده کوونکي به کلمو ته په ګوتې سره اشاره کوي او لولي به یې. ښوونکی لومړۍ دوه کلمې له زده کوونکو سره په ګډه کاروي.
۳. ښوونکی زده کوونکو ته په دوه کسیزه توګه د تمرین په کتابونو کې د ترسره کولو وایي.
٤. کله چې زده کوونکي په کار کې بوخت وي، ښوونکی په ټولګي کې ګرځي او له هغو زده کوونکو سره مرسته کوي چې ستونزې لري.




۵. لږ وخت وروسته، ښوونکی د زده کوونکو ځوابونه ګوري.
٦. ښوونکی له زده کوونکو څخه غوښتنه کوي چې هغه څه و وایي چې هغوی په دې درس کې زده کړي دي. (ځواب: موږ د متضادو کلمو په اړه زده کړه ترلاسه کړې ده.)

### ۳. د لومړي متن بیا لوستل (۱۰ دقیقې)

د څلور پړاوونو څخه په ګټې اخیستنې سره (لکه ښوونکی یې تمثیلوي، ښوونکی او زده کوونکي یې په ګډه سره لولي، زده کوونکي یې په دوه کسیزه توګه لولي، او زده کوونکي یې له ځانه سره لولي) په کارولو سره له زده کوونکو سره د لومړي متن بیا لولي.

### تکرار او کورنۍ دنده (۵ دقیقې)

۱. **تکرار:** د مرکبو او متضادو کلمو د نومونو بیا تکرارول.
۲. **کورنۍ دنده:** ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې په خپلو کورونو کې کلمې ولیکي او لومړی لوست تکرار کړي.

**فرعي موضوع: سوله** **توري: ذ، ظ، ض، پ، ف، ح، هـ**

**د زده کړې موخې:**

له ٪ ۹۵ سموالي سره ټول لوستل شوي توري په ګوته کول.

۱- دا وړاندوینه کول چې یوه کیسه یامتن به د څه په اړه وي، له انځور، سرلیک، مهمو کلمو او مخکینۍ پوهې څخه ګټه اخیستل.

۲- د مفهوم اخیستلو لپاره بیا لوستل.

۳- د کرکټر په اړه پوښتنو ته ځواب ویل.

### ۱. توري او کلمې (۱۰ دقیقې)

۱. ښوونکی توري په تختې لیکي: **ذ، ظ، ض، پ، ف، ح، هـ**

۲. ښوونکی هر توري ته اشاره کوي او وایي: د توري نوم **(ذال)** دی او د توري غږ/ **ذ**/ دی.

۳. ښوونکی زده کوونکو ته په لیکلو کې د بېلا بېلو تورو ترمنځ توپیرونه ښیي .

٤. ښوونکی هر توري ته اشاره کوي او د توري نوم او غږ له زده کوونکو سره لولي.

٥. ښوونکی د ترتیب په نه مراعتولو سره تورو ته اشاره کوي او زده کوونکو ته وایي چې د توري نوم او غږ و وایي.

٦. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې د تمرین په کتابونو کې د کلمو لیکل تمرین کړي.

٧. ښوونکی زده کوونکو ته لارښوونه کوي چې هره ورځ په کورونو کې په کتابچو کې د تورو تمرین وکړي.

٨. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې د اونۍ په پای کې به دوی همدغه کلمې د املا په توګه ولیکي.

### ۲. د دویم متن لوستل (۲۵ دقیقې)

**له لوستلو څخه مخکې**

۱. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې سرلیک او انځور ته وګوري او وړاندوینه وکړي چې متن به د څه په اړه وي. ( په خپلو کې له خپل ملګري سره شریکول او بیا له ټولګیوالو سره شریکول).

۲. ښوونکی درې کلیدي کلمې له زده کوونکو سره معنا او په جملو کې یې استعمالوي.

**د لوستلو پر مهال**

۱. ښوونکی د متن لوستل تمثیلوي.

۲. ښوونکی او زده کوونکي په ګډه متن لولي

۳. زده کوونکي له ځان سره متن لولي.

٤. ښوونکی زده کوونکي ته ښیي چې څرنګه کولای شي د تم کېدلو او فکر کولو تګلارې نه ګټه واخلي.

**له لوستلو څخه وروسته**

۱. ښوونکی له زده کوونکو څخه پوښتنه کوي چې آیا دکیسې په هکله د هغوی وړاندوینه سمه ده؟ هو/ نه




۲. ښوونکی له زده کوونکو څخه لاندې پوښتنې کوي.

- پوښتنه: **سوله څه ته وایي؟**

**ځواب: سوله امن او آرامۍ ته وایي.**

- پوښتنه: **ولې موږ ته سوله مهمه ده؟**

**ځواب: په سوله کې امن، ورورولي، مینه، آبادي، پرمختګ او هوسا ژوند وي.**

- پوښتنه: **کله چې سوله وي تاسو د څه احساس کوئ؟**

**ځواب: د خوښۍ او آرامۍ احساس کوو.**

- پوښتنه: **چې سوله نه وي خلک له کومو ستونزو سره مخامخ وي؟**

**ځواب: خلک خپه او ناآرامه وي، هېواد پرمختګ نه شي کولای، د تعلیم، کسب او کار مخه هم نیول کېږي.**

۳. ښوونکی زده کوونکو ته د متن د اصلي مفهوم د اخیستلو طریقه ښیي . (ځواب: اصلي مفهوم **په سوله کې خلک آرام ژوند کوي، سوله خوښي راولي.)**

٤. ښوونکی اصلي مفهوم په توره تخته لیکي. زده کوونکي اصلي مفهوم په خپلو کتابچو کې لیکي.

### تکرار او کورنۍ دنده (۵ دقیقې)

۱. **تکرار:** ښوونکی له زده کوونکو سره د تورو نومونه او غږونه تکراروي.

۲. **کورنۍ دنده:** زده کوونکي توري او کلمې په کورونو کې په خپلو کتابچو کې لیکي او دوهم متن تکراروي.

## فرعي موضوع: سوله

**د زده کړې موخې:**

١. په مستقیم نقل قول کې د شارحې (:) د کارولو اصول تطبيقول
٢. د متضادو کلمو لیکل.
٣. روان لوستل ښه کول.

### ١. جملې (١٠ دقیقې)

١. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې هغوی به د یو شخص د خبرو کولو پر مهال د شارحې (:) کارونه په عملي توګه تطبیق کړي.
٢. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې خپلو کتابونو ته ځیر شي. په کتاب کې (۵) جملې ورکړل شوي چې په اړونده سم ځای کې شارحې (:) ته اړتیا لري.
٣. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې په دوه کسیزه توګه کار وکړي او ټولې جملې بشپړې کړي.
٤. ښوونکی له هغو زده کوونکو سره مرسته کوي چې ستونزې لري.
٥. لږ وخت وروسته ښوونکی د زده کوونکو ځوابونه ګوري.
٦. ښوونکی د زده کوونکو پرمختګ د اوردمهالي ارزونې په کتاب کې ثبتوي چې ایا زده کوونکي کولای شي چې دا کار ښه ترسره کړي (تر٪ ٩٠ لوړ سم △، د ٧٠-٩٠٪ ∧ او تر ٪٧٠ ټیټ/ . کوم زده کوونکو٪٧٠یا تر دې ټیټې نومرې واخلې، بله اونۍ باید د دې تمرین په برخه کې ورسره مرسته وشي.

### ٢. د لغتونو زېرمه (١٥ دقیقې)

١. ښوونکی له زده کونکو څخه پوښتنه کوي چې هغوی اوس هم په یاد لري چې څنګه دوې کلمې د یوه بل متضاد کېدلای شي. ښوونکی له زده کوونکو څخه غوښتنه کوي چې یو څو بېلګې وړاندې کړي.
٢. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې هغوی به خپلو د تمرین په کتابونو کې ځینې کلمې ولولي. هغوی باید د دغو کلمو متضاد/مخالف معنا لرونکې کلمې ولیکي.
٣. ښوونکی لومړۍ بېلګه له زده کوونکو سره په ګډه ترسره کوي.
٤. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې په دوه کسیزه توګه کار وکړي او هغه کلمې پیدا کړي چې د ۴ کلمو له ټولګې سره تړاو نه لري.
٥. کله چې زده کوونکي په کار کې بوخت وي، ښوونکی په ټولګي کې ګرځي او له هغو زده کوونکو سره مرسته کوي چې ستونزې ولري.
٦. لږ وخت وروسته، ښوونکی د زده کوونکو ځوابونه ګوري.
٧. ښوونکی د زده کوونکو پرمختګ د اوردمهالي ارزونې په کتاب کې



جملې

١ سړي په وار خطایي پیشو ته وویل ترافیکي تېښو ته پام کوه
٢ مریم زرلښت ته وویل سپینه کوتره د سولې نښه ده
٣ په دې کتاب کې د دې مرغانو انځورونه دي لکه کوتره او طوطي
۴ واکسانو د ویر درناوی وړ دي لکه سور، پلاز او تور مشران
۵ اسماعیل ابراهیم ته وویل راځه چې له پلار سره مرسته وکړو

د لغتونو زېرمه

| | | | |
|---|---|---|---|
| ١ پوهه | ناپوهي | ۶ ودان | وران |
| ٢ تکړه | ــــــ | ٧ ورک | ــــــ |
| ٣ خواږه | ــــــ | ٨ دوست | ــــــ |
| ۴ سوله | ــــــ | ٩ دښمن | ــــــ |
| ۵ غروره | ــــــ | ١٠ لوړ | ــــــ |

د دویم متن بیا لوستل

ثبتوي چې ایا زکوونکي کولای شي چې دا کار ښه ترسره کړي (تر ٪٩٠ لوړ∧ سم ، د ٧٠-٩٠٪ ترمنځ∧ او تر ٪ ٧٠ټیټ/ . کوم زده کوونکي٪ ٧٠یا تر دې ټیټې نومرې واخلي، بله اونۍ باید د دې تمرین په برخه کې ورسره مرسته وشي.

### ٣. د دویم متن بیا لوستل (١٠ دقیقې)

د څلور پراوونو څخه په ګټې اخیستنې (لکه ښوونکی یې تمثیلوي، ښوونکی او زده کوونکي یې په ګډه سره لولي، زده کوونکي یې په دوه کسیزه توګه لولي، او زده کوونکي یې له ځانه سره لولي) په کارولو سره له زده کوونکو سره دوهم متن بیا لولي.

### تکرار او کورنۍ دنده: (۵ دقیقې)

١. **تکرار:** د شارحې او متضادو کلمو کارول.
٢. **کورنۍ دنده:** ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې په کورونو کې جملې په خپلو کتابچو کې ولیکي او دوهم لوست تکرار کړي.

د حسن خط فعالیت، ارزونه او کورنۍ دنده (۴۰ دقیقې)

## فرعي موضوعګانې: بې احتیاطي او سوله

**د زده کړې موخې:**
۱- د معلوماتو په سمه توګه تنظیمول.
۲- د نوښتي لیکنې د کیسې بشپړول.
۳- له مناسب لحن،حرکاتو او٪ ۹۵ سموالي سره د متن لوستل.

### ۱. غوږنیول او خبرې کول (۱۰ دقیقې)

۱. ښوونکی وایي چې په دې لوست کې به په سمه او منظمه توګه د معلوماتو پر تنظیمولو بحث وکړو. د معلوماتو په سمه توګه تنظیمول له زده کوونکو سره مرسته کوي چې د کارونو ترسره کولو پر مهال کوم شی هېر نه کړي او همدارنګه د وخت او نورو توکو له ضایع کېدو څخه مخنیوی وکړي.
۲. ښوونکی زده کوونکو ته یو مثال وایي: احمد غواړي مڼې واخلي. هغه دوکان ته ځي او له دوکاندار څخه مڼې اخلي او ورته وایي چې زه بیا راځم او پیسې به درته راوړم. آیا احمد دا کار په سمه او منظمه توګه ترسره کړ؟ احمد باید څه وکړي چې دا کار په سمه او منظمه توګه ترسره کړي؟ که احمد دا کار په سمه او منظمه توګه ترسره کړي، نو د وخت له ضایع کېدو څخه به څه ډول مخنیوی وکړي؟
۳. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې په خپلو درسي کتابونو کې انځورونو ته وګورئ او وایئ چې څلور انځورونه یو له بل سره څه ډول منظم او منطقي اړیکې لري. زده کوونکو ته اجازه ورکړئ چې په دوه کسیزه توګه بحث وکړي او د انځورونو سم ترتیب وښیي. له څو زده کوونکو څخه وغواړئ چې خپل ځوابونه ټولګیوالو ته و وایي.
۴. زده کوونکو ته و وایاست چې د تمرین کتابونو ته وګوري. د تمرین په کتابونو کې دوی د ماشومانو ځینې انځورونه ویني چې په کارونو بوخت دي.
۵. زده کوونکو ته و وایاست چې دوی د تمرین په کتاب کې دوه انځورونه ویني چې په یوه انځور کې یو ماشوم ویده دی او په بل انځور کې بل ماشوم ښوونځي ته د ننوتلو په حال کې دی. له زده کوونکو څخه وغواړئ چې په دوه کسیزه توګه بحث وکړي او و وایي چې ښوونځي ته تر رسېدو مخکې دوی باید کوم کارونه په منظمه او پرلپسې توګه ترسره کړي.
٦. له څو زده کوونکو څخه وغواړئ هغه کارونه چې ښوونځي ته تر رسېدو مخکې یې دوی ترسره کوي نورو زده کوونکو ته و وایي او بحث پرې وکړي چې آیا دوی کارونه په پرلپسې توګه ترسره کول او که نه.
۷. زده کوونکو ته و وایاست چې په منظمه او پرلپسې توګه د معلوماتو ترتیبول د دې لپاره مهم دي چې کوم کار را نه هېر نه شي او همدارنګه وخت مو ضایع نه شي.



### ۲. نوښتي لیکنه (۱۵ دقیقې)

۱. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې هغوی به اوس په سمه توګه د معلوماتو د تنظیمولو په اړه یوه کیسه ولیکي.
۲. ښوونکی د درسي کتاب جملې او د چوکاټ کلمې له زده کوونکو سره یو ځای لولي.
۳. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې د تمرین په کتابونو کې د چوکاټ د کلمو په کارولو سره په تشو ځایونو کې په دوه کسیزه توګه جملې جوړې کړي او نیمګړې کیسې دې بشپړې کړي.
۴. ښوونکی په ټولګي کې ګرځي او هغو زده کوونکو ته چې ستونزې لري مرسته او لارښوونه کوي.
۵. ښوونکی له څو زده کوونکو څخه غواړي چې خپلې بشپړې کړې کیسې ټولګیوالو ته و وایي.

### ۳. د لومړي او دویم متن بیا لوستل (۱۰ دقیقې)

۱. له زده کوونکو سره د دوو پړاوونو (زده کوونکي یې په دوه کسیزه توګه لولي، زده کوونکي یې له ځانه سره لولي) په کارولو سره لومړی او دوهم متن بیا لولي.

### تکرار او کورنۍ دنده (۵ دقیقې)

**۱. تکرار:** زده کوونکي ځینې هغه کارونه چې دوی په منظمه توګه ترسره کوي تکراروي.
**۲. کورنۍ دنده:** ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې لومړی او دوهم متن بیا ولولي او د نوښتي لیکنې کیسه بشپړه کړي، کیسې ته یو انځور ور زیات کړي او دا کیسه په کور کې یو چا ته ولولي.

## فرعي موضوع: تکرار او دوامداره ارزونه

**د زده کړې موخې:**
١- د مرکبو نومونو لیکل.
٢- د مستقیم نقل قول جملو ته د شارحې (:) ورزیاتول
٣- د متضادو کلمو لیکل.
٤- له ٩٠٪ سموالي سره د متن لوستل.
٥- د کلمې او جملې په کچه د مناسب فشار او لحن په کارولو سره د متن لوستل.

### ١. کلمې او جملې (١٠ دقیقې)

١. ښوونکی د مرکبو نومونو مفهوم تکراروي.
٢. ښوونکی زده کوونکو ته وايي چې د خپل کتاب (الف) تمرین ترسره کړي.
٣. ښوونکی له مستقیم نقل قول سره د شارحې کارول له زده کوونکو سره تکراروي.
٤. ښوونکی زده کوونکو ته وايي چې د خپل کتاب (ب) تمرین ترسره کړي.
٥. ښوونکی د متضادو کلمو مفهوم له زده کوونکو سره تکراروي.
٦. ښوونکی زده کوونکو ته وايي چې د خپل کتاب (ج) تمرین ترسره کړي.
٧. ښوونکی د زده کوونکو ځوابونه ګوري.
٨. ښوونکی د اوږدمهالې ارزونې په کتاب کې ثبتوي چې زده کوونکو وکولای شول چې دا کار په ښه توګه ترسره کړي (له ٩٠٪ پورته سم لپاره △ د ٧٠ او٪ ٩٠ ترمنځ لپاره ∧ او له ٧٠٪ ټیټ لپاره /. د ٪ ٧٠ او ټیټو نومرې ترلاسه کوونکو سره باید راتلونکې اونۍ په دې تمرین کې مرسته وشي.

### ٢. د لومړي او دویم متن بیا لوستل (١٠ دقیقې)

١. ښوونکی زده کوونکو ته دوې دقیقې وخت ورکوي چې په دوه کسیزه توګه ژر ژر لومړی یا دوهم متن ولولي.
٢. ښوونکی د زده کوونکو (۴) جوړو څخه غوښتنه کوي چې د ټولګي مخې ته راشي.
٣. ښوونکی هغوی ته وايي چې هره جوړه به د متن یوه برخه لولي. دوی باید متن په روانه توګه او د څېرې د اغیزمنتیاوو په ښکاره کولو سره چې ټکی او د پوښتنې نښه منعکس کوي ولولي.
٤. ښوونکی زده کوونکو ته وايي چې متن له لوستونکي سره په کراره ولولي او په دقت سره غوږ ونیسي.
٥. کله چې (٨) تنه زده کوونکي په لوستلو بوخت وي، ښوونکی د هغوی د ښه لوستلو څرنګوالی مشاهده کوي او د اوږدمهالې ارزونې په کتاب کې یې لیکي.
له هغو زده کوونکو سره چې ونه شي کولای ښه فعالیت ولري، باید په بله اونۍ کې مرسته ورسره وشي.



### ٣. املا (١٥ دقیقې)

١. ښوونکی زده کوونکو ته وايي چې هغوی به اوس ځینې توري او کلمې لیکي.
٢. ښوونکی زده کوونکو ته خپل درسي کتاب د بندولو او د تمرین کتاب د پرانیستلو وایي.
٣. ښوونکی لومړی توری (ت) لولي: (درې ځلې غږ لوستل)، زده کوونکي توری لیکي.
٤. ښوونکی همدا کار د لاندینیو تورو لپاره هم ترسره کوي.
**ټ،ط، ث، س، ص، ز ذ، ظ، ض، پ، ف، هـ ،ح.**
٥. ښوونکی لومړی کلمه **(ترافیک)** په کراره لولي او څلور ځلې یې تکراروي. زده کوونکي هغه کلمه لیکي.
٦. ښوونکی همدا کار د لاندینیو یوولسو کلمو (**کوترې، ښکلې، سپوږمۍ، ولیکئ، ذاکر،ظریف، ضابط، پخلا، فریده، حج، پوهه**) لپاره هم ترسره کوي.
٧. ښوونکی زده کوونکو ته وايي چې خپل د تمرین کتابونه د کتلو لپاره راوړي. ښوونکی د هغوی املا ګوري او نومرې ورکوي.
٨. ښوونکی د اوږدمهالې ارزونې په کتاب کې ثبتوي چې زده کوونکو وکولای شول چې دا کار په ښه توګه ترسره کړي (له٪ ٩٠ پورته سم لپاره△، د٪٧٠ او٪ ٩٠ ترمنځ لپاره ∧ او له٪ ٧٠ ټیټ لپاره /. د٪ ٧٠ او ټیټو نومرو ترلاسه کوونکو سره باید راتلونکې اونۍ په دې تمرین کې مرسته وشي.

### تکرار او کورنۍ دنده (۵ دقیقې)

**١. تکرار:** پر هغه څه بیا کتنه چې زده کوونکو په دې اونۍ کې زده کړي دي.
**٢. کورنۍ دنده:** ښوونکی زده کوونکو ته وايي چې په کورونو کې د درسونو د هغو برخو بیا لیکل او لوستل دې ترسره کړي چې د اونۍ په جریان کې یې ورسره ستونزې لرلې.

د حسن خط فعالیت، ارزونه او کورنۍ دنده (۴۰ دقیقې)

**فرعي موضوع: کتابتون (لومړۍ برخې تکرار) توري: آ،ا، ب....د، ډ.**

## د زده کړې موخې

١. له٪ ٩٥ سموالي سره ټول لوستل شوي توري په ګوته کول.
٢. دا وراندوینه کول چې متن به د څه په اړه وي، له انځور، سرلیک، مهمو کلمو او پخوانۍ پوهې څخه ګټه اخیستل.
٣. د تم کېدلو او فکر کولو ستراتیژي کارول.
٤. د متن اصلي مفهوم په ګوته کول.

### ١. توري، (١٠ دقیقې)

١. ښوونکی توري پر توره تخته لیکي: **ا، آ،ب،پ، ت، ټ،ث، ج،چ، ح، خ،څ،ځ،ر، ف، ق،ک، ګ، ل،م، ن،ڼ، د، ډ، ذ.**
٢. ښوونکی هر توري ته اشاره کوي او له زده کوونکي څخه پوښتنه کوي: د توري نوم (**الف**) دی او غږيې /**ا**/ دی.
٣. ښوونکی له زده کوونکو سره یوځای په لیکلو کې د تورو ترمنځ توپیرونه په ګوته کوي.
٤. ښوونکی هر توري ته اشاره کوي او له زده کوونکو سره یوځای د توري نوم او غږ وايي.
٥. ښوونکی د ترتیب په نه مراعتولو سره تورو ته اشاره کوي او له زده کوونکو غوښتنه کوي چې د توري نوم و وايي.
٦. ښوونکی د ترتیب په نه مراعتولو سره تورو ته اشاره کوي او له زده کوونکو غوښتنه کوي چې د توري غږ و وايي.
٧. ښوونکی زده کوونکو ته وايي چې د تمرین په کتابونو کې د کلمو لیکل تمرین کړي.
٨. ښوونکی زده کوونکو ته لارښوونه کوي چې په کورونو کې په کتابچو د دغو کلمو تمرین وکړي.
٩. ښوونکی زده کوونکو ته وايي چې د اونۍ په پای کې د دغو کلمو په اړه املا ولیکي.

### ٢. د لومړي متن لوستل (٢٥ دقیقې)

**له لوستلو څخه مخکې**

١. ښوونکی زده کوونکو ته وايي چې سرلیک او انځور ته وګوري او وړاندوینه وکړي چې متن به د څه په اړه وي. (په خپلو منځونو کې شریکول او له ټولګیوالو سره شریکول).
٢. ښوونکی درې کلیدي کلمې له زده کوونکو سره معنا او په جملو کې یې استعمالوي.

**د لوستلو پر مهال**

١. ښوونکی یې تمثیلوي، ښوونکی او زده کوونکي یې په ګډه لولي، زده کوونکي یې په دوه کسیزه توګه لولي.
٢. ښوونکی له زده کوونکو سره د تم کېدلو او فکر کولو ستراتیژۍ نه په ګټې اخیستنې او تمرین کولو کې مرسته کوي.

**له لوستلو څخه وروسته**

١. ښوونکی له زده کوونکو څخه پوښتنه کوي چې د کیسې په اړه یې وړاندوینه سمه ده؟ هو یا نه.


کتابتون
څنګه د کتابتون ادبونه وپېژنو؟
څوک چې غواړي معلومات یې زیات شي، کتابتون ته ځي. له کتابتون څخه هر څوک ګټه اخیستلای شي. کتابتون ځینې ادبونه هم لري. کله چې کتابتون ته ځو، باید:
- نوبت مراعات کړو.
- که خبرې کوو، په ټیټ غږ یې وکړو.
- د کتاب پاڼې په احتیاط واړوو.
- په کتاب کې خط ونه کړو.
- د کتاب مهم ټکي په کتابچه کې ولیکو.
- امانت اخیستل شوی کتاب بېرته وسپارو.
- کتاب بېرته په خپل ځای کې کېږدو.
ګرانو زده کوونکو! همدا د کتابتون ادبونه دي.

٢. ښوونکی له زده کوونکو څخه لاندې پوښتنې کوي.
- پوښتنه: **کتابتون د څه لپاره دی؟**
**ځواب: د معلوماتو د زیاتولو لپاره دی.**
- **پوښتنه: په کتابتون کې باید کوم شیان مراعات کړو؟**
**ځواب: خبرې په ټیټ غږ وکړو. په کتاب کې خط ونه کړو، امانت اخیستل شوی کتاب بېرته وسپارو، د کتاب مهم ټکي په کتابچه کې ولیکو او کتاب بېرته په خپل ځای کېږدو.**
- **پوښتنه: ولې د کتابتون اداب، په پام کې نیسو؟**
**ځواب: ځکه چې نورو ته مزاحمت و نه شي.**
- **پوښتنه: که وغواړئ د یوه شي په اړه معلومات پیدا کړئ، څه کوئ؟**
**ځواب: مطالعه کوو، له ملګرو، کورنۍ او ښوونکو څخه مرسته غواړو.**
٣. ښوونکی له زده کوونکو سره د کیسې د اصلي مفهوم په اخیستلو کې مرسته کوي اصلي مفهوم داسې دی **د کتاب مهم ټکي په کتابچه کې ولیکو د معلوماتو د زیاتولو لپاره کتابتون ته ولاړ شو.**
٤. ښوونکی ځینو زده کوونکو ته اجازه ورکوي چې اصلي مفهوم بیان کړي. او بیایې پر توره تخته لیکي. زده کوونکي اصلي مفهوم په خپلو کتابچو کې لیکي.

### تکرار او کورنۍ دنده (٥ دقیقې)

١. **تکرار:** ښوونکی د تورو نومونه او غږونه له زده کوونکو سره تکراروي. ښوونکی د زده کوونکو د تمرین کتاب شفاهي تمرین لارښوونو ته نظر اچوي.
٢. **کورنۍ دنده:** زده کوونکي توري او کلمې په خپلو کورونو کې په خپلو کتابچو کې لیکي او لومړی متن تکراروي.

## فرعي موضوع: کتابتون

**د زده کړې موخې:**

۱. د مفرد او جمع نومونو ترمنځ توپیر کول.
۲. د ټکي (.) او د پوښتنې نښې (؟) کارول.
۳. د کلمو ډلبندي کول.
۴. روان لوستل ښه کول.

### ۱. کلمې او جملې (۱۰ دقیقې)

۱. ښوونکی له زده کوونکو نه غوښتنه کوي چې د مفردو او جمع کلمو یو څو بېلګې ورانديې کړي.

۲. ښوونکی لاندینۍ (۴) کلمې په توره تخته لیکي: **کتابونه، یخچال، کتابچې، قلمونه** ښوونکی له زده کوونکو د کلمو د لوستلو غوښتنه کوي او پوښتنه کوي چې کومه کلمه د ۴ کلمو د مفرد او جمع کلمې له مخې سره تړاو نه لري. **یخچال** کلمه، ځکه چې دا مفرد ده او پاتې ټولې جمع کلمې دي.

۳. ښوونکی زده کوونکو ته وايي چې د هغوی د تمرین په کتابونو کې دا ډول ډېرې کلمې ورکړل شوې دي. ښوونکی د کلمو لومړی کرښه له زده کوونکو سره په ګډه ترسره کوي.

٤. ښوونکی زده کوونکو ته وايي چې په دوه کسیزه توګه کار وکړي او هغه کلمه پیدا کړي چې د ۴ کلمو په ټولګې پورې تړاو نه لري.

۵. ښوونکی په ټولګي کې ګرځي، ترڅو له هغو زده کوونکو سره مرسته وکړي چې ستونزې لري.

٦. ښوونکی لاندینۍ دوه جملې په تخته لیکي:

**ډیوه کورته لاړه.**

۷. ښوونکی له زده کوونکو چېرته ځي پوښتنه کوي چې آیا جملې ټکي(.) ته اړتیا لري او که پوښتنې نښې ته(؟) ګڼ شمېر زده کوونکي ځواب ورکوي، بیا ښوونکی سم ځواب له زده کوونکو سره شریکوي.

۸. ښوونکی زده کوونکو ته وايي چې خپلو کتابونو ته ځیر شي. په کتاب کې(۵)جملې ورکړل شوې یا هم ټکي ته اړتیا لري یا د پوښتنې نښې ته.

۹. ښوونکی زده کوونکو ته وايي چې په دوه کسیزه توګه کار وکړي او ولیکي چې آیا جملې ټکي ته اړتیا لري او د که پوښتنې نښې ته. ښوونکی له هغو زده کوونکو سره مرسته کوي چې ستونزې لري.

### ۳. د لغتونو ژبرمه (۱۵ دقیقې)

ښوونکو له زده کوونکو نه پوښتنه کوي چې آیا اوس هغوی په دې پوهیږي چې د (الف) چوکاټ کومه کلمه د (ب) چوکاټ له کومې کلمې سره اړیکه لري .



ښوونکی له زده کوونکو څخه د یو څو بېلګو د وړاندې کولو غوښتنه کوي. ښوونکی زده کوونکو ته وايي چې خپلو کتابونو ته ځیر شي. هغوی د چوکاټ په دننه دوه چوکاټ کلمې ویني د (الف) چوکاټ کلمې د (ب) چوکاټ له کلمو سره مطابقت لري. لومړی کلمه **تخته** د **تباشیر** له کلمې سره مطابقت لري. ښوونکی د تمرین د بشپړولو لپاره له زده کوونکو څخه په دوه کسیزه توګه د کار کولو غوښتنه کوي. کله چې زده کوونکي په کار کې بوخت وي، ښوونکی په ټولګي کې ګرځي او له هغو زده کوونکو سره مرسته کوي چې ستونزې لري. لږ وخت وروسته ښوونکی د زده کوونکو ځوابونه ګوري.

### ۴. د لومړي متن بیا لوستل (۱۰ دقیقې)

د څلورو پړاوونو (ښوونکي ي تمثیلوي، ښوونکي او زده کوونکي یې په ګډه لولي، په جوړه توګه لوستل، زده کوونکي یې له ځان سره لولي) په عملي کولو سره لومړی متن بیا لوستل.

### تکرار او کورنۍ دنده (۵ دقیقې)

۱. **تکرار:** مفرد او جمع کلمې تکرارول.

۲. **کورنۍ دنده:** ښوونکی زده کوونکو ته وايي چې کلمې او جملې په کورونو کې په خپلو کتابچو کې ولیکي او لومړی لوست دې تکرار کړي.

فرعي موضوع: د رسۍ کشول      توري: ذ، ر، ړ، ..... ع،غ.

**د زده کړې موخې**

١- له ٩٥٪ سموالي سره ټول لوستل شوي توري په ګوته کول.
٢- دا وړاندوینه کول چې متن به د څه په اړه، له انځور، سرلیک، مهمو کلمو او پخوانۍ پوهې څخه ګټه اخیستل.
٣- د مفهوم اخیستنې لپاره بیا لوستل.
٤- د کرکټر په اړه پوښتنو ته ځوابونه ویل.

### ١. توري (١٠دقیقې)

١. ښوونکی توري پر تخته لیکي: **ذ، ر، ړ، ز، ژ، ږ، و، هـ، ه، ي،ی، ې، ی، ئ، س، ش، ع،غ ښ ص،ض، ط، ظ.**
٢. ښوونکی هر توري ته اشاره کوي او له زده کوونکي څخه پوښتنه کوي: " د توري نوم **(ذال)** دی، د توري غږ **/ ذ/** دی.
٣. ښوونکی له زده کوونکو سره یوځای په لیکلو کې د تورو ترمنځ توپیرونه په ګوته کوي.
٤. ښوونکی هر توري ته اشاره کوي او له زده کوونکو سره یوځای د توري نوم او غږ وایي.
٥. ښوونکی د ترتیب په نه مراعتولو سره تورو ته اشاره کوي او له زده کوونکو غوښتنه کوي چې د توري نوم و وایي.
٦. ښوونکی د ترتیب په نه مراعتولو سره تورو ته اشاره کوي او له زده کوونکو غوښتنه کوي چې د توري غږ او نوم و وایي.
٧. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې د تمرین په کتابونو کې د کلمو لیکل تمرین کړي.
٨. ښوونکی زده کوونکو ته لارښوونه کوي چې په کورونو کې په کتابچو د دغو کلمو تمرین وکړي.
٩. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې د اونۍ په پای کې به هغوی د دغو کلمو په باره کې املا لیکل ولري.

### ٢. د دویم متن لوستل (٢٥ دقیقې)

**له لوستلو څخه مخکې**

١. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې سرلیک او انځور ته وګوري او دا وړاندوینه وکړي چې متن به د څه په اړه وي. (په خپلو منځونو کې شریکول او له ټولګیوالو سره شریکول).
٢. ښوونکی درې کلیدي کلمې له زده کوونکو سره معنا او په جملو کې یې استعمالوي.

**د لوستلو پر مهال**

١. ښوونکی له زده کوونکو سره د تم کېدلو او فکر کولو ستراتیژي نه په ګټې اخیستلو او تمرین کولو کې مرسته کوي.
٢. ښوونکی د لوستلو متن تمثیلوي.
٣. ښوونکی او زده کوونکي متن په ګډه لولي.
٤. زده کوونکي پخپله متن لولي.



**له لوستلو څخه وروسته**

١. ښوونکی له زده کوونکو څخه پوښتنه کوي چې آیا د کیسې په اړه یې وړاندوینه سمه ده؟ هو/ نه.
٢. ښوونکی له زده کوونکو څخه لاندې پوښتنې کوي.
- **پوښتنه: حیواناتو کومه لوبه پیل کړه؟**
**ځواب: د رسۍ کشولو لوبه.**
- **پوښتنه: لوبه چا وګټله؟**
**ځواب: غرنۍ وزې او سور لنډې.**
- **پوښتنه: تاسو ولې لوبې کوئ؟**
**ځواب: ځکه چې ساعت مو تیر شي. ذهن مو وده و کړي.**
- **پوښتنه: د لوبې له بایلونکي ډلې څخه مو څه زده کړل؟**
**ځواب: سالمه سیالي، مبارکي، درناوی.**
٣. ښوونکی له زده کوونکو سره د کیسې د اصلي مفهوم په اخیستلو کې مرسته کوي) ځواب: اصلي مفهوم **د لوبې ګټونکي ته باید مبارکي ووایو.)**
٤. ښوونکی له زده کوونکو سره د کرکټر د توضیحاتو په اړه د تمرین په کتاب کې په لیکلو کې مرسته کوي.

**تکرار او کورنۍ دنده (٥ دقیقې)**

١. **تکرار:** ښوونکی د تورو نومونه او غږونه له زده کوونکو سره تکراروي.
٢. **کورنۍ دنده:** زده کوونکي توري او کلمې په خپلو کورونو کې په کتابچو کې لیکي او دوهم متن تکراروي.

فرعي موضوع: د رسۍ کشول

**د زده کړې موخې**

۱. په یو مرکب نوم د اړولو لپاره دوو کلمو ته مطابقت ورکول.
۲. په مستقیم نقل قول کې د شارحې (:) د کارولو لارې زده کول
۳. متضادو کلمو ته مطابقت ورکول.
۴. روان لوستل ښه کول.

### ۱. کلمې او جملې (۱۰ دقیقې)

۱. ښوونکی له زده کوونکو څخه پوښتنه کوي چې آیا زده کوونکي لا هم په یاد لري چې د دوو کلمو په یوځای کولو سره یوه نوې کلمه منځته راځي چې نوې معنا لري؟
۲. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې د تمرین په کتاب کې د مطابقت ورکولو فعالیت ته ځیر شي او لومړی دوه بېلګې له زده کوونکو سره یوځای ترسره کوي. ښوونکی پر زده کوونکو ټینګار کوي چې یو بل ته ښه غوږ ونیسي.
۳. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې تمرین به د تمرین په کتابونو کې ترسره کړي. کله چې زده کوونکي په کار بوخت وي، ښوونکی په ټولګي کې ګرځي او له هغه زده کوونکو سره مرسته کوي چې ستونزې لري.
۴. ښوونکی د زده کوونکو ځوابونه ګوري.
۵. ښوونکی له زده کوونکو څخه غوښتنه کوي چې و وایي هغوی په دې درس کې څه زده کړي دي. (ځواب: کله چې دوه کلمې سره یوځای شي، یوه نوې کلمه جوړوي چې نوې معنا لري.)
۶. ښوونکی تشریح کوي چې هغوی به نن په لیکلو کې د شارحې (:) کارول تمرین کوي.
۷. ښوونکی لاندینۍ جملې پر تخته لیکي: **احمد وویل زه راځم**
ښوونکی له زده کوونکو څخه پوښتنه کوي: څوک خبرې کوي؟ هغه څه وایي؟ ځینې زده کوونکي ځواب ورکوي او بیا سم ځواب له زده کوونکو سره شریکوي. ښوونکی زده کوونکو ته تشریح کوي چې که څوک یو څه وایي، هغوی باید د یو شخص د خبرو نه وړاندې د شارحې نښه (:) ولیکي. ښوونکی د شارحې نښه (:) په جمله کې ښیي.
۸. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې خپلو کتابونو ته ځیر شي. هلته ۵ جملې ورکړل شوې دي چې د خلکو د خبرو په ځایونو کې د شارحې نښې (:) ته اړتیا لري. ښوونکی د لومړیو دوو جملو تمرین له زده کوونکو سره یوځای ترسره کوي.
۹. ښوونکی زده کوونکو ته په دوه کسیزه توګه د کار کولو وایي او له هغوی غوښتنه کوي چې په ټولو جملو کې د شارحې نښه (:) په سم ځای کې کېږدي.



### ۲. د لغتونو زېرمه (۱۵ دقیقې)

۱. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې هغوی به د عامو متضادو کلمو په اړه لا ډېر تمرینونه ولري.
۲. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې خپل درسي کتابونو ته ځیر شي. هغوی په چوکاټ کې د کلمو متضادي کلمېویني، دغو کلمو ته په خپلو ګوتو اشاره کوي او لولي یې.
۳. ښوونکی لومړی دوه کلمې له زده کوونکو سره تمرین کوي او زده کوونکي پاتې کلمې پخپله ترسره کوي.
۴. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې دا کار د تمرین په کتاب کې وکړي. کله چې زده کوونکي په کار بوخت وي، ښوونکی په ټولګي کې ګرځي او له هغو زده کوونکو سره مرسته کوي چې ستونزې لري.

### ۳. د دویم متن بیا لوستل (۱۰ دقیقې)

د څلور پړاوونو څخه په ګټې اخیستنې (لکه ښوونکی یې تمثیلوي، ښوونکی او زده کوونکي یې په ګډه سره لولي، زده کوونکي یې په دوه کسیزه توګه لولي، او زده کوونکي یې له ځانه سره لولي) په کارولو سره له زده کوونکو سره دوهم متن بیا لولي.

### تکرار او کورنۍ دنده (۵ دقیقې)

۱. **تکرار:** د شارحې مرکب نومونو او عامو متضادو د کارولو تکرار.
۲. **کورنۍ دنده:** ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې په خپلو کورونو کې جملې په خپلو کتابچو کې ولیکي او دوهم لوست تکرار کړي.

د حسن خط فعالیت، ارزونه او کورنۍ دنده (۴۰ دقیقې)

## فرعي موضوعګانې: کتابتون او د رسۍ کشول

**د زده کړې موخې:**

۱- د معلومات په یاد ساتل، کارونو ته پام کول او په یوه وخت کې د څو کارونو په منظمه توګه ترسره کول.
۲- د نوښتي لیکنې د کیسې بشپړول.
۳- له مناسب لحن،حرکاتو او٪ ۹۵ سموالي سره د متن لوستل.

### ۱. غوږنیول او خبرې کول (۱۰ دقیقې)

۱. زده کوونکو ته و وایاست چې په دې لوست کې به د معلوماتو په یاد ساتل، کارونو ته سم پام کول او په یوه وخت کې د څو کارونو ترسره کول تمرین کړي.
۲. زده کوونکو ته و وایاست چې په خپلو درسي کتابونو کې انځورونو ته وګوري. له هغوی څخه پوښتنه وکړئ چې په هر انځور کې زده کوونکي کوم مهارتونه تمرین کوي.
۳. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې په لومړي انځور کې زده کوونکي د معلوماتو د یاد ساتلو تمرین کوي. له زده کوونکو پوښتنه وکړئ چې د معلومات په یاد ساتل څه ارزښت لري؟ څو زده کوونکو ته وخت ورکړئ چې خپل ځوابونه و وایي. د زده کوونکو ځوابونه: د معلوماتو په یاد ساتل د زده کړې لپاره ډېر مهم دي. د دې په خاطر چې معلومات په سمه توګه په یاد وساتو، نو باید خپله حافظه سمه وکاروو او د معلوماتو په یاد ساتلو تمرین وکړو. کله چې تاسې ډېر شیان په یاد ولرئ، نو تاسې کولی شئ په ښوونځي کې بریالي واوسئ.
۴. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې په دویم انځور کې زده کوونکي کارونو ته د سم پام کولو تمرین کوي. ښوونکی له زده کوونکو غواړي چې څرګنده کړي موږ څنګه کولی شو کارونو ته خپل پام وساتو؟ څو زده کوونکو ته اجازه وکړئ چې خپل ځوابونه له ټولګیوالو سره شریک کړي. د زده کوونکو ځوابونه: موږ کولی شو د کار د ترسره کولولپاره خپل پام وساتو او پام مو بلې خوا ته و نه ګرځي. د شورماشور آرامول، د لوستلو پر مهال د متن لاندې د ګوتې تېرول، د ژورې ساه ایستل، د خپل فکر بیا متمرکز کول، د خپلو لاسو په داسې ډول نیول چې نورو شیانو ته پام و نه کړو یا یې ونه وینو.
۵. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې په درېیم انځور کې زده کوونکي په یوه وخت کې د څو کارونو د ترسره کولو تمرین کوي. ښوونکی له زده کوونکو پوښتنه کوي څوک کولی شي د هغو کارونو مثال راته و وایي چې په ټولګي کې یې په یوه وخت کې ترسره کوي. څو زده کوونکو ته وخت ورکړئ چې خپل ځوابونه له ټولګیوالو سره شریک کړي.
٦. زده کوونکو ته و وایاست چې د تمرین کتابونو ته وګوري. دوی د تمرین په کتابونو کې دویم متن ویني. ښوونکی له زده کوونکو غواړي له ټولو هغو کلمو لاندې چې د (ش) او (هـ) توري لري خط کش کړي. زده کوونکو ته و وایاست چې دوی ته دوه توري یو ځل ویل کیږي. هغوی باید توري په یاد وساتي او هغه کلمې چې دغه توري پکې راغلي دي په نښه کړي. زده کوونکي دغه تمرین د تمرین په کتابونو کې ترسره کوي. له څو زده کوونکو وغواړئ هغه کلمې چې خط ترې لاندې کش شوی دی له ټولګیوالو سره شریکې کړي.
۷. زده کوونکو ته و وایاست چې دوی به یوځل بیا دا تمرین ترسره کړي، خو تاسو به دوی ته دا ځل څلور نوي توري ووایاست. زده کوونکو ته و وایاست ټولې هغه کلمې چې دغه څلور توري لري، په نښه کړي. زده کوونکو ته و وایاست چې ښه غوږ ونیسي او دوی ته دا توري و وایاست:



(ر،ز،ر،س،ي،) زده کوونکي دغه تمرین د تمرین په کتابونو کې ترسره کوي. له څو زده کوونکو وغواړئ چې په نښه شوې کلمې له ټولګیوالو سره شریکې کړي.
۸. زده کوونکو ته و وایاست چې په دې تمرین کې تاسو د معلوماتو په یاد ساتل، کارونو ته سم پام کول او په یوه وخت کې د څو کارونو په سمه توګه ترسره کول زده کړل. دغه مهارتونه له تاسو سره مرسته کوي چې په ښوونځي کې فعال واوسئ او سمه زده کړه وکړئ.

### ۲. نوښتي لیکنه (۱۵ دقیقې)

۱. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې هغوی به اوس د حافظې کارولو او په یوه وخت کې د څو کارونو ترسره کولو په اړه یو متن ولیکي.
۲. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې د درسي کتاب جملې او د چوکاټ کلمې په یوازې توګه ولولي.
۳. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې د تمرین په کتابونو کې د چوکاټ د کلمو په کارولو سره په تشو ځایونو کې په یوازې توګه جملې جوړې کړي او نیمګړې کیسه دې بشپړه کړي.
۴. ښوونکی په ټولګي کې ګرځي او هغو زده کوونکو ته چې ستونزې لري مرسته او لارښوونه کوي.
۵. ښوونکی له څو زده کوونکو غواړي چې خپل بشپړ کړي متنونه ټولګیوالو ته و وایي.

### ۳. د لومړي او دویم متن بیا لوستل (۱۰دقیقې)

د دوو پړاوونو یعنې زده کوونکي یې په دوه کسیزه توګه لولي او زده کوونکي یې پخپله لولي په کارولو سره لومړی او دوهم متن له زده کوونکو سره بیا لوستل.

### تکرار او کورنۍ دنده (۵ دقیقې)

۱. **تکرار:** هغه څه چې زده کوونکو په دې اونۍ کې زده کړي دي تکراروي.
۲. **کورنۍ دنده:** لومړی او دوهم متن بیا لوستل. د نوښتي لیکلو د متن بشپړول او یو رسم ورزیاتول.

## فرعي موضوع: تکرار او دوامداره ارزونه

**د زده کړې موخې:**

۱- د کلمو له ورته کټګوريو سره کلمو ته مطابقت ورکول.
۲- د مستقيم نقل قول په جملو کې د شارحې (:) اضافه کول.
۳- متضادو کلمو ته مطابقت ورکول.
٤- له٪ ۹۰ سموالي سره متن لوستل.
٥- د کلمې او جملې په کچه د مناسب لحن او فشار په کارولو سره متن لوستل.

### ۱. کلمې او جملې (۱۰ دقيقې)

۱. ښوونکی د مفردو او جمع کلمو مفهوم تکراروي.
۲. ښوونکی زده کوونکو ته وايي چې د خپل کتاب (الف) تمرين ترسره کړي.
۳. ښوونکی له زده کوونکو سره په مستقيم نقل قول کې د شارحې (:) کارول تکراروي.
٤. ښوونکی زده کوونکو ته وايي چې د خپل کتاب (ب) تمرين ترسره کړي.
٥. ښوونکی له زده کوونکو سره د متضادو کلمو مفهوم تکراروي.
٦. ښوونکی زده کوونکو ته وايي چې د خپل کتاب (ج) تمرين ترسره کړي.
۷. ښوونکی د زده کوونکو ځوابونه ګوري.
۸. ښوونکی د اوړدمهالې ارزونې کتاب کې د زده کوونکو نومرې ثبتوي.

### ۲. د لومړي او دويم متن بيا لوستل (۱۰ دقيقې)

۱. ښوونکی زده کوونکو ته دوې دقيقې وخت ورکوي چې په دوه کسيزه توګه لومړی يا دوهم متن ژر ژر ولولي.
۲. ښوونکی د زده کوونکو له (۴) جوړو څخه غوښتنه کوي چې د ټولګي مخې ته راشي.
۳. ښوونکی هغوی ته وايي چې هره دوه تنه به د متن يوه برخه ولولي. هغوی بايد متن په روان ډول او د خبرې د اغيزمنتياوو په ښودلو سره ولولي چې ټکی او د پوښتنې نښه منعکس کړي.
٤. ښوونکی زده کوونکو ته وايي چې متن له لوستونکي سره ورو ورو ولولي او په دقت سره ورته غوږ ونيسي.
٥. کله چې اته زده کوونکي په لوستلو بوخت وي، ښوونکی د هغوی د لوستلو څرنګوالی مشاهده کوي او د اوږدمهالې ارزونې په کتاب کې يې ثبتوي.
٦. هغه زده کوونکي چې و نه شي کولای ښه فعاليت ترسره کړي، بايد په بله اونۍ کې ورسره مرسته وشي.



### ۳. املا (۱۵ دقيقې)

۱. ښوونکی زده کوونکو ته وايي چې هغوی به ځينې توري او کلمې وليکي ښوونکی زده کوونکو ته وايي چې خپل درسي کتابونه وتړي او خپل د تمرين کتابونه پرانيزي.
۲. ښوونکی لومړی توری (ا) په کراره لولي او څلور ځلې يې تکراروي. زده کوونکي هغه ليکي.
۳. ښوونکی همدا کار د لاندې اوو تورو لپاره هم کوي. **ب،ټ،ج، ځ،ر، ق، ډ.**
٤. ښوونکی لومړی کلمه **(بابا)** په کراره لولي او څلور ځلې يې تکراروي. زده کوونکي کلمه ليکي.
٥. ښوونکی همدا کار د لاندې ۱۱ کلمو لپاره هم کوي.
**ټولګې، جال، ځنګل، ړنا، قلم، ډيوه، پلار، توت، فيل، کتاب، ګل**
٦. ښوونکی زده کوونکو ته وايي چې د خپلو تمرين کتابونو د کتلو لپاره راوړي. ښوونکی د هغوی د املا ګوري او نومرې ورکوي.
۷. ښوونکی د زده کوونکو نومرې د اوږدمهالې ارزونې په کتاب کې ثبتوي.

### تکرار او کورنۍ دنده: (۵ دقيقې)

۱. **تکرار:** هغه څه تکرارول چې زده کوونکو په دې اونۍ کې زده کړي دي.
۲. **کورنۍ دنده:** ښوونکی زده کوونکو ته وايي چې په کورونو کې د درسونو د هغو برخو بيا ليکل او لوستل دي ترسره کړي چې د اونۍ په جريان کې يې ورسره ستونزې لرلې.

د حسن خط فعاليت، ارزونه او کورنۍ دنده (۴۰ دقيقې)

## د درېمې برخې عمومي کتنه: اصلي موضوع: کورنۍ

**د لیک او لوست موخې:**
زده کوونکي به د دې برخې تر پایه دا وړتیا ولري چې:
د معنا لرونکو کوچنیو واحدونو (مورفیمونو—Morphemes) ته په ګټې اخیستنې سره په چټکۍ سره کلمې تجزیه کړي.
۱. د صفتونو پرتلیزې او تفصیلي درجې به وکاروي.
۲. د حال زمانه به په تېره زمانه واړوي.
۳. له سیاق او سباق څخه په ګټې اخیستنې سره به له کلمو معنا واخلي.
٤. د مهمو کلمو پر معنا به پوه شي او په خبرو او لیکلو کې به یې وکاروي.
۵. له انځور، سرلیک، مهمو کلمو او مخکینۍ پوهې نه په ګټې اخیستنې سره به وړاندوینه وکړي چې روایتي داستاني متن به د څه په اړه وي.
٦. د یو متن د لوستلو پر مهال د مفهوم د اخیستلو او روښانه کولو لپاره تم شي او فکر وکړي.
۷. یوه لوستل شوې کیسه په لنډو ټکو کې بیان کړي.
۸. د څېړې د تاثیراتو په ښودلو او له٪ ۹۵ سموالي سره د دې برخې متن ولولي.
۹. د ژوندانه له تجربو سره د کیسې پېښې، کرکټرونه او عملونه ونښلوي.
۱۰. له٪۸۰ سموالي سره د لوستلو اړونده پوښتنوته ځوابونه ورکړي د /t/ غږ او ت او ط تورو درلودونکې کلمې په سمه توګه ولیکي.
۱۱. له٪ ۸۰ سموالي سره کلمې او جملې ولیکي.
۱۲. یوه کیسه ولیکي چې پیل، منځ او پای ولري.
۱۳. زده کوونکي به په نسخ خط سره اسمیه عبارت (اسم او صفت) د کرسۍ خط پر مخ په صحیح او ښکلې بڼه ولیکلای شي.

**د حسن خط فعالیت (۳۵دقیقې)**



ښوونکي دې د لارښود د مقدمې د (۲۲- ۲۳) مخونو د لارښوونو سره سم اسمیه عبارت(اسم او صفت) تدریس کړي.

**د حسن خط ارزونه او کورنۍ دنده(۵ دقیقې)**
۱- له څو زده کوونکو څخه د کلمو د ښایسته لیکلو په اړه پوښتنه وکړي.
۲- زده کوونکي دې له کرکي یا پنسل قلم سره اسمیه عبارت (اسم او صفت) په کورونو کې تمرین کړي.

**د ټولنیزې عاطفي زده کړې موخې:**
زده کوونکي به د دې وړتیا ولري چې:
ډول ډول احساسات وپېژني او نمونه یې واخلي.
تشریح یې کړي چې په بېلا بېلو حالتونو کې څنګه احساس لري.
د احساساتو او عواطفو د مدیریت ستراتیژۍ به وپېژني او په عملي توګه به یې تمثیل کړي.
**د لوست پیل (۵دقیقې):** د لوست د پیل ټول لومړي فعالیتونه دې ترسره شي.

**د دې برخې ځانګړې فعالیتونه**

۱. د څلورم درس د تورو، کلمو او جملو فعالیت
۲. د حال زمانه
۳. ښوونکی لاندې جمله پر تختې لیکي: **زه اوس مکتب ته ځم.** ښوونکی دا جمله زده کوونکو ته لولي. ښوونکی وایي، زه دا جمله په یو بل ډول هم ویلای شم، لکه دا کارچې پرون ترسره شوی وي. بیا به جمله داسې وای: **زه مکتب ته تللی وم** ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې بدلېدونکې کلمه د 'عمل کلمې یا فعل' په نوم یادېږي. ښوونکی یو څو نورې بېلګې زده کوونکو ته وړاندې کوي.
٤. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې خپل درسي کتابونو ته ځیر شي او ځینې جملې په ګډه سره تمرین کړي. هغه کلمه چې لاندې یې خط کښل شوی د عمل کلمه یا فعل دی. دا هغه کلمه ده چې بدلېږي.
۵. ښوونکی لومړۍ دوه جملې له زده کوونکو سره تمرین کوي.
٦. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې په دوه کسیزه توګه کار وکړي او پاتې نورې جملې ولولي او تېرې زمانې ته یې واړوي.
۷. ښوونکی له هغو زده کوونکو سره مرسته کوي چې ستونزې لري.
۸. لږ وخت وروسته، ښوونکی د زده کوونکو ځوابونه ګوري.
۹. ښوونکی له زده کوونکو څخه غوښتنه کوي چې هغه څه دي و وایي چې په دې درس کې یې زده کړي دي. (ځواب: د تېرې زماني کارول.)

۱. ښوونکی وایي، اوس چې تاسې دا متن لوستلی دی، له لوستلو څخه د مفهوم اخیستنې فعالیت.
۲. یو لوستل شوی متن په لنډو ټکو کې بیانول.
۳. وروسته ښوونکی وایي، دا چې موږ اوس دا متن لوستلی دی، راځئ چې د متن د اصلي مفهوم په اړه فکر وکړو. خپلو ټولګیوالو ته و وایاست چې د متن اصلي مفهوم څه ته وایي ښوونکی څو زده کوونکو ته اجازه ورکوي چې خپل ځوابونه شریک کړي. (ځواب: اصلي مفهوم د متن د بنسټیز پیغام څخه عبارت دی).
٤. ښوونکی له زده کوونکو څخه غوښتنه کوي چې خپلو ټولګیوالو ته و وایي چې د متن اصلي پیغام څه دی. ښوونکی یو څو زده کوونکو ته اجازه ورکوي چې خپل ځواب له ټولګیوالو سره شریک کړي. (ځواب: **مشرانو ته باید درناوی وکړو**) ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې هغوی همداراز متن په لنډو ټکو کې هم بیانولای شي. په لنډو ټکو کې بیانول د اصلي مفهوم او ځینې تر ټولو مهمو جزیاتو بیانولو څخه عبارت دی.
۵. ښوونکی زده کوونکو ته ښیي چې د اصلي مفهوم اړونده مرستندویه جزیات څنګه پیدا کولای شي.
٦. ښوونکی زده کوونکو ته د لنډیز د لیکلو طریقه ښیي. ښوونکی وایي، زه د لنډیز لیکلو لپاره جملې لیکلی شم، یعني، د اصلي مفهوم او ځینې مهم جزیات. ښوونکی لنډیز پر تختهٔ لیکي. زده کوونکي دا لنډیز خپل د تمرین کتابونو ته نقلوي.
۷. نهمه اونۍ: ښوونکی له زده کوونکو څخه پوښتنه کوي چې آیا هغوی یو متن په لنډه توګه بیانولای شي. زده کوونکي باید تر ټولو مهم مفهوم او مرستندویه جزیات ولټوي.

فرعي موضوع: درناوی    توری: ت

**د زده کړې موخې:**

١. د ت/ غږ او ت توري لرونکو کلمو سم لیکل.
٢. د انځور، سرلیک، مهمو کلمو او د مخکینۍ پوهې څخه په ګټې اخستنې سره دا وړاندوینه وکړي چې کیسه یا متن به د څه په اړه وي.
٣. د لوستلو پر مهال تم کېدل او فکر کول.
٤. لوستل شوی متن په لنډو ټکو کې بیانول.

**١. توری او کلمې (١٠ دقیقې)**

١. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې د(ت) او (ط) توري سره ورته غږ لري. ځینې کلمې د(**ت**) توری او ځینې نور یې د (ط) توری لري.
٢. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې په دې اونۍ کې به د هغو کلمو تمرین کوي چې د (ت) توری پکې کارول کېږي.
٣. ښوونکی لاندینۍ کلمې پر تختې لیکي: **تمیم، مکتب.** ښوونکی له زده کوونکو څخه غوښتنه کوي چې کلمه په لوړ غږ ولولي. ښوونکی له زده کوونکو پوښتنه کوي چې کومه کلمه د/ت/غږ لري. ښوونکی خو زده کوونکو ته اجازه ورکوي چې کلمې ته ګوته ونیسي.
٤. ښوونکی زده کوونکي د درسي کتاب لوستلو ته رابولي. ښوونکی کلمې په داسې حال کې زده کوونکو ته لولي چې هغوی خپلې ګوتې پر کلمو تېروي. بیا زده کوونکي هغه کلمې په دوه کسیزه توګه لولي.
٥. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې د تمرین په کتابونو کې د کلمو لیکل تمرین کړي.
٦. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې هغوی باید د دغو کلمو لیکل هره ورځ په کورونو کې په خپلو کتابچو کې تمرین کړي.
٧. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې هغوی به د اونۍ په پای کې د دې کلمو په اړه املا ولري.

**٢. دلومړي متن لوستل (٢٥ دقیقې)**

**له لوستلو څخه مخکې**

١. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې عنوان او انځور ته وګوري او وړاندوینه وکړي چې متن به د څه په اړه وي، طریقه ښیي. ( په خپلو کې شریکول، له ټولګي سره شریکول)
٢.ښوونکی درې کلیدي کلمې له زده کوونکو سره معنا او په جملو کې یې استعمالوي.

**د لوستلو پر مهال**

١. ښوونکی تمثیلوي، ښوونکی او زده کوونکي یې په ګډه لولي او زده کوونکي یې په دوه کسیزه توګه لولي.
٢. ښوونکی زده کوونکو ته ښیي چې څنګه کولای شي د تم کېدلو او فکر کولو ستراتیژۍ څخه ګټه واخلي.

**له لوستلو څخه وروسته**

١. ښوونکی له زده کوونکو نه پوښتنه کوي چې ایا د کیسې په اړه یې وړاندوینه سمه ده؟ هو/ نه.
٢. ښوونکی له زده کوونکو څخه لاندې پوښتنې کوي.


٨ اونۍ
توری او کلمې

| | | |
|---|---|---|
| تمیم | تېر | توریالی |
| ستړی | تاست | لوستونه |
| مکتب | فرښته | ساعت |

ت

ترېو    پخلاینه    درناوی

درناوی

تمیم کور ته راغی. بکسه یې د کوټې په منځ کې واچوله او ورو وغځېد. تمنا وویل: ولې دې بکسه په خپل ځای نه ږدې؟
تمیم په ترېو تندي وویل: په تا یې څه؟ مور یې چې د دوی خبرې واورېدې، راغله وې ویل: تمیمه زویه! ولې په غوسه یې؟
تمیم وویل: زه ستړی یم او ستړی له ښوونځي څخه راغلم. تمنا وایي چې ولې دې بکسه بې ځایه اچولې ده؟
مور یې وویل: زویه! چې ستړی یې، ډوډۍ به درته راوړم. تمنا ښه درته وایي. هغه دې خور ده. خبره یې باید ومنې او درناوی یې وکړې.
تمیم له تمنا څخه بخښنه وغوښته.

- **پوښتنه: کله چې تمیم کور ته ننوت، څه یې وکړل؟**
**ځواب: بکسه یې د کوټې په منځ کې واچوله.**
- **پوښتنه: ولې تمیم خپلې خور ته په غوسه و؟**
**ځواب: ځکه تمنا ورته وویل چې بکس دې ولې په خپل ځای نه ږدې؟**
- **پوښتنه: کله چې له نورو سره مرسته کوئ څه احساس کوئ؟**
**ځواب: د خوښۍ او مهربانۍ احساس کوو.**
- **پوښتنه: نوروته په درناوي سره څه ترلاسه کوئ؟**
**ځواب: الله (جَلّ جَلالُهُ) خوشحالېږي، زړه مو تسکین کوي، د هغوی خوښې ترلاسه کوو.**

٣. ښوونکی زده کوونکو ته د یوه متن بیانول په لنډو ټکو کې ښیي (د تفصیلي لارښوونو لپاره د برخې د عمومي کتنې برخې ته مراجعه وکړئ). (امکاني لنډیز: )
٤. **تمیم خپل بکس د کوټې کنج ته وغورځاوه. تمنا ورته وویل: بکس دې ولې وغورځاوه؟ تمیم تندی تریو کړ. مور یې ورته وویل تمنا درته ښه وایي. باید د یو بل درناوی وکړئ.**

**تکرار او کورنۍ دنده (٥ دقیقې)**

١. **تکرار:** ښوونکی له زده کوونکو سره د /ت/ غږ لرونکې ځینې کلمې تکراروي.
٢. **کورنۍ دنده:** زده کوونکي توري او کلمې په کورونو کې په خپلو کتابچو کې لیکي او لومړی متن تکراروي.

## فرعي موضوع: درناوی

**د زده کړې موخې:**

۱. له مؤنث او مذکر نومونو سره صفت ته مطابقت ورکول
۲. د متن له سیاق او سباق څخه په ګټې اخیستنې سره د کلمو پر معنا پوهېدل.
۳. د روان لوستلو ښه کول. له مناسب لحن او حرکاتو نه په ګټې اخیستنې او له ٪۹۵ سموالي سره د متنونو لوستل.

### ۱. کلمې(۱۰ دقیقې)

۱. ښوونکی زده کوونکو ته وايي چې هغوی دې د هلکانو او نجونو په اړه د تشریحاتو ورکولو تمرین وکړي. ښوونکی لاندینۍ کلمې پر تختې لیکي: یو کوچنی هلک، یوه کوچنۍ نجلۍ. ښوونکی دا کلمې له زده کوونکو سره لولي. ښوونکی وايي چې کوچنۍ یوه کلمه ده چې موږ ته د هلک او نجلۍ په اړه یو څه وايي. ښوونکی له زده کوونکو څخه د نورو بېلګو د وړاندې کولو غوښتنه کوي لکه (کشر، کشره، هوښیار هوښیاره، او داسې نور).
۲. ښوونکی زده کوونکو ته وايي چې خپل درسي کتابونو ته ځیر شي. هغوی یو هلک او یوه نجلۍویني. هغوی ډېرې تشریحي کلمې هم ویني. ځینې کلمې په نجلۍ پورې اړه لري او ځینې کلمې به هلک پورې. هغوی به کلمو ته له هلک یا نجلۍ سره مطابقت ورکړي. ښوونکی لومړۍ دوه بېلګې له زده کوونکو سره ترسره کوي.
۳. ښوونکی زده کوونکو ته وايي چې نورې کلمې په دوه کسیزه توګه ترسره کړي.
۴. کله چې زده کوونکي په کار بوخت وي، ښوونکی په ټولګي کې ګرځي او له هغو زده کوونکو سره مرسته کوي چې ستونزې لري.
۵. لړ وروسته، ښوونکی د زده کوونکو ځوابونه ګوري.
۶. ښوونکی له زده کوونکو څخه غوښتنه کوي چې و وايي هغوی په دې درس کې څه زده کړي دي. (ځواب: د یو هلک او نجلۍ په اړه د تشریحاتو ورکولو لپاره د ځانګړو کلمو کارول.)

### ۲. د لغتونو زېرمه (۱۵ دقیقې)

۱. ښوونکی زده کوونکو ته وايي چې هغوی به په ځیر سره د جملو په لوستلو سره د کلمې د معنا د پیدا کولو تمرین وکړي.
۲. ښوونکی دا جمله پر تختې لیکي: **زه درس وایم. (اوسپنه، کتاب)** ښوونکو د ځواب پیدا کولو طریقه ښيي.
۳. ښوونکی زده کوونکو ته وايي چې خپلو درسي کتابونو ته ځیر شي. هغوی پنځه جملې ویني. ښوونکی لومړۍ دوه جملې له زده کوونکو سره ترسره کوي.
۴. ښوونکی زده کوونکو ته وايي چې پاتې دوه جملې دې په دوه کسیزه توګه ترسره کړي. چټک زده کوونکي



کولای شي همدې تمرین ته د خپل تمرین په کتاب کې هم ادامه ورکړي.
۵. کله چې زده کوونکي په کار بوخت وي، ښوونکی په ټولګي کې ګرځي او له هغو زده کوونکو سره مرسته کوي چې ستونزې لري.
۶. لږ وروسته، ښوونکی د زده کوونکو ځوابونه ګوري.
۷. ښوونکی له زده کوونکو پوښتنه کوي چې و وايي هغوی په دې درس کې څه زده کړي دي. (ځواب: موږ د جملې په کارولو سره د کلمې معنا پیدا کول زده کړل.)

### ۳. د لومړي متن بیا لوستل (۱۰دقیقې)

۱. د څلورو پړاوونو څخه په ګټې اخیستنې ښوونکی تمثیلوي، ښوونکی او زده کوونکي په ګډه لولي، یعنې زده کوونکي په دوه کسیزه توګه لولي او زده کوونکي یې پخپله لولي په کارولو سره لومړی متن له زده کوونکو سره بیا لولي.

### تکرار او کورنۍ دنده (۵ دقیقې)

**۱. تکرار:** د پرتلیزو او عالي صفتونو دمفهوم تکرار.
**۲. کورنۍ دند:** ښوونکی زده کوونکو ته وايي چې کلمې په خپلو کورونو کې په کتابچو کې ولیکي او لومړی لوست تکرار کړي.

## فرعي موضوع: له کورنۍ سره مرسته

**د زده کړې موخې**

١- له مؤنثو او مذکرو نومونو سره صفت ته مطابقت ورکول.
٢- د متن له سیاق او سباق نه په ګټې اخیستنې سره د کلمو د معنا اخیستل
٣- د روان لوستلو ښه کول. له مناسب لحن او حرکاتو نه په ګټې اخیستنې او له ٪۹۵ سموالي سره د متنونو لوستل.

### ١. کلمې (١٠ دقیقې)

ښوونکی د لومړۍ کلمې جوړښت پر تختې لیکي کټ مټ هغسې لکه په درسي کتاب کې چې لیکل شوې دي.

١. ښوونکی بېلګه په لوړ غږ زده کوونکو ته لولي. بیا ښوونکی بېلګه له زده کوونکو سره یوځای لولي.
٢. ښوونکی تشریح کوي چې څنګه یوې کلمې ته د( **توب**) په ورزیاتولو سره د کلمې مفهوم بدلېږي.
٣. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې خپل درسي کتاب ته ځیر شي او لومړۍ دوه بېلګې له زده کوونکو سره لولي.
٤. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې په دوه کسیزه توګه کار وکړي او ټولې کلمې ولولي.
٥. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې د تمرین په کتابونو کې د کلمو لیکل تمرین کړي.
٦. کله چې زده کوونکي د کلمو په لوستلو بوخت وي، ښوونکی په ټولګي کې ګرځي او له هغو زده کوونکو سره مرسته کوي چې ستونزې لري.

### ٢. د دویم متن لوستل (٢٥ دقیقې)

**له لوستلو څخه مخکې**

١. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې سرلیک او انځور ته وګوري او وړاندوینه وکړي چې متن به د څه په اړه وي، مرسته کوي ( په خپلو کې شریکول، له ټولګیوالو سره شریکول)
٢. ښوونکی درې کلیدي کلمې له زده کوونکو سره معنا او په جملو کې یې استعمالوي.

**د لوستلو پر مهال**

١. ښوونکی له زده کوونکو سره د تم کېدلو او فکر کولو له ستراتیژۍ څخه په ګټې اخیستنې او تمرین کولو کې مرسته کوي.
٢. ښوونکی د لوستلو متن تمثیلوي
٣. ښوونکی او زده کوونکي متن په ګډه لولي
٤. ، زده کوونکي په خپله متن لولي.

**له لوستلو څخه وروسته**

١. ښوونکی له زده کوونکو څخه پوښتنه کوي چې آیا د کیسې په اړه یې وړاندوینه سمه ده؟ هو/ نه.



| بریالی | بریالی+توب | بریالیتوب |
|---|---|---|
| هلک | هلک+توب | هلکتوب |
| کوچنی | کوچنی+توب | کوچنیتوب |
| زلمی | زلمی+توب | زلمیتوب |

له کورنۍ سره مرسته

طیب په دریم او طوبا په دویم ټولګي کې ده. یوه ورځ دوی له ښوونځي څخه کور ته راغلل
طیب طوبا ته وویل: پلار مې په باغچه کې کار کوي. زه به له پلار سره مرسته وکړم
طوبا وویل ښه ده. زه به هم له مور سره مرسته وکړم
طیب له پلار سره د باغچې کار خلاص کړ بیا دواړه کور ته راغلل
ګوري چې طوبا او مور هم د کور کارونه سر ته رسولي دي.
پلار یې وویل آفرین بچیانو! دا دی کارونه مو وختي خلاص کړل.
اوس به ډوډۍ وخورو. بیا به زه په درسونو کې در سره مرسته وکړم

**٢-پوښتنه: طیب طوباته څه وویل؟**
**ځواب: زه به له پلاره سره مرسته وکړم.**
**٣- پوښتنه: طوبا له مور سره کوم کارونه خلاص کړل؟**
**ځواب: د کور کارونه.**
**۴- پوښتنه: په کارونو کې له یو بل سره مرسته څه ګټې لري؟**
**ځواب: کارونه په ښه توګه او ژر ترسره کېږي.**
**۵- پوښتنه: تاسو له کورنۍ سره څه ډول مرستې کولای شئ؟**
**ځواب: د کور او بهر په کارونو کې مرسته کولای شو.**

ښوونکی زده کوونکو ته د یوه متن په لنډو ټکو کې بیانول ښیي (دتفصیلي لارښوونو لپاره د برخې د عمومي کتنې برخې ته مراجعه وکړئ). (امکاني لنډیز: )

**د خپلو درسونو ترڅنګ باید له مور سره د کور په کارونو کې او له پلار سره له کور څخه دباندې کارونو کې مرسته وکړو.**

### تکرار او کورنۍ دنده (۵ دقیقې)

١. **تکرار:** ښوونکی د تورو نومونه او غږونه له زده کوونکو سره تکراروي.
٢. **کورنۍ دنده:** زده کوونکي توري او کلمې په کورونو کې په خپلو کتابچو کې لیکي او دوهم لوست تکراروي.

فرعي موضوع: له کورنۍ سره مرسته

**د زده کړې موخې:**
۱. د حال زماني په تېرې زمانې بدلول.
۲. د یوې کلمې د نږدې بلې کلمې د پیدا کولو لپاره له سیاق او سباق څخه ګټه اخیستل.
۳. له مناسب لحن، حرکاتو او ٪۹۵ سموالي سره د متن لوستل.

### ۱. جملې (۱۰ دقیقې)

۱. ښوونکی لاندې جمله په تختې لیکي: **دا ښوونکی دی** ښوونکی دا جمله زده کوونکو ته لولي. ښوونکی وایي، زه دا جمله په یو بل ډول هم ویلای شم، لکه: **دا ښوونکی و** ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې بدلېدونکې کلمه د عمل د کلمې یا فعل په نوم یادېږي. ښوونکی یو څو نورې بېلګې زده کوونکو ته وړاندې کوي.
۲. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې خپلو درسي کتابونو ته ځېر شي او ځینې جملې په ګډه سره تمرین کړي. هغه کلمه چې لاندې یې خط کښل شوی د عمل کلمه یا فعل دی. دا هغه کلمه ده چې بدلېږي.
۳. ښوونکی لومړی دوه جملې له زده کوونکو سره تمرین کوي.
٤. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې په دوه کسیزه توګه کار وکړي او پاتې نورې جملې ولولي او تېرې زمانې ته یې واړوي.
۵. ښوونکی له هغو زده کوونکو سره مرسته کوي چې ستونزې لري.
٦. لږ وروسته، ښوونکی د زده کوونکو ځوابونه ګوري.
۷. ښوونکی له زده کوونکو څخه غوښتنه کوي چې هغه څه دي و وایي چې په دې درس کې یې زده کړي دي. (ځواب: د تېرې زمانې کارول.)
۸. ښوونکی لومړی دوه جملې له زده کوونکو سره تمرین کوي.
۹. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې په دوه کسیزه توګه کار وکړي او پاتې نورې جملې ولولي او تېرې زمانې ته یې واړوي.

### ۲. د لغتونو زېرمه (۱۵ دقیقې)

۱. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې هغوی به په ځېر سره د جملو په لوستلو سره د کلمې ته نږدې د بلې کلمې د پیدا کولو تمرین وکړي.
۲. ښوونکی دا جمله په تختې لیکي: **اتل چای څښي**. (**پیاله ، بوټ**) ښوونکو د ځواب پیدا کولو طریقه ښیي.
۳. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې خپلو درسي کتابونو ته ځېر شي. هغوی څلور جملې ویني. ښوونکی لومړی دوه جملې له زده کوونکو سره ترسره کوي.
٤. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې پاتې دوه جملې دې په دوه کسیزه



توګه ترسره کړي. چټک زده کوونکي کولای شي همدې تمرین ته د تمرین په کتاب کې هم ادامه ورکړي.
۵. کله چې زده کوونکي په کار بوخت وي، ښوونکی په ټولګي کې ګرځي او له هغو زده کوونکو سره مرسته کوي چې ستونزې لري.
٦. لږ وخت وروسته، ښوونکی د زده کوونکو ځوابونه ګوري.
۷. ښوونکی له زده کوونکو څخه پوښتنه کوي چې و وایي هغوی په دې درس کې څه زده کړي دي. (ځواب: موږ د جملې په کارولو سره د کلمې نږدې بله کلمه پیدا کول زده کړل.)

### ۳. د دویم متن بیا لوستل (۱۰دقیقې)

۱. د څلورو پړاوونو څخه په ګټې اخیستنې ښوونکی تمثیلوي، ښوونکي او زده کوونکي په ګډه لولي، یعنې زده کوونکي په دوه کسیزه توګه لولي او زده کوونکي یې پخپله لولي)، په کارولو سره لومړی متن له زده کوونکو سره بیا لولي.

### تکرار او کورنۍ دنده (۵ دقیقې)

**۱. تکرار:** د حال زماني فعل په تېرې زمانې د بدلولو تکرار.
**۲. کورنۍ دنده:** ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې کلمې په خپلو کورونو کې په کتابچو ولیکي او متن بیا ولولي او د املا د تمرین لپاره د کلمو تمرین ترسره کړي.

د حسن خط فعالیت، ارزونه او کورنۍ دنده (۴۰ دقیقې)

## فرعي موضوعګانې: درناوی او له کورنۍ سره مرسته

**د زده کړې موخې:**

۱- په خوښۍ، خپګان او داسې نورو حالاتو کې د خپلو احساساتو پېژندل.
۲- د نوښتي لیکنې د کیسې بشپړول.
۳- له مناسب لحن،حرکاتو او٪ ۹۵ سموالي سره د متن لوستل.

### ۱. غوږنیول او خبرې کول (۱۰ دقیقې)

۱. ښوونکی زده کوونکو ته وايي چې په دې لوست کې به دوی ځینې هیجانات او احساسات وپېژني. هیجانات د احساساتو یوه هم معنا ستونزمنه کلمه ده. د احساساتو پېژندل په دې معنا چې یو څوک یو حالت څه ډول درک کوي او په اړه یې څه ډول احساسات له خپله ځانه ښيي.
۲. زده کوونکو ته و وایاست چې په درسي کتاب کې هغو انځورونو ته وګوري چې ماشومان پکې ځینې احساسات ښکاره کوي. زده کوونکو ته و وایاست چې د شپږو انځورونو په اړه یو له بل سره بحث وکړي او ووايي چې هر انځور څه ډول احساس بیانوي. څو زده کوونکو ته وخت ورکړئ چې خپل نظرونه له ټولګیوالو سره شریک کړي.
۳. زده کوونکو ته و وایاست چې د تمرین په کتابونو کې شپږ انځورونه او شپږو کلمو ته وګوري.هغوی ته و وایاست چې کلمې له اړونده انځورونو ولیکئ. څو زده کوونکو ته اجازه وکړئ چې خپل ځوابونه له ټولګیوالو سره شریک کړي.
۴. ښوونکی زده کوونکو ته وايي چې زه یو احساس بیانوم، تاسو به د دې احساس اړوند عمل یا تمثیل کوئ. زده کوونکي کولی شي د دې عمل یا تمثیل د ترسره کولو په خاطر خپل مخونه، د بدن نور غړي او غږونه وکاروي. ښوونکی زده کوونکو ته یو مثال وايي چې د 'خوشحالۍ' له احساس سره څه ډول عمل یا تمثیل وکړي. همدا کار د لاندې احساساتو لپاره ترسره کړئ: خوشحاله، خفه، غوسه، وېره، ستومانه او ویاړ کول. که اړینه وي د هر احساس تمثیل دې وکړي.
۵. ښوونکی وايي دا مهمه ده چې خپل احساسات وپېژنئ او نورو ته یې ځرګنده کړئ چې تاسو به پورتنیو حالتونو کې څه ډول احساس کوئ. له خپلو ملګرو سره خپل احساسات شریک کړئ او ورته وواياست چې د یوه حالت په اړه څه احساس کوئ. کله چې د خوشحالۍ احساس کوئ، نو مهمه ده چې دا احساس له نورو سره شریک کړئ خو که چېرې تاسو د غوسې یا خفګان احساس کوئ نو داهم ډېره مهمه ده چې دا ډول احساسات هم له نورو سره شریک کړئ تر څو له تاسو سره مرسته وکړي او تاسو ته د آرامۍ احساس درکړي.



### ۲. نوښتي لیکنه (۱۵ دقیقې)

۱. ښوونکی زده کوونکو ته وايي چې هغوی به اوس د خپلو احساساتو د پېژندلو په اړه یوه کیسه ولیکي.
۲. ښوونکی د درسي کتاب جملې او د چوکاټ کلمې له زده کوونکو سره یو ځای لولي.
۳. ښوونکی زده کوونکو ته وايي چې د تمرین په کتابونو کې د چوکاټ د کلمو په کارولو سره په تشو ځایونو کې په دوه کسیزه توګه جملې جوړې کړي او نیمګړې کیسه دې بشپړه کړي.
۴. ښوونکی په ټولګي کې ګرځي او هغو زده کوونکو ته چې ستونزې لري مرسته او لارښوونه کوي.
۵. ښوونکی له څو زده کوونکو غواړي چې خپلې بشپړې کړې کیسې ټولګیوالو ته و وايي.

### ۳. د لومړي او دویم متن بیا لوستل (۱۰دقیقې)

۱. ښوونکی له دوو پراوونو (زده کوونکي په دوه کسیزه توګه لولي، زده کوونکي یې پخپله لولي)، څخه په ګټې اخیستنې سره لومړی او دوهم متن له زده کوونکو سره بیا لولي.

### تکرار او کورنۍ دنده (۵ دقیقې)

۱. **تکرار:** زده کوونکي دې د مختلفو احساساتو نومونه واخلي،
۲.**کورنۍ دنده:** د لومړي او دوهم متن بیا لوستل. د نوښتي کیسې بشپړول او یو انځور ورسره زیاتول.

## فرعي موضوع: تکرار او دوامداره ارزونه

**د زده کړې موخې:**

۱- له مؤنثو او مذکرو نومونو سره صفت ته مطابقت ورکول.
۲- له سياق او سباق څخه په ګټې اخيستنې سره د کلمو معنا اخيستل.
۳- حال زمانه په تېره زمانه بدلول.
۴- له ٪ ۹۰ سموالي سره د متن لوستل.
۵- د کلمې او جملې په کچه د مناسب لحن او فشار په کارولو سره د متن لوستل.
۶- له ٪ ۸۰ سموالي سره د کلمو او جملو ليکل.

### ۱. کلمې او جملې (۱۰ دقيقې)

۱. ښوونکی مذکر او مؤنث صفتونه له زده کوونکو سره تکرار وي.
۲. ښوونکی زده کوونکو ته وايي چې د درسي کتاب (الف) تمرين ترسره کړي.
۳. ښوونکی له جملو څخه په ګټې اخيستنې سره د کلمو معنا پيدا کول تکراروي.
۴. ښوونکی زده کوونکو ته وايي چې د درسي کتاب (ب) تمرين ترسره کړي.
۵. ښوونکی تېره زمانه تکراروي.
۶. ښوونکی زده کوونکو ته وايي چې د درسي کتاب (ج) تمرين ترسره کړي.
۷. ښوونکی د زده کوونکو ځوابونه ګوري.
۸. ښوونکی د اوږدمهالې ارزونې کتاب کې د زده کوونکو نومرې ثبتوي.

### ۲. د لومړي او دويم متن بيا لوستل (۱۰ دقيقې)

۱. ښوونکی زده کوونکو ته دوه دقيقې وخت ورکوي چې په دوه کسيزه توګه لومړی يا دويم متن ژر ژر ولولي.
۲. ښوونکی د زده کوونکو له څلورو جوړو څخه غوښتنه کوي چې د ټولګي مخې ته راشي.
۳. ښوونکی هغوی ته وايي چې هره جوړه به د متن يوه برخه لولي. هغوی بايد متن په روانه توګه او د مناسب لحن او حرکاتو په کارولو سره ولولي چې ټکی او د پوښتنې نښه منعکس کړي.
۴. ښوونکی زده کوونکو ته وايي چې متن ورو ورو له هغه سره ولولي او ښه غوږ ورته ونيسي.
۵. کله چې زده کوونکي په لوستلو بوخت وي، ښوونکی د هغوی د لوستلو ځرګوالی مشاهده کوي او خپله مشاهده د اوږدمهالې ارزونې په کتاب کې ليکي. له هغو زده کوونکو سره چې په ښه توګه دا فعاليت ترسره نه کړي، بايد په بله اونۍ کې مرسته وشي.



### ۳. املا (۱۵ دقيقې)

۱. ښوونکی زده کوونکو ته وايي چې هغوی به څو کلمې او جملې وليکي.
۲. ښوونکی زده کوونکو ته د درسي کتابونو د تړلو او د تمرين کتابونو د پرانيستلو وايي.
۳. ښوونکی لومړی کلمه په کراره وايي او څلور ځلې يې تکراروي. کلمه دا ده: **تميم**
۴. زده کوونکي کلمې د تمرين په کتاب کې ليکي.
۵. ښوونکی همدغه کار د لاندې اتو (۸) کلمو لپاره هم ترسره کوي: **تبر، مرسته، ناست، لوستونه، مکتب، توريپکۍ، سترې، ساعت.**
۶. ښوونکی لومړی جمله په کراره لولي او څلور ځله يې په کراره کراره تکراروي. جمله دا ده: **۱. تميم د مور درناوی کوي.**
۷. زده کوونکي جمله د تمرين په کتاب کې ليکي.
۸. ښوونکی هم دا کار د لاندې دريو جملو لپاره هم ترسره کوي.
**۲. توريپکۍ له خپلې مور سره مرسته کوي.**
**۳. په تبر لرګي ماتوو.**
**۴. ټولګيوال له يو بل سره مرسته کوي.**
۹. ښوونکی زده کوونکو ته وايي چې د تمرين کتابچې د کتلو لپاره راوړي. ښوونکی د هغوی د املا ګوري او نومرې ورکوي.
۱۰. ښوونکی د زده کوونکو نومرې د پرله پسې ارزونې په کتاب کې ثبتوي.

### تکرار او کورنۍ دنده (۵ دقيقې)

**۱. تکرار:** هغه څه تکرارول چې زده کوونکو په دې اونۍ کې زده کړي دي.
**۲. کورنۍ دنده:** ښوونکی زده کوونکو ته وايي چې په کورونو کې د درسونو د هغو برخو بيا ليکل او لوستل دې ترسره کړي چې د اونۍ په جريان کې يې ورسره ستونزې لرلې.

د حسن خط فعاليت، ارزونه او کورنۍ دنده (۴۰ دقيقې)

**فرعي موضوع: کورنی اقتصاد** **توري: ط**

### د زده کړې موخې:

۱. د /ط/ غږ او (ط) توري درلودونکو کلمو سم لیکل
۲. د انځور، سرلیک مهمو کلمو او د مخکنۍ پوهې څخه په ګټې اخیستنې سره د اوریدونکو/ وړاندوینه وکړي چې کیسه یا متن به د څه په اړه وي.
۳. د لوستلو پر مهال تم کېدل او فکر کول.
۴. یو لوستل شوی متن په لنډو ټکو کې بیانول.

### ۱. توری او کلمې (۱۰ دقیقې)

۱. ښوونکی زده کوونکو ته وايي د (ط) او (ت) توري یو غږ لري چې ځینې کلمې د (ت) په توري او ځینې نوري یې د (ط) په توري لیکل کېږي.
۲. ښوونکی زده کوونکو ته وايي چې په دې اونۍ کې به د هغو کلمو تمرین کوي چې د (**ط**) توری پکې کارول کېږي.
۳. ښوونکی لاندینی کلمې پر تخته لیکي: **طالب، سطل** ښوونکی له زده کوونکو څخه غوښتنه کوي چې کلمې په لوړ غږ ولولي. ښوونکی له زده کوونکو پوښتنه کوي چې کوم توري د/t/غږ لري. ښوونکی څو زده کوونکو ته اجازه ورکوي چې توري ته ګوته ونیسي.
٤. ښوونکی زده کوونکي د درسي کتابو لوستلو ته رابولي. ښوونکی کلمې په داسې حال کې زده کوونکو ته لولي چې هغوی خپلې ګوتې پر کلمو تېروي. بیا زده کوونکي هغه کلمې په دوه کسیزه توګه لولي.
٥. ښوونکی زده کوونکو ته وايي چې د تمرین په کتابونو کې د کلمو لیکل تمرین کړي.
٦. ښوونکی زده کوونکو ته وايي چې هغوی باید د دغو کلمو لیکل هر ورځ په کور کې تمرین کړي.
٧. ښوونکی زده کوونکو ته وايي چې هغوی به د اونۍ په پای کې د دې کلمو په اړه املا ولري.

### ۲. د لومړي متن لوستل (۲۵ دقیقې)

**له لوستلو څخه مخکې**

۱. ښوونکی زده کوونکو ته وايي چې سرلیک او انځور ته وګوري او وړاندوینه وکړي چې متن به د څه په اړه وي. (په خپلو کې شریکول، له ټولګیوالو سره شریکول).

ښوونکی درې کلیدي کلمې له زده کوونکو سره معنا او په جملو کې یې استعمالوي.

**د لوستلو پرمهال**

۱. ښوونکی تمیثل کوي، ښوونکی او زده کوونکي په ګډه لوستل کوي، زده کوونکي په دوه کسیزه توګه لوستل کوي.
۲. ښوونکی زده کوونکو ته ښيي چې څنګه کولای شي د تم کېدلو او فکر کولو ستراتیژۍ څخه ګټه واخلي.

**له لوستلو څخه وروسته**

۱. ښوونکی له زده کوونکو څخه پوښتنه کوي چې د



۹ اونۍ ۱ لوست

توري او کلمې

| طالب | طاهره | طاهر |
|---|---|---|
| سطل | مطلب | لطیف |
| خیاط | ضابط | وطن |

ط

کورنی اقتصاد

کیسې په اړه یې وړاندوینه سمه ده؟ هو یا نه.
۲. ښوونکی له زده کوونکو څخه لاندې پوښتنې کوي.

- **پوښتنه: طالع ګل ولې خپه و؟**

**ځواب: ځکه چې ژوند یې ښه نه و.**

- **پوښتنه: طیبې له طالع ګل سره څه ډول مرسته وکړه؟**

**ځواب: طیبې خوندوره حلوا پخوله، طالع ګل به په بازار کې خرڅوله:**

- **پوښتنه: طالع ګل او طیبې څه ډول خپل اقتصاد ښه کړ؟**

**ځواب: د یو بل په مرسته.**

- **پوښتنه: که په کورنۍ کې له یو بل سره مرسته وکړو څه ګټه به ولري؟**

**ځواب: د کورنۍ اقتصاد به مو ښه شي.**

۳- ښوونکی له زده کوونکو سره یو ځای متن په لنډو ټکو کې بیانوي. ( د تفصیلي لارښوونو لپاره د برخې د عمومي کتنې برخې ته مراجعه وکړئ) د اقتصاد په جوړولو کې فکر کول او د کورنۍ له غړو سره مشوره کول ډېر ښه کار دي.

### تکرار او کورنۍ دنده (۵ دقیقې)

۱. **تکرار:** ښوونکی له زده کوونکي سره د /ط/ او /ت/ غږ لرونکې ځینې کلمې تکراروي.
۲. **کورنۍ دنده:** ښوونکی زده کوونکو ته وايي چې په کورونو کې د توري او کلمو لیکل او لومړی لوست تکرار کړي.

## فرعي موضوع: کورنی اقتصاد

**د زده کړې موخې:**

۱. له نومونو سره د مؤنث او مذکر صفتونو کارول.
۲. د متن له سیاق او سباق څخه په ګټې اخیستنې سره د کلمو معنا اخیستل.
۳. له مناسب لحن او حرکاتو څخه په ګټه اخیستنې او له ۹۵٪ سموالي سره متنونو لوستل.

### ۱. کلمې (۱۰ دقیقې)

۱. ښوونکی له زده کوونکو څخه پوښتنه کوي چې ایا هغه کلمې اوس هم په یاد لري چې یو هلک یا نجلۍ تعریفوي. ښوونکی له زده کوونکو څخه د څو بېلګو د وړاندې کولو غوښتنه کوي.
۲. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې خپلو درسي کتابونو ته ځیر شي. هغوی د خلکو انځورویني. هغوی د کلمو یو لست هم ویني چې هغوی یې باید د خلکو د تعریفولو لپاره وکاروي. ښوونکی لومړۍ دوه بېلګې له زده کوونکو سره یوځای ترسره کوي. بیا زده کوونکي په دوه کسیزه توګه کار ته ادامه ورکوي.
۳. کله چې زده کوونکي په کار بوخت وي، ښوونکی په ټولګي کې ګرځي او له هغو زده کوونکو سره مرسته کوي چې ستونزې لري.
٤. ښوونکی د زده کوونکو ځوابونه ګوري.
۵. ښوونکی له زده کوونکو څخه غوښتنه کوي چې و وایي هغوی په دې درس کې څه زده کړي دي. (ځواب: د خلکو د تعریفولو لپاره د ځانګړو کلمو کارول.)

### ۲. د لغتونو زېرمه (۱۵ دقیقې)

۱. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې هغوی به په ځیر سره د جملو په لوستلو سره د مترادفو کلمو د پیدا کولو تمرین وکړي.
۲. ښوونکی دا جمله په تختې لیکي: **داتیره توره ده.**
۳. ښوونکی له زده کوونکو څخه پوښتنه کوي چې د هغو کلمو لپاره چې لاندې یې خط کښل شوی، کومه کلمه (**تخته، ډېره**) سم ځوا ب دی.
٤. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې خپل درسي کتابونو ته ځیر شي. هغوی پنځه(۵) جملې ویني. هغوی باید په چوکاټ کې هغه کلمې ولټوي چې په جملو کې له ورکړل شویو کلمو سره چې لاندې یې خطونه کښل شوي، مطابقت لري. ښوونکی لومړۍ دوه جملې له زده کوونکو سره ترسره کوي.
۵. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې پاتې جملې دې په دوه کسیزه توګه ترسره کړي. چټک زده کوونکي



کولای شي همدې تمرین ته د خپل تمرین په کتاب کې هم ادامه ورکړي.
٦. کله چې زده کوونکي په کار بوخت وي، ښوونکی په ټولګي کې ګرځي او له هغو زده کوونکو سره مرسته کوي چې ستونزې لري.
۷. لږ وخت وروسته، ښوونکی د زده کوونکو ځوابونه ګوري.
۸. ښوونکی له زده کوونکو څخه پوښتنه کوي چې و وایي هغوی په دې درس کې څه زده کړي دي. (ځواب: موږ د جملو په کارولو سره د کلمو معنا پیدا کول زده کړل.)

### ۳. د لومړي متن بیا لوستل (۱۰دقیقې)

۱. له خلورو پراوونو څخه په ګټې اخیستنې سره ښوونکی تمثیلوي، ښوونکی او زده کوونکي یې په ګډه لولي، زده کوونکي یې په دوه کسیزه توګه لولي او زده کوونکي یې پخپله لولي، په کارولو سره لومړی متن له زده کوونکو سره بیا لولي.

### تکرار او کورنۍ دنده (۵ دقیقې)

**۱. تکرار:** د پرتلیزو او عالي صفتونو مفهوم تکرار.
**۲. کورنۍ دنده:** ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې په کورونو کې د کلمو لیکل په خپلو کتابچو کې ترسره کړي او متن بیا ولولي او د املا د تمرین لپاره د کلمو تمرین ترسره کړي.

فرعي موضوع: مور

**د زده کړې موخې:**

۱- د کلمو د تجزیه کولو لپاره په مورفیمونو باندې د کلمو د جوړښت د پوهې کارول.
۲- وراندوینه کول چې دا کیسه یا متن به د څه په اړه وي .
۳- د لوستلو پر مهال تم کېدل او فکر کول.
۴- لوستل شوی متن په لنډو ټکو کې بیانول.

### ۱. کلمې (۱۰دقیقې)

۱. ښوونکی د لومړی کلمې جوړښت کټ مټ هغسې پر تخته لیکي لکه په درسي کتاب کې چې لیکل شوی دی.
۲. ښوونکی نمونه په لوړ غږ زده کوونکو ته لولي. بیا ښوونکی نمونه له زده کوونکو سره یوځای لولي.
۳. ښوونکی تشریح کوي چې څنګه یوې کلمې ته د (**توب**)په ورزیاتولو سره د کلمې مفهوم بدلېږي.
۴. ښوونکی زده کونکو ته وایي چې خپل درسي کتاب ته ځیر شي او لومړی دوه بېلګې له زده کوونکو سره ولولي.
۵. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې په دوه کسیزه توګه کار وکړي او ټولې کلمې ولولي.
۶. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې د تمرین په کتابونو کې د کلمو لیکل تمرین کړي.
۷. کله چې زده کوونکي د کلمو په لوستلو بوخت وي، ښوونکی په ټولګي کې ګرځي او له هغو زده کوونکو سره مرسته کوي چې ستونزې لري.

### ۲. د دویم متن لوستل (۲۵ دقیقې)

**له لوستلو څخه مخکې**

۱. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې سرلیک او انځور ته وګوري او وړاندوینه وکړي چې متن به د څه په اړه وي. ( په خپلو کې شریکول، له ټولګیوالو سره شریکول).
۲. ښوونکی درې کلیدي کلمې له زده کوونکو سره معنا او په جملو کې یې استعمالوي.

**د لوستلو پر مهال**

۱. ښوونکی تمثیل کوي، ښوونکی او زده کوونکي په ګډه لوست لولي زده کوونکي په دوه کسیزه توګه لوستل کوي.
۲. ښوونکی زده کوونکو ته ښیي چې څرنګه د تم کېدلو او فکر کولو له ستراتیژۍ څخه ګټه واخلي.

**له لوستلو څخه وروسته**

۱. ښوونکی له زده کوونکو نه پوښتنه کوي چې د کیسې په اړه یې وړاندوینه سمه ده؟ هو/ نه.
۲. ښوونکی له زده کوونکو څخه لاندې پوښتنې کوي.



کلمې

| مشر | مشر+توب | مشرتوب |
|---|---|---|
| ساده | ساده+توب | ساده‌توب |
| ماشوم | ماشوم+توب | ماشومتوب |
| مېړنی | مېړني+توب | مېړنتوب |

باغچه - اندېښنه - مشوره

مور

د پسرلي ښکلی موسم و.
یوه ورځ طاهر او طاهره په خپله شنه باغچه کې ناست وو.
مور یې له طاهرې سره سبق وایه
طاهر کتابچه او قلم په لاس، خپه ناست و.
مور یې ورته وویل: زوی جانه ولې داسې خپه ښکارې؟
طاهر سر وخوځاوه او ویې ویل
مورې! پرون مور ته ښوونکي وویل: «ناسې د مور په هکله یو څه ولیکئ.»
مور یې په خندا وویل: زویه اندېښنه مه کوه زه او خور به دې درسره مرسته وکړو.
په دې خبرې سره د طاهر تندی وغوړېد او خوشحاله شو. بیا یې د مور او خور په مشوره خوږه ترانه ولیکله

- **پوښتنه: طاهر او طاهره چېرته ناست وو؟**
**ځواب: په خپله شنه باغچه کې.**
- **پوښتنه: طاهر ولې خپه ناست و؟**
**ځواب: د مور په هکله یې څه نه وو لیکلي.**
- **پوښتنه: د طاهر ستونزه څنګه حل شوه؟**
**ځواب: د مور او خور په مرسته یې ستونزه حل شوه.**
- **پوښتنه: طاهر له کومو نورو لارو څخه خپله ستونزه حل کولای شوای؟**
**ځواب: د کتابتون او ملګرو په مرسته یې.**

۳. ښوونکی زده کوونکو ته د یوه متن په لنډو ټکو کې بیانول ښیي(د تفصیلي لارښوونو لپاره د برخې د عمومي کتنې ته مراجعه وکړئ).
۴. د طاهر مور پوه شوه چې هغه خپه ښکاریده. **مور او خورې ورسره مرسته وکړه او خوږه ترانه یې ولیکله.**

### تکرار او کورنی دنده (۵ دقیقې)

۱. **تکرار:** ښوونکی د (**توب**) وروستاړي د تمرکز کولو سره کلمې تکراروي.
۲. **کورنۍ دنده:** زده کوونکي توري او کلمې په کورونو کې په خپلو کتابچو کې لیکي او دوهم متن تکراروي.

## فرعي موضوع: مور

**د زده کړې موخې:**

۱. د حال زماني په تېرې زماني بدلول.
۲. د يوې کلمې د معنا د پيدا کولو لپاره له سياق او سباق څخه ګټه اخيستل.
۳. له مناسب لحن او حرکاتو او ۹۵٪ سموالي سره د متن لوستل.

### ۱. جملې (۱۰ دقيقې)

۱. ښوونکی لاندې جمله پر تخته ليکي: **(زه کور ته ځم)** ښوونکی له زده کوونکو څخه پوښتنه کوي چې ايا هغوی په ياد لري چې جمله څرنګه بدلېږي، ترڅو يو کار داسې وښودل شي چې پرون ترسره شوی وي.
ځواب: **تللی وم**
۲. ښوونکی زده کوونکو ته وايي چې خپلو درسي کتابونو ته ځير شي. په لومړي چوکاټ کې ورکړل شوې د عمل کلمې (فعلونه) هغه کلمې دي چې په داګه کوي چې يو کار همدا اوس ترسره کېږي. په دوهم چوکاټ کې ورکړل شوې د عمل کلمې (فعلونه) هغه کلمې دي چې په داګه کوي چې يو کار پرون يا ډېر مخکې ترسره شوی دی.
۳. ښوونکی زده کوونکو ته وايي چې هغوی بايد د لومړي چوکاټ د عمل کلمې (فعلونه) د دوهم چوکاټ له کلمو سره پرتله کړي.
٤. ښوونکی لومړی دوه د عمل کلمې (فعلونه) له زده کوونکو سره ترسره کوي.
٥. ښوونکی زده کوونکو ته وايي چې په دوه کسيزه توګه کار وکړي او تمرين بشپړ کړي.
٦. ښوونکی له هغو زده کوونکو سره مرسته کوي چې ستونزې لري.
۷. لږ وروسته، ښوونکی د زده کوونکو ځوابونه ګوري.
۸. ښوونکی له زده کوونکو څخه غوښتنه کوي چې هغه څه و وايي چې په دې درس کې يې زده کړي دي.
(ځواب: د نن ورځې د عمل کلمې (فعل د تېرې ورځې (پرون) د عمل کلمو (فعل) سره پرتله (پرون) د عمل کلمو (فعل) سره پرتله کول).

### ۲. د لغتونو زېرمه (۱۵ دقيقې)

۱. ښوونکی زده کوونکو ته وايي چې هغوی به په ځير سره د جملو په لوستلو سره د کلمې د معنا د پيدا کولو تمرين وکړي.
۲. ښوونکی دا جمله پر تختې ليکي: **زده کوونکي ښوونځي ته ځي.**
۳. ښوونکی له زده کوونکو څخه پوښتنه کوي چې د هغې کلمې لپاره چې لاندې يې خط کښل شوی، کومه کلمه سم ځواب دی؟ **(زده کړه، لرګی).**
٤. ښوونکی زده کوونکو ته وايي چې خپل درسي کتابونو ته ځير شي. هغوی پنځه(۵) جملې وينې. هغوی بايد په چوکاټ کې هغه کلمې ولټوي چې په جملو کې له ورکړل شويو کلمو سره چې لاندې يې خطونه کښل شوي، مطابقت لري. ښوونکی لومړی دوه جملې له زده کوونکو سره ترسره کوي.




٥. ښوونکی زده کوونکو ته وايي چې پاتې جملې دې په دوه کسيزه توګه ترسره کړي. چټک زده کوونکي کولای شي همدې تمرين ته د خپل تمرين په کتاب کې هم ادامه ورکړي.
٦. کله چې زده کوونکي په کار بوخت وي، ښوونکی په ټولګي کې ګرځي او له هغو زده کوونکو سره مرسته کوي چې ستونزې لري.
۷. لږ وروسته، ښوونکی د زده کوونکو ځوابونه ګوري.
۸. ښوونکی له زده کوونکو پوښتنه کوي چې و وايي هغوی په دې درس کې څه زده کړي دي. (ځواب: مور د جملې په کارولو سره د کلمې معنا پيدا کول زده کړل.)

### ۳. د دويم متن بيا لوستل (۱۰ دقيقې)

۱. له څلورو پراوونو څخه په ګټې اخيستنې ښوونکی تمثيلوي، ښوونکی او زده کوونکي په ګډه لولي، يعنې زده کوونکي په دوه کسيزه توګه لولي او زده کوونکي يې پخپله لولي، په کارولو سره دوهم متن له زده کوونکو سره بيا لولي.

### تکرار او کورنۍ دنده (۵ دقيقې)

۱. **تکرار:** په حال او تېره زمانه کې د عمل کلمې (فعلونه).
۲. **کورنۍ دنده:** ښوونکی زده کوونکو ته وايي چې جملې په کورونو کې په خپلو کتابچو کې وليکي او متن بيا ولولي او د املا د تمرين لپاره د کلمو تمرين ترسره کړي.

د حسن خط فعاليت، ارزونه او کورنۍ دنده (۴۰ دقيقې)

## فرعي موضوعګانې: کورنی اقتصاد او مور

**د زده کړې موخې:**

۱- په ښوونې، خپګان او داسې نورو حالتونو کې د احساساتو پېژندل.

۲- د نوښتي لیکنې د کیسې بشپړول.

۳- له مناسب لحن او حرکاتو او٪ ۹۵ سمولې سره متنونه لوستل.

### ۱. غوږنیول او خبرې کول (۱۰ دقیقې)

۱. ښوونکی زده کوونکو ته وايي چې تاسو به د خپلو احساساتو د پېژندلو تمرین کوئ. تاسو ځینې وخت د خوشحالۍ او ځینې وخت د خفګان احساس کوئ. ښوونکی زده کوونکو ته یو مثال وايي: څو ورځې مخکې ما د خوشحالۍ احساس کاوه ځکه چې ما نوی کتاب تر لاسه کړ.

۲. له زده کوونکو څخه پوښتنه وکړئ چې دوی څه وخت د خوشحالۍ احساس کړی دی او دلیل یې څه و؟

۳. ښوونکی زده کوونکو ته وايي چې خپلو درسي کتابونو ته وګوري. هغوی په انځورونو کې زده کوونکي ویني چې خپل احساسات پکې څرګندوي. له زده کوو څخه وغواړئ چې لومړي انځور ته وګوري او پوښتنه ورڅخه وکړئ چې په انځور کې څه ډول احساس پېژني؟ (خوشحاله کس). څه فکر کوئ چې دا کس ولې د خوشحالۍ احساس کوي؟ زده کوونکو ته اجازه ورکړئ چې خپل ځوابونه و وايي. همدا کار د دویم انځور (خفه کس) او دریم انځور (وېرېدلی کس) لپاره هم ترسره کړئ.

۴. زده کوونکو ته و وایاست چې د تمرین کتابونه راواخلي چې پکې درې نور انځورونه ویني. هغوی ته و وایاست چې له خپلو ملګرو سره د انځورونو په اړه بحث وکړي. هغوی دې لومړی څرګنده کړي چې په انځورونو کې زده کوونکي څه ډول احساس کوي؟ او بیا دې ولیکي چې هغوی ولې د غوسې، ویاړ او وارخطايي احساس کوي؟

۵. ښوونکی له زده کوونکو سره د انځورونو په اړه بحث کوي او زده کوونکي ځوابونه وايي.

٦. ښوونکی دې له زده کوونکو غواړي چې و وايي هغوی څه وخت د خوشحالۍ، خفګان، وارخطايۍ، وېرې، ویاړ او غوسې احساس کوي او ولې داسې احساس کوي.

۷. ښوونکی وايي مور او تاسو باید په دې وپوهېږو چې د مختلفو حالتونو په اړه به ډول ډول احساسات لرو، ترڅو خپل ځانونه دا ډول احساساتو ته چمتو کړو او همدارنګه دا ډول احساسات مو د کورنۍ له غړو او ملګرو سره شریک کړو.

### ۲. نوښتي لیکنه (۱۵ دقیقې)

۱. ښوونکی زده کوونکو ته وايي چې هغوی به اوس د دې په اړه چې تاسو څه احساس کوئ یوه کیسه ولیکي.

۲. ښوونکی زده کوونکو ته وايي چې د درسي کتاب جملې او د چوکاټ کلمې یو له بل سره په ګډه ولولي.



۳. ښوونکی زده کوونکو ته وايي چې د تمرین په کتابونو کې د چوکاټ د کلمو په کارولو سره په تشو ځایونو کې په دوه کسیزه توګه جملې جوړې کړي او نیمګړې کیسه دې بشپړه کړي.

۴. ښوونکی په ټولګي کې ګرځي او هغو زده کوونکو ته چې ستونزې لري مرسته او لارښوونه کوي.

۵. ښوونکی له څو زده کوونکو غواړي چې خپلې بشپړې کړې کیسې ټولګیوالو ته و وايي.

### ۳. د لومړي او دویم متن بیا لوستل (۱۰ دقیقې)

۱. ښوونکی له دوو پړاوونو (لکه زده کوونکي په دوه کسیزه توګه لولي، زده کوونکي یې پخپله لولي)، څخه په ګټه اخیستنې سره لومړی او دویم متن له زده کوونکو سره بیا لولي.

### تکرار او کورنۍ دنده (۵ دقیقې)

۱. **تکرار:** د زده کوونکي هغه وختونه تکراروي چې دوی پکې د خوشحالۍ، خفګان، وېرې او ویاړ احساس کوي.

۲. **کورنۍ دنده:** د لومړي او دوهم متن بیا لوستل. د نوښتي لیکنې بشپړول او یو انځور ورسره زیاتول.

## فرعي موضوع: تکرار او دوامداره ارزونه

**د زده کړې موخې:**
١- د پرتليزو او عالي صفتونو کارول.
٢- حال زمانه په تېره زمانه بدلول.
٣- له سياق او سباق څخه په ګټه اخيستنې سره د کلمې معنا پيدا کول.
٤- له٪ ٩٠ سموالي سره د متن لوستل.
٥- د کلمې او جملې په کچه د مناسب لحن او فشار په کارولو سره د متن لوستل.
٦- له٪ ٨٠ سموالي سره د کلمو او جملو ليکل.

### ١. کلمې او جملې(١٠ دقيقې)
١. ښوونکی پرتليز او عالي صفتونه تکراروي.
٢. ښوونکی زده کوونکو ته وايي چې د درسي کتاب (الف) تمرين ترسره کړي.
٣. ښوونکی د متن څخه په ګټې اخيستنې سره د کلمو معنا پيدا کول تکراروي.
٤. ښوونکی زده کوونکو ته وايي چې د درسي کتاب (ب) تمرين ترسره کړي.
٥. ښوونکی تېره زمانه تکراروي.
٦. ښوونکی زده کوونکو ته وايي چې د درسي کتاب (ج) تمرين ترسره کړي.
٧. ښوونکی د زده کوونکو ځوابونه ګوري.
٨. ښوونکی د اوږدمهالې ارزونې کتاب کې د زده کوونکو نومرې ثبتوي.

### ٢. د لومړي او دويم متن بيا لوستل (١٠ دقيقې)
١. ښوونکی زده کوونکو ته دوه دقيقې وخت ورکوي چې په دوه کسيزه توګه لومړی يا دوهم متن ژر ژر ولولي.
٢. ښوونکی د زده کوونکو له څلورو جوړو نه غوښتنه کوي چې د ټولګي مخې ته راشي.
٣. ښوونکی هغوی ته وايي چې هره جوړه به د متن يوه برخه لولي. هغوی بايد متن په رواني او د مناسب لحن او حرکاتو په کارولو سره ولولي چې ټکی او د پوښتنې نښه منعکس کړي.
٤. ښوونکی ټولګيوالو ته وايي چې ورو ورو متن له لوستونکي سره ولولي او نښه غور ونيسي.
٥. کله چې ټول زده کوونکي په لوستلو بوخت وي، ښوونکی د هغوی د لوستلو څرنګوالی مشاهده کوي او خپله مشاهده پرله پسې د ارزونې په کتاب کې ليکي. له هغه زده کوونکو سره چې په ښه توګه دا فعاليت ترسره نه کړي، بايد بله اونۍ مرسته وشي.

### ٣. املا (١٥ دقيقې)
١. ښوونکی زده کوونکو ته وايي چې هغوی به يو يا څو کلمې او جملې وليکي.
٢. ښوونکی زده کوونکو ته د درسي کتابونو د ترلو او د تمرين کتابونو د پرانيستلو وايي.



٣. ښوونکی لومړی کلمه **طالب** په کراره وايي او ۴ ځلې يې تکراروي.
٤. زده کوونکي کلمې د تمرين په کتاب کې ليکي.
٥. ښوونکی همدغه کار د لاندې اتو(٨) کلمو لپاره هم ترسره کوي: **١- طاهره٢- طاهر ٣- سطل ۴- مطلب ٥- لطيف ٦- خياط ٧- ضابط ٨- وطن.**
٦. ښوونکی لومړی جمله په کراره لولي او ۴ ځله يې په کراره کراره تکراروي. جمله دا ده:
**١. طاهر له خپل پلار سره مرسته کوي.**
٧. زده کوونکي جمله د تمرين کتاب کې ليکلي.
٨. ښوونکی همدا کار د لاندې ٣ جملو لپاره هم ترسره کوي.
**٢. لطيف له وطن سره مينه لري.**
**٣. خياط کالي ګنډي.**
**٤. په طاهرې خپله مور ګرانه ده.**
٩. ښوونکی زده کوونکو ته وايي چې خپل د تمرين کتاب د کتلو لپاره راوړي. ښوونکي د هغوی املاګوري او نومرې ورکوي.
١٠. ښوونکي د زده کوونکو نومرې د پرله پسې ارزونې کتاب کې ثبتوي.

### تکرار او کورنۍ دنده (٥ دقيقې)
١. **تکرار:** هغه څه تکراروي چې زده کوونکو په دې اونۍ کې زده کړي دي.
٢. **کورنۍ دنده:** ښوونکی زده کوونکو ته وايي چې په کورونو کې د درسونو د هغو برخو بيا ليکل او لوستل دې ترسره کړي چې د اونۍ په جريان کې يې ورسره ستونزې لرلې.

د حسن خط فعاليت، ارزونه او کورنۍ دنده (۴٠ دقيقې)

فرعي موضوع: زغم    توري: ت او ط

## د زده کړې موخې:

۱. د(ت) او (ط) د غږونو د تورو لرونکو کلمو سم لیکل.
۲. د انځور، سرلیک، مهمو کلمو او د مخکینۍ پوهې څخه په ګټې اخستنې سره به دا وړاندوینه وکړي چې کیسه یا متن به د څه په اړه وي.
۳. د لوستلو پر مهال تم کېدل او فکر کول.
۴. لوستل شوی متن په لنډو ټکو کې بیانول.

### ۱. توري او کلمې (۱۰ دقیقې)

۱. ښوونکی زده کوونکو ته وايي چې د(ت) او (ط) توري سره نږدې غږ لري. ځینې کلمې د (**ت**) توری او ځینې نور یې د (**ط**) توری لري.
۲. ښوونکی زده کوونکو ته وايي چې په دې اونۍ کې به د هغو کلمو تمرین کوي چې د ت او ط توري پکې کارول کېږي.
۳. ښوونکی لاندینۍ کلمې پر تختې لیکي: **توت، وطن** ښوونکی له زده کوونکو څخه غوښتنه کوي چې کلمه په لوړ غږ ولولي. ښوونکی له زده کوونکو پوښتنه کوي چې کوم توری د/ت/غږ لري. ښوونکی یو څو زده کوونکو ته اجازه ورکوي چې توري ته ګوته ونیسي.
۴. ښوونکی زده کوونکي د درسي کتاب لوستلو ته رابولي. ښوونکی کلمې په داسې حال کې زده کوونکو ته لولي چې هغوی خپلې ګوتې پر کلمو تېروي. بیا زده کوونکي هغه کلمې په دوه کسیزه توګه لولي.
۵. ښوونکی زده کوونکو ته وايي چې د تمرین په کتابونو کې د کلمو لیکل تمرین کړي.
۶. ښوونکی زده کوونکو ته وايي چې هغوی باید د دغو کلمو لیکل هره ورځ په کور کې تمرین کړي.
۷. ښوونکی زده کوونکو ته وايي چې هغوی به د اونۍ په پای کې د دې کلمو په باره کې املا ولري.

### ۲. د لومړي متن لوستل (۲۵ دقیقې)

**له لوستلو څخه مخکې**

۱. ښوونکی زده کوونکو ته وايي چې سرلیک او انځور ته وګوري او وړاندوینه وکړي چې متن به د څه په اړه وي.
( په خپلو کې شریکول، له ټولګیوالو سره شریکول).
ښوونکی درې کلیدي کلمې له زده کوونکو سره معنا او په جملو کې یې استعمالوي.

**د لوستلو پر مهال**

۱. ښوونکی زده کوونکو ته ورپه یادوي چې څرنګه کولای شي د تم کېدلو او فکر کولو له ستراتیژۍ څخه ګټه واخلي.
۲. ښوونکی تمثیلوي، ښوونکی او زده کوونکي په ګډه لوستل کوي، زده کوونکي په دوه کسیزه توګه لوستل کوي.

**له لوستلو څخه وروسته**

۱. ښوونکی له زده کوونکو څخه پوښتنه کوي چې د کیسې په اړه یې وړاندوینه سمه ده؟ هو/ نه.


۱۰ اونۍ ۱ لوست
توري او کلمې

| | | | |
|---|---|---|---|
| تمیم | لوستل | میاشت | ت |
| توت | طاووس | سطل | ط |
| خیاط | طاهر | وطن | |

کرښې غوسه خوندي

زغم

کوټې ته ورننوتم ګورم چې وره خور مې، طاهره زما پر کتابچه کرښې باسي. په غوسه شوم. ښاېسته مې وچیچل. نژدې وو چې طاهره ووهم. خو مور مې راغله. رانه یې وویل: څه خبره ده چې غوسه یې؟
مور ته مې وویل: موري! طاهرې مې کتابچه خط خط کړې ده. مور مې یو ګیلاس اوبه راکړې، وې یې ویل اوبه وڅښه. غوسه به دې سره شي. اوبه مې وڅښلې. فکر مې آرام شو. مور مې وویل: ګرانه زویه! طاهره خو وړه نجلۍ ده. نه پوهېږي. بیا به داسې نه کوي. خو ته دې هم خپل کتابونه او کتابچې په خوندي ځای کې ږده.

۲. ښوونکی له زده کوونکو څخه لاندې پوښتنې کوي.
- **پوښتنه: څوک په غوسه و؟**
**ځواب: د طاهرې ورور په غوسه و.**
- **پوښتنه: مور یې د خپل زوی غوسه څنګه سړه کړه؟**
**ځواب: مور یې هغه ته یو ګیلاس اوبه ورکړې.**
- **پوښتنه: که تاسو د هغه پر ځای وای څه به مو کړي وای؟**
**ځواب: له صبر او زغم څخه به مو کار اخیستی وای.**
۳. **پوښتنه: ولې باید خپله غوسه کنټرول کړو؟**
**ځواب: ځکه چې غوسه کرکه او زړه بدوالی رامنځته کوي.**
۴. ښوونکی زده کوونکو ته د یو متن په لنډو ټکو کې بیانول ښیي (تفصیلي لارښوونو لپاره د برخې د عمومي کتنې برخې ته مراجعه وکړئ).(اصلي مفهوم)
**د غوسې پر مهال باید له زغم څخه کار واخیستل شي، باید صبر وکړو او له آرامه فکر څخه کار واخلو.**
۷. ښوونکی د پرله پسې ارزونې په کتاب کې د ارزول شویو زده کوونکو نومرې ثبتوي.

### تکرار او کورنۍ دنده: (۵ دقیقې)

۱. **تکرار:** ښوونکی له زده کوونکو سره د /ت/ غږ لرونکې ځینې کلمې تکراروي.
۲. **کورنۍ دنده:** زده کوونکي توري او کلمې په کورونو کې په کتابچو کې لیکي او لومړی متن تکراروي.

## فرعي موضوع: زغم

**د زده کړې موخې:**

۱. له نومونو سره د سم مؤنث او مذکر صفتونه کارول.
۲. د متن سیاق او سباق څخه په ګټې اخیستنې سره د کلمو معنا اخیستل.
۳. له مناسب لحن او حرکاتو نه په ګټې اخیستنې او له ۹۵٪ سموالي سره متنونه لوستل.

### ۱. کلمې (۱۰ دقیقې)

۱. ښوونکی له زده کوونکو څخه پوښتنه کوي چې آیا هغه کلمې اوس هم په یاد لري چې یو هلک یا نجلۍ تعریفوي. ښوونکی له زده کوونکو څخه د یو څو بېلګو د ورانديې کولو غوښتنه کوي.
۲. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې خپل درسي کتابونو ته ځیر شي. هغوی د خلکو انځورونه ویني. هغوی د کلمو یو لست هم ویني چې هغوی یې باید د خلکو د تعریفولو لپاره وکاروي. ښوونکی لومړی دوه بېلګې له زده کوونکو سره یوځای ترسره کوي. بیا زده کوونکي په دوه کسیزه توګه کار ته ادامه ورکوي.
۳. کله چې زده کوونکي په کار بوخت وي، ښوونکی په ټولګي کې ګرځي او له هغو زده کوونکو سره مرسته کوي چې ستونزې لري.
٤. ښوونکی د زده کوونکو ځوابونه ګوري.
٥. ښوونکی له زده کوونکو څخه غوښتنه کوي چې و وایي هغوی په دې درس کې څه زده کړي دي. (ځواب: د خلکو د تعریفولو لپاره د ځانګړو کلمو کارول.)

### ۲. د لغتونو زېرمه (۱۵ دقیقې)

۱. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې هغوی به په ځیر سره د جملو په لوستلو سره د کلمې د معنا د پیدا کولو تمرین وکړي.
۲. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې خپل درسي کتابونو ته ځیر شي. هغوی پنځه(۵)جملې ویني. هغوی باید په چوکاټ کې هغه کلمې ولټوي چې په جملو کې له ورکړل شویو مترادفو کلمو سره چې لاندې یې خطونه کښل شوي، مطابقت لري. ښوونکی لومړی دوه جملې له زده کوونکو سره ترسره کوي.
۳. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې پاتې جملې دې په دوه کسیزه توګه ترسره کړي. چټک زده کوونکي کولای شي همدې تمرین ته د خپل تمرین په کتاب کې هم ادامه ورکړي.
٤. کله چې زده کوونکي په کار بوخت وي، ښوونکی په ټولګي کې ګرځي او له هغو زده کوونکو سره مرسته کوي چې ستونزې لري.
٥. له لږ وخت وروسته، ښوونکی د زده کوونکو ځوابونه ګوري.
٦. ښوونکی له زده کوونکو څخه پوښتنه کوي چې و وایي هغوی په دې درس کې څه زده کړي دي. (ځواب: موږ د جملې په کارولو سره د کلمې معنا پیدا کول زده کړل.)


کلمې
خوشحاله ستړی خپه چاغ
ونګړه ټیټ جګه زړه
د لغتونو زېرمه
۱ زرمینه لایقه نجلۍ ده
۲ فهیم خیرک هلک دی
۳ زه له مور سره مرسته کوم
۴ زه د املا مشق کوم
۵ زموږ کور ښکلی دی
کلمې
ګلالۍ تکړه
هوښیار ښکلی
کومک مینه
لوستل تمرین
ښایسته لوړ
د لومړي متن بیا لوستل

### ۳. د لومړي متن بیا لوستل (۱۰ دقیقې)

۱. د ځلورو پراوونو یعنې ښوونکی یې تمثیلوي، ښوونکی او زده کوونکي یې په ګډه لولي، یعنې زده کوونکي یې په دوه کسیزه توګه لولي او زده کوونکي یې پخپله لولي، په کارولو سره لومړی متن له زده کوونکو سره بیا لوستل.

### تکرار او کورنۍ دنده (۵ دقیقې)

۱. **تکرار:** پرتلیزو او عالي صفتونو مفهوم تکرار.
۲. **کورنۍ دنده:** ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې کلمې په خپلو کورونو کې په کتابچو کې ولیکي او لومړی لوست تکرار کړي.

## فرعي موضوع: د پلار په اړه شعر

**د زده کړې موخې:**

۱- په چټکۍ سره د کلمو د تجزیه کولو لپاره د مورفیمونو په اړه د کلمو د جوړښت د پوهې کارول.

۲. د انځور، سرلیک، مهمو کلمو او د مخکینۍ پوهې څخه په ګټې اخستنې سره به دا وړاندوینه وکړي چې کیسه یا متن به د څه په اړه وي.

۳. د لوستلو پر مهال تم کېدل او فکر کول.

۴. یو لوستل شوی متن په لنډو ټکو کې بیانول.

### ۱. کلمې (۱۰ دقیقې)

۱. ښوونکی د لومړۍ کلمې جوړښت پر تخته کېږ مېږ داسې لیکي لکه، په درسي کتاب کې چې لیکل شوی دی.

۲. ښوونکی نومونه په لوړ غږ زده کوونکو ته لولي. بیا ښوونکی نومونه له زده کوونکو سره یوځای لولي.

۳. ښوونکی تشریح کوي چې څرنګه یوې کلمې ته د(**والي**) په ورزیاتولو سره د کلمې مفهوم بدلیږي.

٤. ښوونکی زده کونکو ته وایي چې خپل درسي کتاب ته ځیر شي او لومړۍ دوه بېلګې له زده کوونکو سره لولي.

٥. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې په دوه کسیزه توګه کار وکړي او ټولې کلمې ولولي.

٦. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې د تمرین په کتابونو کې د کلمو لیکل تمرین کړي.

٧. کله چې زده کوونکي د کلمو په لوستلو کې بوخت وي، ښوونکی په ټولګي کې ګرځي او له هغو زده کوونکو سره مرسته کوي چې ستونزې لري.

### ۲. د دویم متن لوستل (۲۵ دقیقې)

**له لوستلو څخه مخکې**

۱. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې سرلیک او انځور ته وګوري او وړاندوینه وکړي چې متن به د څه په اړه وي.
( په خپلو کې شریکول، له ټولګیوالو سره شریکول)
ښوونکی درې کلیدي کلمې له زده کوونکو سره معنا او په جملو کې یې استعمالوي.

**۲. د لوستلو پر مهال**

۳. ښوونکی زده کوونکو ته ورپه یادوي چې څرنګه کولای شي دتم کېدلو او فکر کولو له ستراتیژۍ څخه ګټه واخلي.

٤. ښوونکی تمثیل کوي، ښوونکی او زده کوونکي په ګډه لوستل کوي، زده کوونکي په دوه کسیزه توګه لوستل کوي.

**له لوستلو څخه وروسته**

۱. ښوونکی له زده کوونکو څخه پوښتنه کوي چې ایا د کیسې په اړه یې وړاندوینه سمه ده؟ هو یا نه.

۲. ښوونکی له زده کوونکو څخه لاندې پوښتنې کوي.



کلمې

| نور | نور+والي | نوروالي |
|---|---|---|
| سپین | سپین+والي | سپینوالي |
| ښه | ښه+والي | ښه‌والي |
| زوړ | زوړ+والي | زوړوالي |

مینه - رښتیا - ملتیا

پلار

پر سر مو لاس تیروي ... راته موسکا کوي
مور سره مینه مینه ... پلار په رښتیا کوي
راته کتاب کتابچې ... قلم، قلم راوړي
نور ډېر شیان ورسره ... رقم رقم راوړي
د کار خبرې راته ... صفا صفا کوي
باغ ته مو هم بیایي ... چې په کې ولوبیږو
چې خوشحالي وکړو ... چې ګټ ګټ وخندېږو
پلار وي راګډ په لوبو ... زمونږ ملتیا کوي

- **پوښتنه: پلار له مور سره څه ډول چلند کوي؟**
**ځواب: پرسر مو لاس تیروي راته مسکا کوي.**
- **پوښتنه: کله چې پلار له تاسو سره وي څه کوي؟**
**ځواب: مور سره مینه کوي، خوښ او خوشحاله مو ساتي.**
- **پوښتنه: پلار له دې پرته نور څه صفتونه لري؟**
**ځواب: مهربان، زړه سواند د حوصلې خاوند او داسې نور...**
- **پوښتنه: له پلار سره څه ډول چلند وکړو؟**
**ځواب: خبره یې ومنو، خبرو ته یې غوږ ونیسو او درناوی یې وکړو.**

۳. ښوونکی له زده کوونکو سره یوځای متن په لنډو ټکو کې بیانوي(تفصیلي لارښوونو لپاره د برخې د عمومي کتنې برخې ته مراجعه وکړئ) د متن اصلي مفهوم:
**پلار په خپلو بچیانو ډېر مهربانه وي، تل د هغوی خوښي او بریا غواړي، نو باید د هغه درناوی وشي.**

۴. ښوونکي د پرله پسې ارزونې په کتاب کې دارزول شو زده کوونکو نومرې ثبتوي.

### تکرار او کورنۍ دنده (۵ دقیقې)

۱. **تکرار:** ښوونکی پر (والي) د تمرکز کولو سره کلمې لولي.

۲. **کورنۍ دنده:** زده کوونکي کلمې په کورونو کې په خپلو کتابچو کې لیکي او دوهم متن په کور کې بیا لولي.

## فرعي موضوع: د پلار په اړه شعر

**د زده کړې موخې:**

۱. د حال زمانه په تېره زمانه بدلول.
۲. د یوې کلمې د معنا د پیدا کولو لپاره له سیاق او سباق څخه ګټه اخیستل.
۳. په مناسب لحن او حرکاتو سره په٪ ۹۵ سره د متن لوستل.

### ۱. جملې (۱۰ دقیقې)

۱. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې خپل درسي کتابونو ته ځیر شي. په کتاب کې دوه چوکاټونه ورکړل شوي چې د عمل کلمې (فعلونه) لري. په لومړي چوکاټ کې ورکړل شوې د عمل کلمې (فعلونه) هغه کلمې دي چې دا ښیي چې یو کار همدا اوس ترسره کېږي. په دوهم چوکاټ کې ورکړل شوې د عمل کلمې (فعلونه) هغه کلمې دي چې دا ښیي چې یو کار پرون یا ډېر مخکې ترسره شوی دی.
۲. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې خپلو درسي کتابونو ته ځیر شي. په لومړي چوکاټ کې ورکړل شوې د عمل کلمې (فعلونه) هغه دي دا په ډاګه کوي چې یو کار همدا اوس ترسره کېږي. په دوهم چوکاټ کې ورکړل شوې د عمل کلمې (فعلونه) هغه کلمې دي چې دا په ډاګه کوي چې یو کار پرون یا ډېر مخکې ترسره شوی دی.
۳. ښوونکی لومړی دوه د عمل کلمې (فعلونه) له زده کوونکو سره ترسره کوي.
۴. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې په دوه کسیزه توګه کار وکړي او تمرین بشپړ کړي.
۵. ښوونکی له هغو زده کوونکو سره مرسته کوي چې ستونزې لري.
٦. له لږ وخت وروسته، ښوونکی د زده کوونکو ځوابونه ګوري.
۷. ښوونکی له زده کوونکو څخه غوښتنه کوي چې هغه څه دي و وایي چې په دې درس کې یې زده کړي دي. (ځواب: د نن ورځې د عمل کلمې (فعل د تېرې ورځې د عمل له کلمو (فعل) سره پرتله کول).

### ۲. د لغتونو زېرمه (۱۵ دقیقې)

۱. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې هغوی به په ځیر سره د جملو په لوستلو سره د کلمې د معنا د پیدا کولو تمرین وکړي.
۲. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې خپل درسي کتابونو ته ځیر شي. هغوی(۵) جملېویني. باید په چوکاټ کې هغه مترادفې کلمې ولټوي چې په جملو کې تر لاندې خطونه کښل شوي وي مطابقت ولري. ښوونکی لومړۍ دوې جملې له زده کوونکو سره ترسره کوي.
۳. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې پاتې جملې دې په دوه کسیزه توګه ترسره کړي. چټک زده کوونکي کولای شي چې همدې تمرین ته د خپل تمرین په کتابونو کې هم ادامه ورکړي.
۴. کله چې زده کوونکي په کار کې بوخت وي، ښوونکی په ټولګي کې




ګرځي او له هغو زده کوونکو سره مرسته کوي چې ستونزې لري.
۵. لږ وخت وروسته، ښوونکی د زده کوونکو ځوابونه ګوري.
٦. ښوونکی له زده کوونکو څخه پوښتنه کوي چې و وایي هغوی په دې درس کې څه زده کړي دي. (ځواب: موږ د جملې په کارولو سره د کلمې معنا پیدا کول زده کړل.)

### ۳. د دویم متن بیا لوستل (۱۰دقیقې)

۱. د څلورو پړاوونو یعنې ښوونکی تمثیلوي، ښوونکی او زده کوونکي په ګډه لولي، یعنې زده کوونکي په دوه کسیزه توګه لولي او زده کوونکي یې پخپله لولي، په کارولو سره دوهم متن له زده کوونکو سره بیا لوستل.

### تکرار او کورنۍ دنده (۵ دقیقې)

۱. **تکرار:** په حال او تېره زمانه کې د عمل کلمې (فعلونه).
۲. **کورنۍ دنده:** ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې جملې په کورونو کې په خپلو کتابچو کې ولیکي او دوهم متن بیا ولولي او د املا د تمرین لپاره د کلمو تمرین ترسره کړي.

د حسن خط فعالیت، ارزونه او کورنۍ دنده (۴۰ دقیقې)

**فرعي موضوعګانې: زغم او د پلار په اړه شعر**

**د زده کړې موخې:**

۱- د خپلو احساساتو کنټرولول.

۲- د نوښتي لیکنې د کیسې بشپړول.

۳- په مناسب لحن او حرکاتو او٪ ۹۵ سموالي سره متنونه لوستل.

### ۱. غوږنیول او خبرې کول (۱۰ دقیقې)

۱. ښوونکی زده کوونکو ته وايي چې دوی به د خپلو جدي او بدو احساساتو اداره کول تمرین کړي.

۲. ښوونکی څرګندوي چې تاسو څه وخت جدي احساسات لرئ او د دې ډول احساساتو د آرامولو لارې چارې باید پیدا کړئ. د مثال په توګه، کله چې تاسو پر چا غوسه یاست. نو کولی شئ د یوه څخه تر لسو پورې عددونه وشمېرئ. یا تاسو کولی شئ ژوره ساه وباسئ، له ملګري سره مو خبرې وکړئ یا له هغه ځای څخه لرې ولاړ شئ او خپل ځان ارامه کړئ.

۳. ښوونکی زده کوونکو ته وايي چې د درسي کتاب انځورونو ته وګوري او په اړه یې بحث وکړي. په انځور کې هلک بد احساس کوي او باید دا ډول احساس اداره کړي. هغه هلک د خپل بد احساس د اداره کولو څلور لارې چارې په یاد لري.

۴. زده کوونکو ته و وایاست چې د تمرین په کتابونو کې مختلفو حالتونو ته وګوري. زده کوونکو ته وخت ورکړئ، تر څو د دغو مختلفو حالتونو په اړه بحث وکړي او و وايي چې زده کوونکي باید څه ډول خپل بد احساسات اداره کړي. چا بد احساس کاوه؟ بد احساس څه و؟ هغوی څنګه کولی شي خپل بد احساسات اداره کړي؟

۵. ښوونکی له زده کوونکو سره د ځوابونو په اړه بحث کوي.

۶. د وخت د شتون په صورت کې زده کوونکي کولی شي تمثیل وکړي. دوه زده کوونکي تمثیل کوي چې دوی یو او بل ته په غوسه دي. دوی د خپلو بدو احساساتو او غوسې دا داره کولو په خاطر د یوه نه تر لسو عددونه شمېري، ژوره ساه وباسي، له هغه ځای څخه ځان لرې کوي یا له یوه ملګري سره په دې اړه خبرې کوي.

۷. ښوونکی څرګندوي چې د احساساتو د اداره کولو لارې چارې ډېرې مهمې دي او له مور سره مرسته کوي، ترڅو ښه احساس وکړو او له ملګرو او کورنۍ سره سم چلند وکړو. د احساساتو د اداره کولو د دغو لارو چارو په کارولو سره موږ کولی شو له نورو سره د بد او نا سم چلند پر ځای ښه او مناسب چلند وکړو.

### ۲. نوښتي لیکنه (۱۵ دقیقې)

۱. ښوونکی زده کوونکو ته وايي چې هغوی به اوس د جدي او بدو احساساتو د اداره کولو په اړه یوه کیسه ولیکي.

۲. ښوونکی زده کوونکو ته وايي چې د درسي کتاب جملې او د چوکاټ کلمې په یوازې توګه ولولي.

۳. ښوونکی زده کوونکو ته وايي چې د تمرین په کتابونو کې د چوکاټ د کلمو په کارولو سره په تشو ځایونو کې په یوازې توګه جملې جوړې کړي او نیمګړې کیسه دې بشپړه کړي.

۴. ښوونکی په ټولګي کې ګرځي او هغو زده کوونکو ته چې ستونزې لري مرسته او لارښوونه کوي.

۵. ښوونکی له څو زده کوونکو غواړي چې خپلې بشپړې کړې کیسې ټولګیوالو ته و وایي.



### ۳. د لومړي او دویم متن بیا لوستل (۱۰ دقیقې)

۱. ښوونکی له دوو پړاوونو (لکه زده کوونکي په دوه کسیزه توګه لولي، زده کوونکي یې پخپله لولي)، څخه په ګټه اخیستنې سره لومړی متن له زده کوونکو سره بیا لولي.

### تکرار او کورنۍ دنده (۵ دقیقې)

۱. **تکرار:** زده کوونکي د بدو احساساتو د کنټرول (ارامولو) لارې چارې بیانوي.

۲. **کورنۍ دنده:** ښوونکی زده کوونکو ته په کورونو کې د دوهم متن د بیا لوستلو او د نوښتي کیسې بشپړولو او د یو انځور ور زیاتول تمرین ترسره کوي.

## موضوع: تکرار او دوامداره ارزونه

**د زده کړې موخې:**

۱- د پرتلیزو او عالي صفتونو کارول.
۲- حال زمانه په تېره زمانه بدلول.
۳- له سیاق او سباق څخه په ګټه اخیستنې سره د کلمې معنا پیدا کول
٤- له٪ ۹۰ سموالي سره د متن لوستل.
٥- د کلمې او جملې په کچه د مناسب لحن او فشار په کارولو سره د متن لوستل.
٦- له٪ ۸۰ سموالي سره د کلمو او جملو لیکل.

### ۱. کلمې او جملې (۱۰ دقیقې)

۱. ښوونکی پرتلیز او عالي صفتونه تکراروي.
۲. ښوونکی زده کوونکو ته وايي چې د درسي کتاب (الف) تمرین ترسره کړي.
۳. ښوونکی له متن څخه په ګټې اخیستنې سره د کلمو معنا پیدا کول تکراروي.
٤. ښوونکی زده کوونکو ته وايي چې د درسي کتاب (ب) تمرین ترسره کړي.
٥. ښوونکی تېره زمانه تکراروي.
٦. ښوونکی زده کوونکو ته وايي چې د درسي کتاب (ج) تمرین ترسره کړي.
۷. ښوونکی د زده کوونکو ځوابونه ګوري.
۸. ښوونکی د پرله پسې ارزونې په کتاب کې د زده کوونکو نومرې ثبتوي چې ایا هر زده کوونکي وکولای شول چې دا فعالیت په ښه توګه ترسره کړي (له٪ ۹۰ سموالي △، له ۷۰ ٪ - ۹۰ ٪ ∧ او تر ٪ ۷۰ ټیټ او له هغو زده کوونکو سره چې تر٪ ۷۰ ټیټې نومرې خپلوي باید بله اونۍ د دې تمرین په برخه کې مرسته وشي.

### ۲. د لومړي او دویم متن بیا لوستل (۱۰ دقیقې)

۱. ښوونکی زده کوونکو ته دوه دقیقې وخت ورکوي چې په دوه کسیزه توګه لومړی یا دوهم متن ولولي.
۲. ښوونکی د زده کوونکو له (۴) جوړو څخه غوښتنه کوي چې د ټولګي مخې ته راشي.
۳. ښوونکی زده کوونکو ته وايي چې هره جوړه به د متن یوه برخه لولي. هغوی باید متن روان او د مناسب لحن او حرکاتو په کارولو سره ولولي چې ټکی او د پوښتنې نښه منعکس کړي.
٤. ښوونکی زده کوونکو ته وايي چې متن ورو ورو له ټولګیوالو سره ولولي.
٥. کله چې اته(۸) زده کوونکي په لوستلو بوخت وي، ښوونکی د هغوی د لوستلو څرنګوالی مشاهده کوي او خپله مشاهده د پرله پسې ارزونې په کتاب کې لیکي. له هغه زده کوونکو سره چې په ښه توګه دا فعالیت ترسره نه کړي، باید بله اونۍ ورسره مرسته وشي.



### ۳ . املا (۱۵ دقیقې)

۱. ښوونکی زده کوونکو ته وايي چې یو څو کلمې او جملې ولیکي.
۲. ښوونکی زده کوونکو ته د درسي کتابونو د بندولو او د تمرین کتابونو د پرانیستلو وايي.
۳. ښوونکی لومړی کلمه **تمیم** په کراره وايي او څلور ځلې یې تکراروي. زده کوونکي کلمې د تمرین په کتاب کې لیکي.
٤. ښوونکی همدغه کار د لاندې (۸) کلمو د پاره هم ترسره کوي.
**لوستل، میاشت، طاهر، سطل، خیاط، طاووس، توت، وطن**
٥. ښوونکی لومړی جمله په کراره لولي او څلور ځله یې په کراره کراره تکراروي. جمله دا ده:
**۱- طاووس ښکلی مرغه دی.**
٦. زده کوونکي جمله د تمرین په کتاب کې لیکي.
۷. ښوونکی هم دا کار د لاندې دریو جملو لپاره هم ترسره کوي.
**۲- حمل د کال لومړی میاشت ده.**
**۳- زما توت خوښیږي.**
**۴ - طاهر په سطل کې اوبه راوړي.**
۸. ښوونکی زده کوونکو ته وايي چې خپل د تمرین کتابونه د کتلو لپاره راوړي. ښوونکی د هغوی املا ګوري او نومرې ورکوي.
ښوونکی د زده کوونکو نومرې د پرله پسې ارزونې په کتاب کې ثبتوي.

### تکرار او کورنۍ دنده (۵ دقیقې)

۱. **تکرار:** هغه څه تکرارول چې زده کوونکو په دې اونۍ کې زده کړي دي.
۲. **کورنۍ دنده:** ښوونکی زده کوونکو ته وايي چې په کورونو کې د درسونو د هغو برخو بیا لیکل او لوستل دې ترسره کړي چې د اونۍ په جریان کې یې ورسره ستونزې لرلې.

د حسن خط فعالیت، ارزونه او کورنۍ دنده (۴۰ دقیقې)

## د څلورمې برخې عمومي کتنه: اصلي موضوع: چاپېریال

**د زده کړې موخې:**

زده کوونکي به د دې برخې ترپایه دا وړتیا ولري چې:

١. د کلمو د تجزیې لپاره به د مورفیمونو له پوهې څخه ګټه واخلي.
٢. له مفرد او جمع نومونو (مذکر/مؤنث) سره به صفتونه وکاروي.
٣. امریه او ندایه نښه (!) به وکاروي.
٤. کلمې به ډلبندي کړي.
٥. د متن له سیاق او سباق څخه په ګټې اخیستنې سره به د کلمو معنا درک کړي.
٦. د مهمو کلمو پر معنا به پوه شي او د غه کلمې په به خبرو یا لیکلو کې وکاروي.
٧. وړاندوینه وکړي چې متن به د څه شي په اړه وي، له انځور، سرلیک، مهمو کلمو او مخکینی پوهې څخه کار واخلي.
٨. د پوهې د روښانتیا لپاره دې د متن برخې بیا ولولي.
٩. له یوې جملې سره دې واقعي پوښتنو ته ځواب و وایي.
١٠. د ټولګي له کچې سره مناسب د یو پارګراف متن دې په لنډو ټکو کې بیان کړي.
١١. له ٨٠٪ سموالي سره دې د لوست پوښتنو ته ځواب و وایي.
١٢. له مناسب لحن او حرکاتو او له ٩٠٪ سموالي سره دې متنونه ولولي.
١٣. په سم ډول دې د /s/ غږ او ث + س + ص تورو درلودونکې کلمې ولیکي.
١٤. له ٨٠٪ سموالي سره دې کلمې او جملې ولیکي.
١٥. یو لنډ لاربښودیز متن دې ولیکي.
١٦. زده کوونکي به په نسخ خط سره ساده جملې د کرسۍ خط پر مخ په صحیح او ښکلې بڼه ولیکلای شي.

**د حسن خط فعالیت (۳۵دقیقې)**

ښوونکي دي د لاربښود د مقدمې د (۲۲- ۲۳) مخونو د لاربښوونو سره سم ساده جملې تدریس کړي.

**د حسن خط ارزونه او کورنۍ دنده (۵ دقیقې)**

۱- له څو زده کوونکو څخه د کلمو د ښایسته لیکلو په اړه پوښتنه وکړي.
۲- زده کوونکي دې له کرکۍ یا پنسل قلم سره ساده جملې په کورونو کې تمرین کړي.

**د ټولنیزي عاطفي زده کړې موخې:**

زده کوونکي به د دې برخې تر پایه د دې وړتیا ولري چې:

١. د نورو خلکو احساسات به وپېژني او نومونه به یې واخلي؟
٢. د سناریو په رڼا کې به د نورو خلکو د احساساتو په باره کې وړاندوینه وکړي.
٣. د نورو خلکو د احساساتو او نظرونو پر وړاندې به له مهربانۍ ډک غبرګون وښيي.

**د لوست پیل (۵دقیقې):** د لوست د پیل ټول مقدماتي فعالیتونه دې ترسره شي.

### د دې برخې ځانګړي فعالیتونه

**امریه او ندایه نښه(!)**

١. ښوونکی پر تخته د لاندې جملې په لیکلو سره درس پیلوي **څه!** او په ډاګه کوي چې دا یو مثبت امر دی. ښوونکی زده کوونکو ته تشریح کوي چې امر یوې ندایيه نښې ته اړتیا لري.
٢. ښوونکی همدا جمله له منفي امر سره پر تخته لیکي: **(مه څه!)**. بیا ښوونکی زده کوونکو ته هغه ځای ښیي چېرته چې په جمله کې باید ندایه نښه (!) ولیکل شي.
٣. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې هغوی به له مثبتو او منفي امرونو سره د ندایه نښې (!) کارول زده کړي.
٤. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې د لومړنیو بېلګو د لوستلو لپاره درسي کتاب ته ځیر شي .
٥. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې په دوه کسیزه توګه کار وکړي د تمرین په کتاب کې تمرین بشپړ کړي.
٦. کله چې زده کوونکي د مثبت او منفي امرونو پر لیکلو بوخت وي، ښوونکی په ټولګي کې ګرځي او له هغو زده کوونکو سره مرسته کوي چې ستونزې لري.
٧. دولسمه اونۍ: زده کوونکي د خپل ښوونکي په مرسته د امریه او ندایه نښې کارولو تمرین کوي.
٨. دیارلسمه اونۍ: ښوونکی له زده کوونکو څخه غوښتنه کوي چې د امریه او ندایه نښو فعالیتونه ترسره کړي.

**له جمع نومونو سره کلمې تشریح کول (۱۰ دقیقې)**

١. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې هغوی دې د هلکانو او نجونو په باره کې د تشریحاتو ورکولو تمرین وکړي. ښوونکی لاندینۍ کلمې پر تخته لیکي: ښه هلک، ښه نجلۍ. ښوونکی دا کلمې له زده کوونکو سره لولي. ښوونکی وایي ښه صفت دی چې موږ ته د هلک او نجلۍ په اړه یو څه وایي. ښوونکی له زده کوونکو څخه د نورو بېلګو د وړاندې کولو غوښتنه کوي لکه (خپه، لوړ، خوشحاله، او داسې نور).
٢. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې خپل درسي کتابونو ته ځیر شي. هغوی هلکان او نجلۍ ویني. هغوی ډېرې تشریحي کلمې هم ویني. ځینې کلمې په نجونو پورې اړه لري او ځینې کلمې به هلکانو پورې. هغوی باید کلمو ته له هلکانو یا نجونو سره مطابقت ورکړي. ښوونکی لومړۍ دوه بېلګې له زده کوونکو سره ترسره کوي.
٣. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې نورې کلمې په دوه کسیزه توګه ترسره کړي.
٤. کله چې زده کوونکي په کار کې بوخت وي، ښوونکی په ټولګي کې ګرځي او له هغو زده کوونکو سره مرسته کوي چې ستونزې لري.
٥. لږ وخت وروسته، ښوونکی د زده کوونکو ځوابونه ګوري.
٦. ښوونکی له زده کوونکو څخه غوښتنه کوي چې و وایي هغوی په دې درس کې څه زده کړي دي. (ځواب: د هلکانو او نجونو باره کې د تشریحاتو ورکولو لپاره د ځانګړو کلمو کارول.)
٧. دوولسمه اونۍ: زده کوونکو د خپل ښوونکي په مرسته جمع تشریحي کلمې او نومونه تمرین کوي.
٨. دیارلسمه اونۍ: زده کوونکي تمرین په خپله ترسره کوي.

فرعي موضوع: سمسورتیا — توري: ث

**د زده کړې موخې:**

۱. د/ ث/غږ او ث توري لرونکو کلمو سم لوستل او لیکل.
۲. دا وړاندوینه کول چې یوه کیسه یا متن به د څه په باره کې وي له یو انځور، سرلیک، مهمو کلمو او مخکینۍ پوهې څخه ګټه اخیستل.
۳. د مفهوم اخیستنې لپاره بیا لوستل.
۴. یو متن په لنډو ټکو کې بیانول.

### ۱. توري او کلمې (۱۰ دقیقې)

۱. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې د/ **ث**/غږله نورو دو تورو سره نږدې غږ لري. ښوونکی ځینې کلمې د(**ث**) توري او ځینې نور یې د( **س**) او (**ص**) توري لري.
۲. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې په دې اونۍ کې به هغوی د هغو کلمو تمرین کوي چې د (**ث**) توری پکې کارول کېږي.
۳. ښوونکی لاندینۍ کلمې پر تخته لیکي: **کثافات، ثریا** ښوونکی له زده کوونکو څخه غوښتنه کوي چې کلمه په لوړ غږ ولولي. ښوونکی له زده کوونکو پوښتنه کوي چې کوم توری د/ **ث**/غږ لري. ښوونکی یو څو زده کوونکو ته اجازه ورکوي چې توري ته ګوته ونیسي.
۴. ښوونکی زده کوونکي درسي کتاب لوستلو ته رابولي.
۵. ښوونکی کلمې په داسې حال کې زده کوونکو ته لولي چې هغوی خپلې ګوتې پر کلمو تېروي. بیا زده کوونکي هغه کلمې په دوه کسیزه توګه لولي.
۶. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې د تمرین په کتابونو کې د کلمو لیکل تمرین کړي.
۷. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې د تمرین په کتابونو کې د کلمو د لیکلو تمرین وکړي.
۸. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې هغوی باید د دغو کلمو لیکل هر ورځ په کور کې تمرین کړي. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې هغوی به د اونۍ په پای کې د دې کلمو په اړه املا ولري.

### ۲. د لومړي متن لوستل (۲۵ دقیقې)

**له لوستلو څخه مخکې**

۱. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې سرلیک او انځور ته وګوري او وړاندوینه وکړي چې متن به د څه په هکله وي. زده کوونکي وړاندوینه لومړي (په خپلو منځو کې شریکوي او بیا یې له ټولګیوالو سره شریکوي)
ښوونکی درې کلیدي کلمې له زده کوونکو سره معنا او په جملو کې یې استعمالوي.

**د لوستلو پرمهال**

۱. ښوونکی تمثیل کوي، ښوونکی او زده کوونکي په ګډه لوستل کوي، زده کوونکي په دوه کسیزه توګه لوستل کوي.
۲. ښوونکی زده کوونکو ته ښیي چې څنګه کولای شي د مفهوم اخیستنې لپاره د بیا لوستلو له کړنلارې څخه ګټه واخلي (د تفصیلي لارښوونو لپاره د لومړۍ برخې عمومي کتنه وګورئ).

**له لوستلو څخه وروسته**

۱. ښوونکی له زده کوونکو څخه پوښتنه کوي چې ایا د



توری: ث

| | | |
|---|---|---|
| ثواب | ثریا | کلثوم |
| کثافات | عثمان | کوثر |
| ثبات | حدیثه | وارث |

سمسورتیا

کیسې په اړه یې وړاندوینه سمه ده؟ هو یا نه.
۲. ښوونکی له زده کوونکو څخه لاندې پوښتنې کوي.
- **پوښتنه: څنګه یوه سیمه ښکلې کولای شو؟**
**ځواب: د ونو او نیالګیو په کېنولو سره سیمه ښکلې کولای شو.**
**-پوښتنه: له سمسورې سیمې څخه څه ګټه اخیستلای شو؟**
**ځواب: د مطالعې، ورزش او تفریح لپاره ورڅخه ګټه اخیستلای شو.**
**- پوښتنه: تاسو څنګه یوه سیمه سمسورولای شئ؟**
**ځواب: د ونو او نیالګیو په کېنولو سره.**
**-پوښتنه: د سیمې سمسورتیا زموږ روغتیا ته څه ګټه لري؟**
**ځواب: هوا پاکوي، د ګردونو مخنیوی کوي او ذهن مو خوشحاله ساتي.**
۳. ښوونکی له زده کوونکو سره یو ځای متن په لنډو ټکوکې بیانوي د (تفصیلي لارښوونو لپاره د دریمې برخې د عمومي کتنې برخې ته مراجعه وکړئ)امکاني لنډیز: **چېرته چې ونې او بوټي ډېر وي سیمه ښکلې ښکاري، سمسور ځایونه د مطالعې، ورزش، او تفریح لپاره وي. په سمسورو ځایونو کې کثافات او خځلې باید وانه چوو.**

### تکرار او کورنۍ دنده (۵ دقیقې)

۱. **تکرار:** ښوونکی له زده کوونکی سره د/ث/ غږ لرونکې ځینې کلمې تکراروي.
۲. **کورنۍ دنده:** زده کوونکي توري او کلمې په کورونو کې په خپلو کتابچو کې لیکي او د لومړي متن بیا لوستلو تمرین کوي.

## فرعي موضوع: سمسورتیا

**د زده کړې موخې**

۱. صفتي نومونو ته له مؤنث یا مذکر جمع نومونو سره مطابقت ورکول.
۲. کلمې په دریو ډلو کې وېشل.
۳. له مناسب لحن او حرکاتو څخه په ګټې اخیستنې او له ۹۵٪ سموالي سره د متنونو لوستل.

### ۱. کلمې (۱۰ دقیقې)

۱. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې هغوی دې د هلکانو او نجونو په باره کې د تشریحاتو ورکولو تمرین وکړي. ښوونکی لاندینۍ کلمې پر تخته لیکي: یو خوشحال هلک، یوه خوشحاله نجلۍ. ښوونکی دا کلمې له زده کوونکو سره لولي. ښوونکی وایي چې خوشحاله یوه کلمه ده چې موږ ته د هلک او نجلۍ په اړه یو څه وایي.
۲. ښوونکی له زده کوونکو څخه د نورو بېلګو د وړاندې کولو غوښتنه کوي: لکه (خفه، لوړ، خندرویه، او داسې نور).
۳. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې خپل درسي کتابونو ته ځیر شي. هغوی هلکان او نجونې ویني. هغوی ډېرې تشریحي کلمې هم ویني. ځینې کلمې په نجونو پورې اړه لري او ځینې کلمې په هلکانو پورې. هغوی باید کلمو ته له هلکانو یا نجونو سره مطابقت ورکړي. ښوونکی لومړۍ دوه بېلګې له زده کوونکو سره ترسره کوي.
٤. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې نورې کلمې په دوه کسیزه توګه ترسره کړي.
۵. کله چې زده کوونکي په کار بوخت وي، ښوونکی په ټولګي کې ګرځي او له هغو زده کوونکو سره مرسته کوي چې ستونزې لري.
٦. لږ وخت وروسته، ښوونکی د زده کوونکو ځوابونه ګوري.
۷. ښوونکی له زده کوونکو څخه غوښتنه کوي چې و وایي هغوی په دې درس کې څه زده کړي دي. (ځواب: د هلکانو او نجونو باره کې د تشریحاتو ورکولو لپاره د ځانګړو کلمو کارول.)

### ۲. د لغتونو زېرمه (۱۵ دقیقې)

۱. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې هغوی به نن یو ځل بیا د ډلبندۍ کولو تمرین وکړي.
۲. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې کلمې په دوو یا ډېرو ډلو وېشل کېدای شي. هغوی به نن همدا تمرین کوي.
۳. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې خپلو درسي کتابونو ته ځیر شي. هغوی (۱۲) کلمې ویني چې په دریو بېلابېلو کټګوریو پورې اړه لري. ښوونکی له یوه زده کوونکي څخه غوښتنه کوي چې هغه (۳) کټګورۍ ولولي.



٤. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې دا تمرین د تمرین په کتابونو کې ترسره کړي. ښوونکی لومړۍ دوې کلمې له زده کوونکو سره ترسره کوي. بیا زده کوونکي په دوه کسیزه توګه کار کولو ته ادامه ورکوي.
۵. کله چې زده کوونکي په کار بوخت وي، ښوونکی په ټولګي کې ګرځي او له هغو زده کوونکو سره مرسته کوي چې ستونزې لري.
٦. لږ وخت وروسته، ښوونکی د زده کوونکو ځوابونه ګوري.
۷. ښوونکی له زده کوونکو پوښتنه کوي چې و وایي هغوی په دې درس کې څه زده کړي دي. (ځواب: په بېلا بېلو کټګوریو پورې د کلمې تړاو درلودل.)

### ۳. د لومړي متن بیا لوستل (۱۰ دقیقې)

۱. د ځلورو پړاوونو (ښوونکی یې لولي، ښوونکی او زده کوونکي یې په ګډه لولي، زده کوونکي په دوه کسیزه توګه لولي او زده کوونکي یې یخپله په مستقل ډول لولي) په کارولو سره، لومړی متن له زده کوونکو سره بیا لولي.

### تکرار او کورنۍ دنده (۵ دقیقې)

۱. **تکرار:** له صفتي نومونو سره د مؤنث یا مذکر جمع نومونو تکرار.
۲. **کورنۍ دنده:** ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې د کلمو تمرین په کورونو کې په خپلو کتابچو کې ترسره کړي او متن بیا ولولي او د املا د تمرین لپاره د کلمو تمرین وکوي.

## فرعي موضوع: د څښلو د اوبو زېرمې

**د زده کړې موخې:**

۱. په چټکۍ سره د کلمو د تجزیه کولو لپاره د مورفیمونو په اړه د کلمو د جوړښت د پوهې کارول
۲. دا وړاندوینه کول چې یوه کیسه یا متن به د څه په باره کې وي.
۳. د مفهوم اخیستنې لپاره بیا لوستل
۴. یو لوستل شوی متن په لنډو ټکو کې بیانول.

### ۱. کلمې (۱۰ دقیقې)

۱. ښوونکی د لومړۍ کلمې جوړښت کټ مټ پر توره تخته هغسې لیکي، لکه په درسي کتاب کې چې لیکل شوې دی.
۲. ښوونکی یوه بېلګه په لوړ غږ زده کوونکو ته لولي. بیا یې ښوونکی له زده کوونکو سره یوځای لولي.
۳. ښوونکی تشریح کوي چې د (هـ) ورستاړی کلمې ته ورزیاتېږي او د کلمې معنا بدلېږي.
٤. ښوونکی زده کوونکو ته وايي چې د لومړنیو دوو بېلګو د لوستلو لپاره خپل درسي کتاب ته ځیر شي.
٥. ښوونکی زده کوونکو ته وايي چې په درسي کتابونو کې په دوه کسیزه توګه کلمې ولولي.
٦. ښوونکی زده کوونکو ته وايي چې د تمرین په کتابونو کې د کلمو لیکل تمرین کړي.
٧. کله چې زده کوونکي د کلمو په لوستلو او لیکلو بوخت وي، ښوونکی په ټولګي کې ګرځي او له هغو زده کوونکو سره مرسته کوي چې ستونزې لري.

### ۲. د دویم متن لوستل (۲۵ دقیقې)

**له لوستل څخه مخکې**

۱. ښوونکی زده کوونکو ته وايي چې سرلیک او انځور ته وګوري او وړاندوینه وکړي چې متن به د څه په اړه وي، طریقه ښیي. (په خپلو کې شریکول، له ټولګیوالو سره شریکول)

ښوونکی درې کلیدي کلمې له زده کوونکو سره معنا او په جملو کې یې استعمالوي.

**د لوستلو پر مهال**

۱. ښوونکی تمثیل کوي، ښوونکی او زده کوونکي په ګډه لوستل کوي، زده کوونکي په دوه کسیزه توګه لوستل کوي.
۲. ښوونکی زده کوونکو ته ښیي چې څنګه کولای شي د مفهوم اخیستنې لپاره د بیا لوستلو له ستراتیژۍ څخه ګټه واخلي.

**له لوستلو څخه وروسته**

۱. ښوونکی له زده کوونکو څخه پوښتنه کوي چې ایا د کیسې په اړه یې وړاندوینه سمه ده؟ هو یا نه.
۲. ښوونکی له زده کوونکو څخه لاندې پوښتنې کوي:



۱۱ اونۍ — ۳

کلمې

| مشر | مشر+ه | مشره |
| --- | --- | --- |
| لوړ | لوړ+ه | لوړه |
| جګ | جګ+ه | جګه |
| ځیرک | ځیرک+ه | ځیرکه |

نعمت — زېرمې — کثافات

د څښلو پاکې اوبه

ګرانو زده کوونکو: اوبه د الله (ج) لوی نعمت دی. له اوبو پرته ژوند نه کېږي. د څښلو پاکې اوبه په څاګانو، کاریزونو، چینو او نلونو کې وي. ناپاکې اوبه انسان ناروغه کوي، نو باید:
- د اوبو د زېرمو شاوخوا پاکه وساتو.
- د اوبو نل خلاص پرې نه ږدو.
- د اوبو د زېرمو په شاوخوا کې کثافات وانه چوو.
- د اوبو له څاه او نل سره نږدې حیوانات پرې نه ږدو.
- کناراب باید د اوبو له څاه څخه لرې جوړ شي.
- د اوبو زېرمې باید پاکې وساتو. د اوبو د لوښو سرونه پټ وساتو دې سره به د ناروغیو مخه ونیول شي.

۱۳۰

- پوښتنه: د څښلو اوبه په کومو ځایونو کې وي؟
**ځواب: په څاګانو، کاریزونو، چینو او نلونو کې وي.**
**- پوښتنه: له اوبو څخه څنګه سمه ګټه اخیستلای شو؟**
**ځواب: د اوبو نل خلاص پرې نږدو او ترڅنګ یې کثافات وانه چوو. د لوښو سرونه پټ وساتو.**
**- پوښتنه: د اوبو ځایه لګښت په چاپېریال څه اغیزې لري؟**
**ځواب: د اوبو زېرمې کمېږي او وچکالي رامنځ ته کوي.**
**- پوښتنه: څنګه اوبه پاکې ساتلی شو؟**
**ځواب: د اوبو د زېرمو شاوخوا ته پاملرنه وکړو او پاکې یې وساتو.**

۳. ښوونکی له زده کوونکو سره یو ځای متن په لنډو ټکوکې بیانوي دتفصیلي لارښوونو لپاره د درېمې برخې د عمومي کتنې برخې ته مراجعه وکړئ. د متن لنډیز:
**اوبه د الله (ج) لوی نعمت دی. د څښلو اوبه په څاګانو، کاریزونو، چینو او نلونو کې وي. د اوبو زېرمې باید پاکې وساتو، چې له ناروغۍ څخه مخنیوی وشي.**

### تکرار او کورنۍ دنده (۵ دقیقې)

۱. **تکرار:** ښوونکی د کلمو تمرین له زده کوونکو سره تکراروي.
۲. **کورنۍ دنده:** زده کوونکي په کور کې دکلمو لیکل او د دوهم متن بیا لوستل تمرینوي.

## فرعي موضوع: د ښنبلو د اوبو زېرمې

### د زده کړې موخې
۱- د امریه او ندائیه نښې (!) په کارولو پوهېدل
۲- کلمې په ۳ ډلو وېشل.
۳- له مناسب لحن او حرکاتو څخه په ګټې اخیستنې او له٪ ۹۵ سموالي سره د متنونو لوستل.

### ۱. کلمې او جملې (۱۰ دقیقې)

۱. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې هغوی به مثبتو او منفي امریه کلمو کې د ندایي لیک نښې کارول تمرین کړي.
۲. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې خپلو درسي کتابونو ته ځیر شي، هلته درې کلمې(تلل، خوړل، خندل) شتون لري. چې باید په مثبت او منفي امریو کې وکارول شي.
۳. ښوونکی لومړی کلمه( تلل) په مثبت امریه جمله(ځه!) او منفي امریه جمله(مه ځه!) کې له زده کوونکو سره کاروي. او روښانه کوي چې په مثبت امریه او منفي امریه جملو کې د ندایي لیک نښه وکارول شي.
٤. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې هغوی به له مثبتو او منفي امرونو سره د ندایه نښې (!) کارول زده کړي.
٥. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې د لومړنیو بېلګو د لوستلو لپاره درسي کتاب ته ځیر شي .
٦. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې په دوه کسیزه توګه کار وکړي تر څو د تمرین په کتاب کې تمرین بشپړ کړي.
٧. کله چې زده کوونکي د مثبت او منفي امرونو پر لوستلو او لیکلو بوخت وي، ښوونکی په ټولګي کې ګرځي او له هغو زده کوونکو سره مرسته کوي چې ستونزې لري.

### ۲. د لغتونو زېرمه (۱۵ دقیقې)

۱. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې هغوی به د ډلبندي کولو تمرین وکړي.
۲. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې کلمې له دوو څخه په زیاتو ډلو کې وېشل کېدای شي. هغوی به نن همدا تمرین کوي.
۳. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې خپلو درسي کتابونو ته ځیر شي. هغوی (۱۲) کلمېویني چې په دریو بېلابېلو کټګوریو پورې اړه لري.
٤. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې دا تمرین د تمرین په کتابونو کې ترسره کړي. ښوونکی د کلمو لومړی کټګوري له زده کوونکو سره ترسره کوي. بیا زده کوونکي په دوه کسیزه توګه کار کولو ته ادامه ورکوي.
٥. کله چې زده کوونکي په کار بوخت وي، ښوونکی په ټولګي کې ګرځي او له هغو زده کوونکو سره مرسته کوي چې ستونزې لري.


| کلمه | مثبت امریه | منفي امریه |
|---|---|---|
| تلل | ځه! | مه ځه! |
| خوړل | وخوره! | |
| خندل | | مه خانده! |

٦. لږ وخت وروسته، ښوونکی د زده کوونکو ځوابونه ګوري.
٧. ښوونکی له زده کوونکو پوښتنه کوي چې و وایي هغوی په دې درس کې څه زده کړي دي. (ځواب: بېلا بېلو کټګوریو پورې د کلمې تړاو درلودل او د امریه او ندایه نښو کارول).

### ۳. د دویم متن بیا لوستل (۱۰دقیقې)

۱. د څلورو پړاوونو څخه په ګټې اخیستنې ښوونکی یې تمثیلوي، ښوونکی او زده کوونکي یې په ګډه لولي، زده کوونکي یې په دوه کسیزه توګه لولي او زده کوونکي یې پخپله لولي، په کارولو سره دوهم متن له زده کوونکو سره بیا لوستل.

### تکرار او کورنۍ دنده (۵ دقیقې)

۱. **تکرار:** د امریه او ندایه نښې د کارولو تکرار.
۲. **کورنۍ دنده:** ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې د کلمو او د کلمو د زېرمې تمرین خپل د تمرین په کتابونو کې ترسره کړي.
ښوونکی زده کوونکو باندې ټینګار کوي چې متن بیا ولولي او د املا د تمرین لپاره د کلمو تمرین ترسره کړي.

د حسن خط فعالیت، ارزونه او کورنۍ دنده (۴۰ دقیقې )

## فرعي موضوعګانې: سمسورتیا او د ځنبلو د اوبو زېرمې

**د زده کړې موخې:**

۱- د نورو خلکو د احساساتو درک کول.

۲- د نوښتي لیکنې د متن بشپړول.

۳- له مناسب لحن او حرکاتو ځخه په ګټې اخیستنې او له ۹۵٪ سموالي سره د متنونو لوستل.

### ۱. غوږنیول او خبرې کول (۱۰ دقیقې)

۱. ښوونکی وایې چې د نن ورځې په درس کې به د نورو خلکو د احساساتو د پېژندلو په اړه بحث وکړي. دا مهمه ده چې موږ باید د نورو خلکو احساسات درک کړو او د هغوی احساساتو ته په سمه توګه ځواب ووایو.

۲. زده کوونکو ته و وایاست چې په خپلو درسي کتابونو کې دوو انځورونو ته ځیر شي. چې په هر انځورو کې دوه ملګري ویني. له هغوی ځخه پوښتنه وکړئ چې په کوم انځور کې یو ملګری د بل ملګري پر احساس پوهېږي؟

۳. څو زده کوونکو ته وخت ورکړئ چې خپل ځوابونه له ټولګیوالو سره شریک کړي.

۴. زده کوونکو ته و وایاست چې تاسو باید خلکو ته وګورئ او د هغوی پر احساساتو خپل ځانونه پوه کړئ. دا کار له تاسو سره مرسته کوي چې د هغوی احساساتو ته په سمه توګه ځواب وواياست او ترديې چې تاسو به وکولی شئ له خپلو ملګرو سره مرسته وکړئ.

۴. زده کوونکو ته و وایاست چې د تمرین په کتاب کې د دوو ملګرو انځور ته وګوري. هغوی ته و وایاست چې د خپلو ملګرو پر احساساتو ځانونه پوه کړي. له زده کوونکو ځخه وغواړئ چې ووایي آیا یو ملګری له بل ملګري سره سم چلند کوي که نه؟

۵. زده کوونکو ته و وایاست چې دوی به د خلورو حالتونو په اړه تمثیل کړي. له زده کوونکو ځخه دا پوښتنې وکړئ: کله چې یو ځوک ستاسو احساساتو ته پام نه کوي څه ډول احساس درته پیدا کېږي او که یو ځوک ستاسو احساس ته پام وکړي، نو بیا څه ډول احساس کوئ؟

٦. ښوونکی څرګندوي چې موږ باید د نورو خلکو پر احساساتو ځانونه پوه کړو، تر څو دوی ته په سمه توګه ځواب ووايو او تر دې چې په ګډه سره ستونزې هوارې کړو، لکه د ځنبلو د ناپاکو اوبو ستونزه.

### ۲. نوښتي لیکنه (۱۵ دقیقې)

۱. ښوونکی زده کوونکو ته وایې چې هغوی به اوس د نورو خلکو د احساساتو پېژندلو په اړه یو متن ولیکي.

۲. ښوونکی د درسي کتاب جملې او د چوکاټ کلمې له زده کوونکو



سره یو ځای لولي.

۳. ښوونکی زده کوونکو ته وایې چې د تمرین په کتابونو کې د چوکاټ د کلمو په کارولو سره په تشو ځایونو کې په دوه کسیزه توګه جملې جوړې کړي او نیمګړی متن دې بشپړ کړي.

۴. ښوونکی په ټولګي کې ګرځي او هغو زده کوونکو ته چې ستونزې لري مرسته او لارښوونه کوي.

۵. ښوونکی له څو زده کوونکو غواړي چې خپل بشپړ کړي متنونه ټولګیوالو ته و وایي.

### ۳. د لومړي او دویم متن بیا لوستل (۱۰ دقیقې)

ښوونکی له دوو پراوونو (لکه زده کوونکي په دوه کسیزه توګه لولي، زده کوونکي یې پخپله لولي)، ځخه په ګټې اخیستنې سره لومړی او دوهم متن له زده کوونکو سره بیا لولي.

### تکرار او کورنۍ دنده (۵ دقیقې)

۱. **تکرار:** د خلکو احساساتو ته پام ساتل.

۲. **کورنۍ دنده:** د لومړي او دوهم متن بیا لوستل. د نوښتي لیکنې د کیسې بشپړول او یو رسم ورزیاتول.

## فرعي موضوع: تکرار او دوامداره ارزونه

**د زده کړې موخې:**

۱- له جمع نومونو سره د صفتي نومونو کارول.
۲- د امریه او ندایه نښې په کارولو پوهېدل.
۳- کلمې ډلبندي کول
۴- د مناسب لحن او فشار په کارولو او له٪ ۹۵ سموالي سره د متنونو لوستل.
۵- له٪ ۸۰ سموالي سره د کلمو او جملو لیکل.
۶- د /s/ غږ او د ث توري لرونکو کلمو سم لیکل

### ۱. کلمې اوجملې (۱۰ دقیقې)

۱. ښوونکی د تشریحي کلمو (صفتونو) کارول تکراروي.
۲. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې د درسي کتاب (الف) تمرین ترسره کړي.
۳. ښوونکی د امریه او ندایه نښې کارول تکراروي.
۴. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې د درسي کتاب (ب) تمرین ترسره کړي.
۵. ښوونکی په کټګوریو کې د کلمو وېشل تکراروي.
۶. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې د درسي کتاب (ج) تمرین ترسره کړي.
۷. ښوونکی د زده کوونکو ځوابونه ګوري.
۸. ښوونکی د پرله پسې ارزونې په کتاب کې د زده کوونکو نومرې ثبتوي.

### ۲. د لومړي او دویم متن بیا لوستل (۱۰ دقیقې)

۱. ښوونکي زده کوونکو ته دوې دقیقې وخت ورکوي چې په دوه کسیزه توګه لومړی یا دوهم متن ژر ژر ولولي.
۲. ښوونکی د زده کوونکو له (۴) جوړوڅخه غوښتنه کوي چې د ټولګي مخې ته راشي.
۳. ښوونکی هغوی ته وایي چې هره جوړه به د متن یوه برخه لولي. هغوی باید متن په روانه او د مناسب لحن او حرکاتو په کارولو سره ولولي چې ټکی او د پوښتنې نښه منعکس کړي.
۴. ښوونکي زده کوونکو ته وایي چې متن ورو ورو د خپل څنګ له ټولګیوال سره ولولي.
۵. کله چې (۸) زده کوونکي (څلور جوړې) په لوستلو بوخت وي، ښوونکی د هغوی د لوستلو څرنګوالی مشاهده کوي او خپله مشاهده د پرله پسې ارزونې په کتاب کې لیکي. له هغه زده کوونکو سره چې په ښه توګه دا فعالیت ترسره نه کړي، باید بله اونۍ مرسته وشي.



### ۳. املا (۱۵ دقیقې)

۱. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې هغوی به یو څو کلمې او جملې ولیکي.
۲. ښوونکي زده کوونکو ته د درسي کتابونو د ترلو او د تمرین کتابونو د پرانیستلو وایي.
۳. ښوونکی لومړی کلمه په کراره وایي او ۴ ځلې یې تکراروي. کلمه دا ده: **(کثافات)** زده کوونکي کلمې لیکي.
۴. ښوونکي همدغه کار د لاندې (۸) کلمو لپاره هم ترسره کوي:
**۱- ثریا، ۲- ثواب، ۳- حارث ۴- خدیثه ۵- عثمان ۶- کلثوم، ۷- کوثر، ۸- وارث.**
۵. ښوونکی لومړی جمله په کراره لولي او ۴ ځلې یې په کراره کراره تکراروي. زده کوونکي جمله لیکي. جمله دا ده:
**۱- کلثوم تکړه زده کوونکې ده.**
۶. ښوونکی همدا کار د لاندې ۳ جملو لپاره هم ترسره کوي.
**۲- ثریا د اوبو نل خلاص نه پرېږدي ۳- عثمان او وارث د اوبو د لوښو سر پټ ساتي. ۴- حارث اوبه راوړي.**
۷. ښوونکي زده کوونکو ته وایي چې د تمرین کتابچې د لیدلو لپاره راوړي. ښوونکی د هغو املاء ګوري او نومرې ورکوي.
۸. ښوونکی د زده کوونکو نومرې د پرله پسې ارزونې په کتاب کې ثبتوي.

### تکرار او کورنۍ دنده (۵ دقیقې)

**تکرار:** هغه څه تکرارول چې زده کوونکو په دې اونۍ کې زده کړي دي.
۲. **کورنۍ دنده:** ښوونکي زده کوونکو ته وایي چې په کورونو کې د درسونو د هغو برخو بیا لیکل او لوستل دې ترسره کړي چې د اونۍ په جریان کې یې ورسره ستونزې لرلې.

د حسن خط فعالیت، ارزونه او کورنۍ دنده (۴۰ دقیقې)

فرعي موضوع: کثافات          توري: س

**د زده کړې موخې:**

۱. د /س/ غږ او توري لرونکو کلمو سم لیکل.
۲. د انځور، سرلیک، مهمو کلمو او د مخکینۍ پوهې څخه په ګټې اخستنې سره داوړاندوینه وکړي چې کیسه یا متن به د څه په اړه وي.
۳. د مفهوم اخیستنې لپاره بیا لوستل.
۴. یو متن په لنډو ټکو کې بیانول.

## ۱. توری او کلمې (۱۰ دقیقې)

۱. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې د /س/غږ له نورو دوو تورو سره نږدې غږ لري. ځینې کلمې د **(ث)** توری او ځینې نور یې بیا د (س) او (ص) توري لري.
۲. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې په دې اونۍ کې به هغوی د هغو کلمو تمرین کوي چې د (س) توری پکې کارول کېږي.
۳. ښوونکی لاندینۍ کلمې پر تخته لیکي: **سیلابونه، اوسپنه** ښوونکی له زده کوونکو څخه غوښتنه کوي چې کلمه په لوړ غږ ولولي. ښوونکی له زده کوونکو پوښتنه کوي چې کومې کلمې د (س) غږ لري. ښوونکی یو څو زده کوونکو ته اجازه ورکوي چې توري ته ګوته ونیسي.
۴. ښوونکی زده کوونکي د درسي کتاب لوستلو ته رابولي. ښوونکی کلمې په داسې حال کې زده کوونکو ته لولي چې هغوی خپلې ګوتې پر کلمو تېروي. بیا زده کوونکي هغه کلمې په دوه کسیزه توګه لولي.
۵. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې د تمرین په کتابونو کې د کلمې لیکل تمرین کړي.
۶. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې هغوی باید د دغو کلمو لیکل هر ورځ په کور کې تمرین کړي.
۷. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې هغوی به د اونۍ په پای کې د دې کلمو په باره کې املا ولري.

## ۲. د لومړي متن لوستل (۲۵ دقیقې)

### له لوستلو څخه مخکې

۱. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې سرلیک او انځور ته وګوري او وړاندوینه وکړي چې متن به د څه په اړه وي. (په خپلو کې شریکول، له ټولګیوالو سره شریکول).

ښوونکی درې کلیدي کلمې له زده کوونکو سره معنا او په جملو کې یې استعمالوي.

### د لوستلو پر مهال

۱. ښوونکی تمثیل کوي، ښوونکی او زده کوونکي په ګډه لوستل کوي، زده کوونکي په دوه کسیزه توګه لوستل کوي.
۲. ښوونکی زده کوونکو ته ښیي چې څنګه کولای شي د مفهوم اخیستنې لپاره بیا لوستلو ستراتیژۍ نه ګټه واخلي (د تفصیلي لارښوونو لپاره د لومړۍ برخې عمومي کتنه وګورئ).

### له لوستلو څخه وروسته

۱. ښوونکی له زده کوونکو څخه پوښتنه کوي چې ایا د کیسې په اړه یې وړاندوینه سمه ده؟ هو/ نه.



۱۲

توری او کلمې

| | | |
|---|---|---|
| سیلابونه | سودا | پوستکي |
| اوسپنه | پلاستیک | احساس |
| سیمه | انسان | س |

کثافات

کثافات څنګه خوندي کړو؟

یو څېړونکي په کثافاتو کې میکروبونه پیدا کېږي او انسان ناروغه کوي. ناروغ انسان کمزوری او خپه وي. که کثافات د چا د کور خوا ته واچوئ، غوسه به شي، نو ګورئ!

- کثافات په ټاکلي ځای کې واچوئ.
- د میوو پوستکي او د ترکاریو پاتې شوني حیواناتو ته ورکول شو. که یې ښخ کړو سره ور څخه جوړېږي.
- کاغذونه، شیشې، اوسپنه او پلاستیکي شیان له کثافاتو بېل کړئ دا شیان خرڅېږي.
- کاغذونه ژمي ته وساتئ او په بخارۍ کې یې وسوځوئ.
- سودا په ټوکرینو کڅوړو کې راوړئ.

که همداسې وکړو، کثافات به کم او خوندي شي.

۲. ښوونکی له زده کوونکو څخه لاندې پوښتنې کوي.

- **پوښتنه: په کثافاتو کې څه شی پیداکېږي؟**
**ځواب: په کثافاتو کې میکروبونه پیداکېږي.**
- **پوښتنه: له کوم ډول کثافاتو څخه سره جوړېږي؟**
**ځواب: د میوو پوستکي او د ترکاریو پاتې شوني.**
- **پوښتنه: له کثافاتو څخه څه ګټې اخیستلای شو؟**
**ځواب: له ځینو کثافاتو څخه سره جوړېږي ځینې نور یې خرڅېږي او ځینې سوځولای شو.**
- **پوښتنه: څنګه خپل کور او د کور شاخوا پاکه وساتو؟**
**ځواب: خاورې او خځلې باید بې ځایه وانه چوو.**

۳. ښوونکی له زده کوونکو سره په ګډه یو متن په لنډو ټکو کې بیانوي (تفصیلي لارښوونو لپاره د دریمې برخې عمومي کتنه وګورئ). امکاني لنډیز: **خځلې او کثافات زموږ سیمه بدرنګوي. میکروبونه پیدا کوي. خځلې او کثافات باید په مناسبو ځایونو کې واچوو.**

## تکرار او کورنۍ دنده (۵ دقیقې)

۱. **تکرار:** ښوونکی له زده کوونکي سره د /س/ غږ لرونکې ځینې کلمې تکراروي.
۲. **کورنۍ دنده:** زده کوونکي توري او کلمې د تمرین په کتابونو کې لیکي. زده کوونکي د لومړي متن بیا لوستل په کور کې تمرین کوي.

## فرعي موضوع: کشافات

**د زده کړې موخې:**

۱. صفتي نومونو ته له مؤنث یا مذکر جمع کلمو سره مطابقت ورکول.
۲. کلمې په درېو ډلو کې وېشل.
۳. له مناسب لحن او حرکاتو څخه په ګټې اخیستنې او له ۹۵٪ سموالي سره متنونه لوستل.

### ۱. کلمې (۱۰ دقیقې)

۱. ښوونکی له زده کوونکو څخه پوښتنه کوي چې هغوی اوس هم هغه کلمې په یاد لري چې هلکان او نجونې تشریح کوي. ښوونکی له زده کوونکو څخه د یو څو بېلګو د وړاندې کولو غوښتنه کوي.
۲. ښوونکی زده کوونکو ته وايي چې خپل درسي کتابونو ته ځیر شي. هغوی د هلکانو، نجونو او ښارویو انځورونه ویني. هغوی د کلمو یو لست هم ویني چې د خلکو او ښارویو د تشریح کولو لپاره یې کاروي. ښوونکی لومړۍ دوه بېلګې له زده کوونکو سره په ګډه ترسره کوي. بیا زده کوونکي په دوه کسیزه توګه او په ګډه سره کار ته ادامه ورکوي.
۳. کله چې زده کوونکي په کار بوخت وي، ښوونکی په ټولګي کې ګرځي او له هغو زده کوونکو سره مرسته کوي چې ستونزې لري.
۴. ښوونکی د زده کوونکو ځوابونه ګوري.
۵. ښوونکی له زده کوونکو څخه غوښتنه کوي چې و وايي هغوی په دې درس کې څه زده کړي دي. (ځواب: د خلکو او ښارویو په اړه د تشریحاتو ورکولو لپاره د ځانګړو کلمو کارول.)

### ۲. د لغتونو زبرمه (۱۵ دقیقې)

۱. ښوونکی زده کوونکو ته وايي چې هغوی به نن یو ځل بیا د ډلبندۍ کولو تمرین وکړي.
۲. ښوونکی زده کوونکو ته وايي چې کلمې له دوو څخه په زیاتو ډلو کې وېشل کېدای شي. هغوی به نن همدا تمرین کوي.
۳. ښوونکی زده کوونکو ته وايي چې خپلو درسي کتابونو ته ځیر شي. هغوی (۱۲) کلمې ویني چې (۳) بېلابېلو کټګوریو پورې اړه لري.
۴. ښوونکی زده کوونکو ته وايي چې دا تمرین د تمرین په کتابونو کې ترسره کړي. ښوونکی لومړۍ دوې



کلمې له زده کوونکو سره ترسره کوي. بیا زده کوونکي په دوه کسیزه توګه کار کولو ته ادامه ورکوي.
۵. کله چې زده کوونکي په کار بوخت وي، ښوونکی په ټولګي کې ګرځي او له هغو زده کوونکو سره مرسته کوي چې ستونزې لري.
۶. لږ وخت وروسته، ښوونکی د زده کوونکو ځوابونه ګوري.
۷. ښوونکی له زده کوونکو پوښتنه کوي چې و وايي هغوی په دې درس کې څه زده کړي دي. (ځواب: بېلا بېلو کټګوریو پورې د کلمو تړاو درلودل.)

### ۳. د لومړي متن بیا لوستل (۱۰ دقیقې)

۱. د ځلورو پراوونو څخه په ګټې اخیستنې ښوونکی یې تمثیلوي، ښوونکی او زده کوونکي یې په ګډه لولي، زده کوونکي یې په دوه کسیزه توګه لولي او زده کوونکي یې پخپله لولي، په کارولو سره دوهم متن له زده کوونکو سره بیا لولي.

### تکرار او کورنۍ دنده (۵ دقیقې)

۱. **تکرار:** د صفتونو د مفهوم تکرار.
۲. **کورنۍ دنده:** ښوونکی زده کوونکو ته وايي چې د کلمو او د کلمو د زېرمې تمرین د تمرین په کتابونو کې ترسره کړي او ښوونکی په زده کوونکو ټینګار کوي چې متن بیا ولولي او د املا د تمرین لپاره د کلمو تمرین ترسره کړي.

## فرعي موضوع: باران

**د زده کړې موخې:**

۱. په مورفيمونو باندې د کلمو د تجزيه کولو لپاره د کلمو د جوړښت د پوهې کارول.
۲. د انځور، سرليک، مهمو کلمو او د مخکينۍ پوهې څخه په ګټې اخيستنې سره دا وړاندوينه کول چې متن يا کيسه به د څه په اړه وي.
۳. د مفهوم اخيستنې لپاره بيا لوستل.
۴. لوستل شوی متن په لنډو ټکو کې بيانول.

### ۱. کلمې (۱۰ دقيقې)

۱. ښوونکی د لومړۍ کلمې جوړښت کټ مټ پر توره تخته هغسې ليکي لکه په درسي کتاب کې چې ليکل شوی دی.
۲. ښوونکی يوه بېلګه په لوړ غږ زده کوونکو ته لولي. بيا يې ښوونکی له زده کوونکو سره يوځای لولي.
۳. ښوونکی تشريح کوي چې د (ی) وروستاړی کلمې ته ورزياتېږي او د کلمې معنا بدلېږي.
۴. ښوونکی زده کوونکو ته وايي چې د لومړنيو دوو بېلګو د لوستلو لپاره خپل درسي کتاب ته ځير شي.
۵. ښوونکی زده کوونکو ته وايي چې په درسي کتابونو کې په دوه کسيزه توګه کلمې ولولي.
۶. ښوونکی زده کوونکو ته وايي چې د تمرين په کتابونو کې د کلمو ليکل تمرين کړي.
۷. کله چې زده کوونکي د کلمو په لوستلو او ليکلو بوخت وي، ښوونکی په ټولګي کې ګرځي او له هغو زده کوونکو سره مرسته کوي چې ستونزې لري.

### ۲. د لومړي متن لوستل (۱۰ دقيقې)

**له لوستلو څخه مخکې**

۱. ښوونکی زده کوونکو ته وايي چې سرليک او انځور ته وګوري او وړاندوينه وکړي چې متن به د څه په اړه وي. (په خپلو کې شريکول، له ټولګيوالو سره شريکول).
ښوونکی درې کليدي کلمې له زده کوونکو سره معنا او په جملو کې يې استعمالوي.

**د لوستلو پر مهال**

۲. ښوونکی تمثيل کوي، ښوونکی او زده کوونکي يې په ګډه لولي، زده کوونکي په دوه کسيزه توګه لولي.
۳. ښوونکی زده کوونکو ته ښيي چې څنګه کولای شي د مفهوم اخيستنې لپاره د بيا لوستلو له ستراتيژۍ څخه ګټه واخلي. (د تفصيلي لارښوونو لپاره د لومړۍ برخې عمومي کتنه وګورئ).

**له لوستلو څخه وروسته**

۱. ښوونکی له زده کوونکو څخه پوښتنه کوي چې د کيسې په اړه يې وړاندوينه سمه ده؟ هو يا نه.
۲. ښوونکی له زده کوونکو څخه لاندې پوښتنې کوي.



| ناروغ | ناروغ+ي | ناروغي |
|---|---|---|
| هوښيار | هوښيار+ي | هوښياري |
| ځيرک | ځيرک+ي | ځيرکي |
| ګلاب | ګلاب+ي | ګلابي |

باران

په باران کې څنګه ځان خوندي کړو؟
په باران کې مو کالي لندېږي او کېدای شي ناروغه شو. په تېز باران کې سېلاب راوځي
کله کله له باران سره تالنده او برېښنا هم وي.
تندر يا برېښنا پر ونو، ستنو، آنتنونو او لوړو ځايونو لوېږي. تندر د مرګ ژوبلې سبب ګرځي
نو ګورئ: په باران کې چترۍ پر سر ونيسئ. که چترۍ نه وه، په خوندي ځای کې ودرېږئ
په خوړو او ژورو ځايونو کې مه ګرځئ
پام کوئ: که تالنده او برېښنا وي، تر ونو لاندې مه درېږئ
د برق له ستنو او آنتنونو څخه لرې شئ
دا ټکي مو د باران او برېښنا له خطر څخه ساتي

- **پوښتنه: تندر زياتره وخت چېرته لوېږي؟**
**ځواب: پر ونو، ستنو، آنتنونو او لوړو ځايونو.**
- **پوښتنه: د تالندې او برېښنا په وخت کې بايد څه وکړو؟**
**ځواب: تر ونو لاندې ونه درېږو د برق له ستنو او آنتنونو څخه لرې شو.**
- **پوښتنه: څنګه د تيز او ډېر باران له زيانونو څخه ځان خوندي ساتلای شو؟**
**ځواب: د تيز باران په وخت کې بايد له سيندونو، خوړونو څخه ځانونه لرې وساتو.**
- **پوښتنه: باران څه ګټې لري؟**
**ځواب: په ځاګانو او سيندونو کې اوبه زياتوي، ونې بوټي زرغوني.**

۳. ښوونکی له زده کوونکو سره په ګډه يو متن په لنډو ټکو کې بيانوي (تفصيلي لارښوونو لپاره د دريمې برخې عمومي کتنه وګورئ). (امکاني لنډيز: **تيز باران د سېلابونو د راوتلو سبب ګرځي. په باران کې له چترۍ څخه ګټه واخلو. د باران پر مهال له اوسپنيزو، برقي شيانو څخه ځان خوندي وساتو.**
۴. ښوونکی د پرله پسې ارزونې کتاب کې د ۸ زده کوونکو نومرې ثبتوي.

### تکرار او کورنۍ دنده (۵ دقيقې)

۱. **تکرار:** ښوونکی د کلمو تمرين له زده کوونکو سره تکراروي.
۲. **کورنۍ دنده:** زده کوونکي په کور کې د کلمو ليکل او د دوهم متن د بيا لوستلو تمرين کوي.

## فرعي موضوع: باران

**د زده کړې موخې:**

۱- د امریه او ندایه نښې پر کارولو پوهېدل.

۲- کلمې په دریو ډلو وېشل.

۳- له مناسب لحن او حرکاتو څخه په ګټې اخیستنې او له ٪۹۵ سموالي سره د متنونو لوستل.

### ۱. کلمې (۱۰ دقیقې)

۱. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې هغوی به مثبتو او منفي امریه کلمو کې د ندایي لیک نښې کارول تمرین کړي.

۲. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې خپلو درسي کتابونو ته ځیر شي، هلته درې کلمې(تلل، خوړل، خندل) شتون لري. چې باید په مثبت او منفي امریو کې وکارول شي.

۳. ښوونکی لومړی کلمه( تلل) په مثبت امریه جمله(ځه!) او منفي امریه جمله(مه ځه!) کې له زده کوونکو سره کاروي. او روښانه کوي چې په مثبت امریه او منفي امریه جملو کې د ندایي لیک نښه وکارول شي.

٤. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې د لومړنیو ببلګو د لوستلو لپاره درسي کتاب ته ځیر شي .

٥. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې په دوه کسیزه توګه کار وکړي ترڅو د تمرین کتاب کې تمرین بشپړ کړي.

٦. کله چې زده کوونکي د مثبت او منفي امرونو په لیکلو بوخت وي، ښوونکی په ټولګي کې ګرځي او له هغو زده کوونکو سره مرسته کوي چې ستونزې لري.

### ۲. د لغتونو زېرمه (۱۵ دقیقې)

۱. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې هغوی به د ډلبندۍ کولو تمرین وکړي.

۲. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې کلمې له دوو څخه په زیاتو ډلو کې وېشل کېدای شي. هغوی به نن همدا تمرین کوي.

۳. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې خپل درسي کتابونو ته ځیر شي. هغوی (۱۲) کلمېویني چې په دریو بېلابېلو کټګوریو پورې اړه لري.

٤. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې دا تمرین د خپلو تمرین په کتابونو کې ترسره کړي. ښوونکی لومړی دوه کلمې له زده کوونکو سره ترسره کوي. بیا زده کوونکي په دوه کسیزه توګه کار کولو ته ادامه ورکوي.

٥. کله چې زده کوونکي په کار بوخت وي، ښوونکی په ټولګي کې ګرځي او له هغو زده کوونکو سره مرسته کوي چې ستونزې لري.



| کلمه | مثبت امریه | منفي امریه |
|---|---|---|
| راوړل | راوړئ | مه راوړئ |
| خندل | | مه خاندئ |
| خوړل | وخورئ | |

٦. لږ وخت وروسته، ښوونکی د زده کوونکو ځوابونه ګوري.

٧. ښوونکی له زده کوونکو پوښتنه کوي چې و وایي هغوی په دې درس کې څه زده کړي دي. (ځواب: بېلا بېلو کټګوریو پورې د کلمو تړاو، او د ندایه او امریه نښو کارول.

### ۳. د دویم متن بیا لوستل (۱۰دقیقې)

د څلورو پړاوونو یعنې ښوونکی تمثیلوي، ښوونکی او زده کوونکي په ګډه لولي، یعنې زده کوونکي په دوه کسیزه توګه لولي او زده کوونکي یې پخپله لولي، په کارولو سره دوهم متن له زده کوونکو سره بیا لولي.

### تکرار او کورنۍ دنده (۵ دقیقې)

۱. **تکرار:** د امریه او ندایه نښې د کارولو تکرار.

۲. **کورنۍ دنده:** ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې د کلمو تمرین په کورونو کې په خپلو کتابچو کې ترسره کړي او دوهم لوست تکرار کړي.

د حسن خط فعالیت، ارزونه او کورنۍ دنده (۴۰ دقیقې)

## فرعي موضوعګانې: کثافات او باران

**د زده کړې موخې:**

۱- د نورو خلکو د احساساتو په اړه وراندوینه او پېژندل.
۲- د نوښتي ليکنې د متن بشپړول.
۳- له مناسب لحن او حرکاتو څخه په ګټې اخيستنې او له ۹۵٪ سموالي سره د متنونو لوستل.

### ۱. غوږنيول او خبرې کول (۱۰ دقيقې)

۱. ښوونکی زده کوونکو ته وايي چې په دې درس کې به د نورو خلکو د احساساتو پر وراندوينه او پېژندلو خبرې وکړو. د نورو خلکو د احساساتو په اړه وراندوينه او پېژندل څکه مهم دي چې تاسو کولی شئ له هغوی سره سم چلند وکړئ او همدارنګه له هغوی سره ښه ملګرتيا رامنځ ته کړئ.

۲. ښوونکی زده کوونکو ته وايي چې د درسي کتاب لومړي انځور ته وګوري. له زده کوونکو وغواړئ چې په انځور کې څه شی ويني او ورته وواياست چې يو له بل سره پرې بحث وکړي. له زده کوونکو پوښتنه وکړئ چې څه فکر کوئ که لومړی هلک هغه بل هلک ته ووايي چې د سړک پر غاړه د کثافاتو او څځلو غورځول ښه کار نه دی، نو د هغه هلک عکس العمل او ځواب به څه وي؟ څو زده کوونکو ته وخت ورکړئ چې خپل نظرونه له ټولګيوالو سره شريک کړي.

۳. زده کوونکو ته و واياست چې دويم انځور ته وګوري. په دې انځور کې د دريم ټولګي زده کوونکی ليدل کېږي چې يوه بل نوي ښوونځي ته ځي. له زده کوونکو وغواړئ وراندوينه وکړي چې دغه زده کوونکی به څه احساس کوي. څو زده کوونکو ته وخت ورکړئ چې خپل نظرونه له ټولګيوالو سره شريک کړي.

۴. زده کوونکو ته و واياست چې د تمرين کتابونو ته وګوري او پکې دوه نور انځورونه ويني. له زده کوونکو څخه وغواړئ د لومړي انځور په اړه چې يو زده کوونکی له نورو زده کوونکو سره په لوبو کې برخه نه اخلي، د هغه د احساس په اړه وراندوينه وکړي.

۵. زده کوونکو ته و واياست چې دويم انځور ته وګوري او يو له بل سره بحث وکړي. په دې انځور کې کليوال له خپل کلي کثافات او څځلي پاکوي او په يوه سم ځای کې يې اچوي. له زده کوونکو پوښتنه وکړئ چې کليوال د کلي د پاکوالي په اړه اوس څه احساس لري؟ څو زده کوونکو ته وخت ورکړئ چې خپل نظرونه د دواړو حالتونو په اړه له ټولګيوالو سره شريک کړي.

۶. ښوونکی زده کوونکو ته وايي چې په دريو يا څلورو کوچنيو ډلو کې د هغه ماشوم په اړه تمثيل وکړي چې ملګرو يې له لوبې څخه ايستلی او هغه يوازې دوی ته ګوري. ښوونکی له زده کوونکو ځينې پوښتنې کوي: ستاسو په نظر هغه ماشوم چې له لوبو ايستل شوی دی، څه احساس به کوي؟ که ملګري مو تاسو له لوبو وباسي، نو څه احساس به وکړئ؟

۷. ښوونکی څرګندوي چې موږ بايد د نورو خلکو د احساساتو په اړه وراندوينه وکړو او کوښښ وکړو د هغوی پر احساساتو ځانونه پوه کړو چې په دې کار سره موږ کولی شو له خلکو سره ښې اړيکې ټينګې کړو.



### ۲. نوښتي ليکنه (۱۵ دقيقې)

۱. ښوونکی زده کوونکو ته وايي چې هغوی به اوس د خلکو د احساساتو د وراندوينې په اړه يوه متن وليکي.
۲. ښوونکی زده کوونکو ته وايي چې د درسي کتاب جملې او د چوکاټ کلمې يو له بل سره په ګډه ولولي.
۳. ښوونکی زده کوونکو ته وايي چې د تمرين په کتابونو کې د چوکاټ د کلمو په کارولو سره په تشو ځايونو کې په دوه کسيزه توګه جملې جوړې کړي او نيمګړی متن دې بشپړ کړي.
۴. ښوونکی په ټولګي کې ګرځي او هغو زده کوونکو ته چې ستونزې لري مرسته او لارښوونه کوي.
۵. ښوونکی له څو زده کوونکو غواړي چې خپل بشپړ کړي متنونه ټولګيوالو ته و وايي.

### ۳. د لومړي او دويم متن بيا لوستل (۱۰ دقيقې)

ښوونکی له دوو پراوونو (لکه زده کوونکي په دوه کسيزه توګه لولي، زده کوونکي يې پخپله لولي)، څخه په ګټې اخيستنې سره لومړی او دوهم متن له زده کوونکو سره بيا لولي.

### تکرار او کورنۍ دنده (۵ دقيقې)

۱. **تکرار:** د نورو خلکو د احساساتو په اړه وراندوينه کول.
۲. **کورنۍ دنده:** د لومړي او دوهم متن بيا لوستل. د تخليقي کيسې بشپړول او يو رسم ورزياتول.

## فرعي موضوع: تکرار او دوامداره ارزونه

**د زده کړې موخې:**
۱- د تشریحي کلمو (صفتونو) کارول
۲- د امریه او ندایه نښې پر کارولو پوهېدل
۳- کلمې ډلبندي کول
٤- د مناسب لحن او فشار په کارولو او له٪ ۹۵ سموالي سره د متنونو لوستل.
٥- له٪ ۸۰ سموالي سره د کلمو او جملو لیکل.
٦- د /س/ غږ او تورو لرونکو کلمو سم لیکل.

### ۱. کلمې (۱۰ دقیقې)

۱. ښوونکی د تشریحي کلمو (صفتونو) کارول تکراروي.
۲. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې د درسي کتاب (الف) تمرین ترسره کړي.
۳. ښوونکی د مثبت او منفي امریه او ندایه نښې کارول تکراروي.
٤. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې د درسي کتاب (ب) تمرین ترسره کړي.
٥. ښوونکی په کټګوریو کې د کلمو وېشل تکراروي.
٦. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې د درسي کتاب (ج) تمرین ترسره کړي.
۷. ښوونکی د زده کوونکو ځوابونه ګوري.
۸. ښوونکی د پرله پسې ارزونې په کتاب کې د زده کوونکو نومرې ثبتوي.

### ۲. د لومړي او دویم متن بیا لوستل (۱۰ دقیقې)

۱. ښوونکی زده کوونکو ته دوې دقیقې وخت ورکوي چې په دوه کسیزه توګه لومړی یا دوهم متن ژر ژر ولولي.
۲. ښوونکی د زده کوونکو له (۴) جوړو څخه غوښتنه کوي چې د ټولګي مخې ته راشي.
۳. ښوونکی هغوی ته وایي چې هره جوړه به د متن یوه برخه لولي. هغوی باید متن په روانه توګه او د مناسب لحن او حرکاتو په کارولو سره ولولي چې ټکی او د پوښتني نښه منعکس کړي. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې ورو ورو متن له لوستونکي سره ولولي او ښه غوږ ورته ونیسي.
٤. کله چې (۸) زده کوونکي په لوستلو بوخت وي، ښوونکی د هغوی د لوستلو څرنګوالی مشاهده کوي او خپله مشاهده د پرله پسې ارزونې په کتاب کې لیکي. له هغو زده کوونکو سره چې په ښه توګه دا فعالیت ترسره نه کړي، باید په بله اونۍ کې مرسته وشي.



### ۳. املا (۱۵ دقیقې)

۱. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې هغوی به څو کلمې او جملې ولیکي.
۲. ښوونکی زده کوونکو ته د درسي کتابونو د ټرلو او د تمرین کتابونو د پرانیستلو وایي.
۳. ښوونکی لومړی کلمه په کراره وایي او څلور ځلې یې تکراروي. کلمه داده: (**سیلابونه**) زده کوونکي کلمه لیکي.
۴. ښوونکی همدغه کار د لاندې (۸) کلمو لپاره هم ترسره کوي: **اوسپنه، ستنو، پلاستیک، احساس، سیمه، انسان، نس، پوستکي**
۵. ښوونکی لومړی جمله په کراره لولي او څلور ځلې یې په کراره کراره تکراروي. زده کوونکي جمله لیکي. جمله داده: **۱. زه په بازار کې سودا اخلم.**
٦. ښوونکی همدا کار د لاندې جملو لپاره هم ترسره کوي.
**۲. په باران کې مو کالي لندېږي. ۳. په تیز باران کې سیلابونه راوځي. ۴. انسان پاکې هوا ته ضرورت لري.**
۷. ښوونکي زده کوونکو ته وایي چې د تمرین کتابچې د لیدلو لپاره راوړي. ښوونکي د هغو املاء ګوري او نومرې ورکوي.
۸. ښوونکي د زده کوونکو نومرې د پرله پسې ارزونې په کتاب کې ثبتوي.

### تکرار او کورنۍ دنده (۵ دقیقې)

۱. **تکرار:** زده کوونکو ته دا ویل چې د درسونو هغه برخې زده کړې دي چې هغوی ته په کورونو کې سختې وې، تمرین کړي.
۲. **کورنۍ دنده:** ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې په کورونو کې د درسونو د هغو برخو بیا لیکل او لوستل دې ترسره کړي چې د اونۍ په جریان کې یې ورسره ستونزې لرلې.

د حسن خط فعالیت، ارزونه او کورنۍ دنده (۴۰ دقیقې)

فرعي موضوع: د ښار پاکوالی          توري: ث،س،ص

**د زده کړې موخې:**

۱. د /ث/، /س/، /ص/ غږونو او د دې تورو لرونکو کلمو سم ليکل.
۲. د انځور، سرليک، مهمو کلمو او د مخکينۍ پوهې څخه په ګټې اخستنې سره دا وړاندوينه وکړي چې متن يا کيسه به د څه په اړه وي.
۳. د مفهوم اخيستنې لپاره بيا لوستل.
۴. يو متن په لنډو ټکو کې بيانول.

**۱. توري او کلمې (۱۰ دقيقې)**

۱. ښوونکی زده کوونکو ته وايي چې د (ث، س او ص ) توري يو ډول اوازونه لري.
۲. ښوونکی زده کوونکو ته وايي چې په دې لوست کې د هغو کلمو تمرين وکړي چې د نورو دوو تورو (ث) (س) سربېره د (ص) توری پکې کارول کېږي.
۳. ښوونکی لاندينۍ کلمې پر تخته ليکي: **سندرې، ثواب** ښوونکی له زده کوونکو څخه غوښتنه کوي چې کلمه په لوړ غږ ولولي. ښوونکی له زده کوونکو پوښتنه کوي چې کوم توری د(س) غږ لري. ښوونکی يو څو زده کوونکو ته اجازه ورکوي چې توري ته ګوته ونيسي.
۴. ښوونکی زده کوونکي د درسي کتاب لوستلو ته رابولي. ښوونکی کلمې په داسې حال کې زده کوونکو ته لولي چې هغوی خپلې ګوتې پر کلمو تېروي. بيا زده کوونکي هغه کلمې په دوه کسيزه توګه لولي.
۵. ښوونکی زده کوونکو ته وايي چې د تمرين په کتابونو کې د کلمې ليکل تمرين کړي.
۶. ښوونکی زده کوونکو ته وايي چې هغوی بايد د دغو کلمو ليکل هر ورځ په کور کې تمرين کړي.
۷. ښوونکی زده کوونکو ته وايي چې هغوی به د اونۍ په پای کې د دې کلمو په اړه املا ولري.

**۲. د لومړي متن لوستل (۲۵ دقيقې)**

**له لوستلو څخه مخکې**

۱. ښوونکی زده کوونکو ته وايي چې سرليک او انځور ته وګوري او وړاندوينه وکړي چې متن به د څه په اړه وي. (په خپلو کې شريکول، له ټولګيوالو سره شريکول).
۲. ښوونکی درې کليدي کلمې له زده کوونکو سره معنا او په جملو کې يې استعمالوي.

**د لوستلو پر مهال**

۱. ښوونکی تمثيل کوي، ښوونکی او زده کوونکي په ګډه لولي، زده کوونکي يې په جوړه يې توګه لولي.
۲. ښوونکی زده کوونکو ته ښيي چې څنګه کولای شي د مفهوم اخيستنې لپاره بيا د لوستلو له ستراتيژۍ څخه ګټه واخلي (د تفصيلي لارښوونو لپاره د لومړۍ برخې عمومي کتنه وګورئ).



۱۳ اوني

توري او کلمې

| ث | کثافات | وارث | ثواب |
| --- | --- | --- | --- |
| س | لاس | پسرلی | سيند |
| ص | اخلاص | تصير | صفا |

صفايي    پام    اثر

د ښار پاکوالی

څنګه کولای شو، ښار پاک وساتو؟ ښار زموږ ګډ کور دی. که د ښار صفايي ته پام ونه شي، په ناروغيو به اخته شو. د دې لپاره چې ښار صفا او ښکلی وساتو، بايد:
- په خپلو کورونو او شاوخوا کې ښايسته نيالګي کښېنوو.
- کثافات په پاکلي ځای يا کثافاتدانۍ کې واچوو.
- د ولاړو اوبو ډنډونه له منځه يوسو. په لښتيو، ويالو او سيندونو کې کثافات ونه غورځوو.
- د پاکوالي په اثر کې برخه واخلو. د خپلې سيمې صفا ساتل ثواب لري. ګرانو زده کوونکو! ښار زموږ ګډ کور دی، بايد پاک يې وساتو.

**له لوستلو څخه وروسته**

۱. ښوونکی له زده کوونکو څخه پوښتنه کوي چې د کيسې په اړه يې وړاندوينه سمه ده؟ هو/ نه.
۲. ښوونکی له زده کوونکو څخه لاندې پوښتنې وکړئ.

- **پوښتنه: که د ښار صفايي ته پام و نه شي څه به پېښ شي؟**
**ځواب: په ناروغۍ به اخته شو.**
- **پوښتنه: څه بايد وکړو چې ښار مو پاک وي؟**
**ځواب: کثافات په مناسب ځای کې واچوو، په اثر کې برخه واخلو.**
- **پوښتنه: ولې خپل ښار بايد پاک وساتو؟**
**ځواب: ځکه چې ګډ کور مو دی.**
- **پوښتنه: د ښار پاکوالی زموږ په ژوند کې څه اغېز لري؟**
**ځواب: روغتيا ته مو ګټه رسوي، خوند راکوي او خوشحالوي مو.**

۳. ښوونکی له زده کوونکو سره په ګډه يو متن په لنډو ټکو کې بيانوي (تفصيلي لارښوونو لپاره د دريمې برخې عمومي کتنه وګورئ). (د متن اصلي مفهوم: **ښار زموږ ګډ کور دی. ښار بايد صفا او ښکلی وساتو په ويالو، لښتيو او سيندونو کې کثافات وا نه چوو.**

**تکرار او کورنۍ دنده (۵ دقيقې)**

**۱. تکرار:** ښوونکی له زده کوونکی سره د توري نوم او غږ تکراروي.
**۲. کورنۍ دنده:** زده کوونکي توري او کلمې په کورونو کې په خپلو کتابچو کې ليکي او د لومړي متن بيا لوستل په کور کې تمرين کوي.

## فرعي موضوع: د ښار پاکوالی

**د زده کړې موخې:**

۱. له نومونو سره د مذکرو او مؤنثو صفتونو کارول.
۲. کلمې په دریو ډلو وېشل.
۳. له مناسب لحن او حرکاتو څخه په ګټې اخیستنې او له ۹۵٪ سموالي سره متنونه لوستل.

### ۱. کلمې (۱۰ دقیقې)

۱. ښوونکی له زده کوونکو څخه پوښتنه کوي چې آیا هغوی اوس هم هغه کلمې په یاد لري چې هلکان او نجونې تشریح کوي. ښوونکی له زده کوونکو څخه د یو څو بېلګو د وړاندې کولو غوښتنه کوي.
۲. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې خپل درسي کتابونو ته ځیر شي. هغوی د خلکو انځورونه ویني. هغوی د کلمو یوه لست هم ویني چې د خلکو د تشریح کولو لپاره یې کاروي. ښوونکی لومړۍ بېلګه له زده کوونکو سره کوي. بیا زده کوونکي په دوه کسیزه توګه کار سرته رسوي.
۳. کله چې زده کوونکي په کار بوخت وی، ښوونکی په ټولګي کې ګرځي او له هغو زده کوونکو سره مرسته کوي چې ستونزې لري.
٤. ښوونکی د زده کوونکو ځوابونه ګوري.
٥. ښوونکی له زده کوونکو څخه غوښتنه کوي چې و وایي هغوی په دې درس کې څه زده کړي دي. (ځواب: د خلکو په اړه د تشریحاتو ورکولو لپاره د ځانګړو کلمو کارول.)

### ۲. د لغتونو زېرمه (۱۵ دقیقې)

۱. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې هغوی به نن یو ځل بیا د کلمو د ډلبندۍ کولو تمرین وکړي.
۲. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې کلمې له دوو څخه په زیاتو ډلو وېشل کېدای شي. هغوی به نن همدا تمرین ترسره کړي.
۳. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې خپل درسي کتابونو ته ځیر شي. هغوی(۱۲)کلمې ویني چې دریو بېلابېلو کټګوریو پورې اړه لري.
٤. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې دا تمرین د تمرین په کتابونو کې ترسره کړي. ښوونکی لومړۍ دوې کلمې له زده کوونکو سره ترسره کوي. بیا زده کوونکي په دوه کسیزه توګه کار کولو ته ادامه ورکوي.
٥. کله چې زده کوونکي په کار بوخت وي، ښوونکی په ټولګي کې ګرځي او له هغو زده کوونکو سره مرسته کوي چې ستونزې لري.
٦. لږ وخت وروسته، ښوونکی د زده کوونکو ځوابونه ګوري.
٧. ښوونکی له زده کوونکو پوښتنه کوي چې و وایي هغوی په دې درس کې څه زده کړي دي. (ځواب: بېلا بېلو کټګوریو پورې د کلمو تړاو درلودل.)



### ۳. د لومړي متن بیا لوستل (۱۰ دقیقې)

۱. د څلور پړاوونو یعنې ښوونکی تمثیلوي، ښوونکی او زده کوونکي یې په ګډه لولي، زده کوونکي یې په دوه کسیزه توګه لولي او زده کوونکي یې پخپله لولي، په کارولو سره لومړی متن له زده کوونکو سره بیا لوستل.

### تکرار او کورنۍ دنده (۵ دقیقې)

۱. **تکرار:** ښوونکی صفتونه تکرار وي.
۲. **کورنۍ دنده:** ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې د کلمو د تمرین په کورونو کې په خپلو کتابچو کې ترسره کړي. او لومړی متن بیا ولولي او د اونۍ په پای کې د املا د تمرین لپاره د کلمو تمرین ترسره کړي.

## فرعي موضوع: د پسرلي ترانه

**د زده کړې موخې:**

۱. په چټکۍ سره د کلمو د تجزیه کولو لپاره د مورفیمونو په اړه د کلمو د جوړښت د پوهې کارول.
۲. د انځور، سرلیک، مهمو کلمو او د مخکینۍ پوهې څخه په ګټې اخیستنې سره دا وړاندوینه کوي چې متن یا کیسه به د څه په اړه وي.
۳. د مفهوم اخیستنې لپاره بیا لوستل.
۴. یو لوستل شوی متن په لنډو ټکو کې بیانول.

### ۱. کلمې (۱۰ دقیقې)

۱. ښوونکی د لومړۍ کلمې جوړښت کټ مټ پر توره تخته لیکي لکه په درسي کتاب کې چې لیکل شوې دی.
۲. ښوونکی یې بېلګه په لوړ غږ زده کوونکو ته لولي. بیا ښوونکی بېلګه له زده کوونکو سره یوځای لولي.
۳. ښوونکی تشریح کوي چې د (وال) ورستاړی کلمې ته ورزیاتېږي او د کلمې معنا بدلېږي.
۴. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې د لومړنیو دوو بېلګو د لوستلو لپاره خپل درسي کتاب ته ځیر شي.
۵. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې په درسي کتابونو کې په دوه کسیزه توګه کلمې ولولي.
۶. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې د تمرین په کتابونو کې د کلمو لیکل تمرین کړي.
۷. کله چې زده کوونکي د کلمو په لوستلو بوخت وي، ښوونکی په ټولګي کې ګرځي او له هغو زده کوونکو سره مرسته کوي چې ستونزې لري.

### ۲.د دویم متن لوستل (۲۵ دقیقې)

۱. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې سرلیک او انځور ته وګوري او وړاندوینه وکړي چې متن به د څه په اړه وي. (په خپلو کې شریکول، له ټولګیوالو سره شریکول).

۲.ښوونکی درې کلیدي کلمې له زده کوونکو سره معنا او په جملو کې یې استعمالوي.

**د لوستلو پر مهال**

۱.ښوونکی تمثیل کوي، ښوونکی او زده کوونکي په ګډه لوستل کوي، زده کوونکي په دوه کسیزه توګه لوستل کوي.
۲. ښوونکی زده کوونکو ته ښیي چې څنګه کولای شي د مفهوم اخیستنې لپاره د بیا لوستلو له ستراتیژۍ څخه ګټه واخلي. (د تفصیلي لارښوونو لپاره د لومړۍ برخې عمومي کتنه وګورئ).

**له لوستلو څخه وروسته**

۱. ښوونکی له زده کوونکو څخه پوښتنه کوي چې ایا د کیسې په اړه یې وړاندوینه سمه ده؟ هوا/ نه.

۲. ښوونکی له زده کوونکو څخه لاندې پوښتنې کوي.
- **پوښتنه: د پسرلي د موسم نښې نښانې څه دي؟**


۱۴ اونۍ — ۳ لوست

کلمې

| کلمه | کلمه + وال | کلیمه |
|---|---|---|
| ترې | ترې+وال | تربوال |
| لیک | لیک+وال | لیکوال |
| هیواد | هیواد+وال | هیوادوال |
| کلي | کلي+وال | کلیوال |

بڼ — تلوسه — زرغونه

د پسرلي ترانه

ژمی تېر شو، هوا ښه شوه
پسرلي وږمه خوره شوه
بلبل بیا سندرې وایي
بڼ، بېدیا نغمه نغمه شوه
نارنج ګل شو، انار ګل شو
غر او سمه رنګینه شوه
شاګردان مکتب ته درومي
د لیک لوست یې تلوسه شوه
د بزګر له کار او زیاره
وچه ځمکه زرغونه شوه

**ځواب: هوا ښه وي، بوټي پاڼې او ګلان کوي.**
- **پوښتنه: زده کوونکي په پسرلي کې څه کوي؟**
**ځواب:ښوونځي ته ځي، لیک او لوست زده کوي.**
- **پوښتنه: تاسې په پسرلي کې څه احساس کوئ؟**
**ځواب: د خوښۍ احساس کوو او لوبې کوو.**
- **پوښتنه: په دې شعر کې د پسرلي په اړه څه ویل شوي؟**
**ځواب: د پسرلي موسم ستاینه پکې شوې.**

۳. ښوونکی له زده کوونکو سره په ګډه یو متن په لنډو ټکو کې بیانوي (تفصیلي لارښوونو لپاره د دریمې برخې عمومي کتنه وګورئ). د متن اصلي مفهوم: **پسرلي کې هوا ښه کېږي، غر او سمه رنګینه کېږي. زده کوونکي ښوونځي ته ځي. بزګر کښت کوي.**
۴. ښوونکی د پرله پسې ارزونې په کتاب کې د(۸) زده کوونکو نومرې ثبتوي.

### تکرار او کورنۍ دنده (۵ دقیقې)

۱. **تکرار:** ښوونکی د کلمو د تجزیه کولو لپاره د مورفیمونو پوهه تکراروي.
۲. **کورنۍ دنده:** زده کوونکي کلمې په کورونو کې په خپلو کتابچو کې لیکي او دوهم متن بیا لولي.

## فرعي موضوع: د پسرلي ترانه

**د زده کړې موخې**
۱- د امرېه او ندایه نښو په کارولو پوهېدل.
۲- کلمې په دریو ډلو کې وېشل.
۳- له مناسب لحن او حرکاتو څخه په ګټې اخیستنې او له ٪۹۵ سموالي سره متنونه لوستل.

### ۱. کلمې او جملې (۱۰ دقیقې)

۱. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې هغوی به له مثبت امر او منفي امر سره د ندایه نښې (!) کارول زده کړي.
۲. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې خپلو درسي کتابونو ته ځیر شي هلته ( ۳ )کلمې ورکړل شوې دي چې باید په منفي او مثبت امریه ووېشل شي.
۳. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې په دوه کسیزه توګه کار وکړي، ترڅو ټولې جملې بشپړې کړي.
٤. ښوونکی له هغو زده کوونکو سره مرسته کوي چې ستونزې لري.
٥. لږ وخت وروسته، ښوونکی د زده کوونکو ځوابونه ګوري.
٦. ښوونکی د ځینو زده کوونکو نومرې د پرله پسې ارزونې په کتاب کې ثبتوي.

### ۲. د لغتونو زېرمه (۱۵ دقیقې)

۱. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې هغوی به د ډلبندۍ کولو تمرین وکړي.
۲. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې کلمې له دوو څخه په زیاتو ډلو وېشل کېدای شي. هغوی به نن همدا تمرین کوي.
۳. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې خپلو درسي کتابونو ته ځیر شي. هغوی دولس(۱۲)کلمېویني چې په دریو بېلابېلو کټګوریو پورې اړه لري.
٤. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې دا تمرین په خپلو د تمرین په کتابونو کې ترسره کړي. ښوونکی لومړی دوه کلمې له زده کوونکو سره ترسره کوي. بیا زده کوونکي په دوه کسیزه توګه کار کولو ته ادامه ورکوي.
٥. کله چې زده کوونکي په کار بوخت وي، ښوونکی په ټولګي کې ګرځي او له هغو زده کوونکو سره مرسته



کلمې او جملې

| کلمه | مثبت امریه | منفي امریه |
|---|---|---|
| خندل | وخاندئ | مه خاندئ |
| ژړل | | مه ژاړئ |
| لستل | [illegible] | |

د لغتونو زېرمه

د دوېم متن بیا لوستل

کوي چې ستونزې لري. لږ وخت وروسته، ښوونکی د زده کوونکو ځوابونه ګوري.
ښوونکی د پرله پسې ارزونې په کتاب کې د ځینو زده کوونکو نومرې ثبتوي.

### ۳. د دوېم متن بیا لوستل (۱۰دقیقې)

له خلورو پړاوونو څخه په ګټې اخیستنې ښوونکی یې تمثیلوي، ښوونکی او زده کوونکي یې په ګډه لولي، زده کوونکي یې په دوه کسیزه توګه لولي او زده کوونکي یې پخپله لولي، په کارولو سره دوهم متن له زده کوونکو سره بیا لولي.

### تکرار او کورنۍ دنده (۵ دقیقې)

۱. **تکرار:** د امریه او ندایه نښو د کارولو تکرار.
۲. **کورنۍ دنده:** ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې د کلمو او جملو تمرین په کورونو کې په خپلو کتابچو کې ترسره کړي او دوهم متن بیا ولولي او د املا د تمرین لپاره د کلمو تمرین ترسره کړي.

د حسن خط فعالیت، ارزونه او کورنۍ دنده (۴۰ دقیقې )

## فرعي موضوعګانې: د ښار پاکوالی او د پسرلي ترانه

**د زده کړې موخې:**

۱- د یوه کار یا حالت په اړه د خلکو د بېلابېلو احساساتو او نظرونو پېژندل.

۲- د نوښتي لیکنې د متن بشپړول.

۳- له مناسب لحن او حرکاتو څخه په ګټه اخیستنې او له ۹۵٪سموالي سره متنونه لوستل.

### ۱. غوږنیول او خبرې کول (۱۰ دقیقې)

۱. ښوونکی تشریح کوي چې موږ باید پر دې پوه شو چې د یوه کار یا حالت په اړه خلک کېدای شي ډول ډول احساسات او نظرونه ولري. د دې لپاره چې د دې کار یا حالت په اړه یو له بل سره خبرې وکړو، نو مهمه دا ده چې لومړی په دې پوه شو چې هغه بل کس د دې حالت په اړه څه نظر لري او دې حالت ته څه ډول ګوري.

۲. ښوونکی زده کوونکو ته وايي چې د درسي کتاب انځورونو ته وګوري. له هغوی څخه وغواړئ چې د انځورونو په اړه یو له بل سره بحث وکړي او و وايي چې په انځورونو کې څه شی ویني؟ هغوی څه کار کوي؟ څوک خوشحاله دي؟ څوک په غوسه دي؟

۳. له زده کوونکو څخه وغواړئ چې په انځور کې هلکان ولې خوشحاله دي؟ څه فکر کوئ د هغوی مور ولې په غوسه ده؟ څو زده کوونکو ته وخت ورکړئ چې خپل نظرونه شریک کړي. ښوونکی دې روښانه کړي چې دا یو ډول کار یا حالت و خو هلکان دې کار یا حالت ته یو ډول ګوري او مور یې دې کار یا حالت ته له بله نظره ګوري؟

۴. زده کوونکو ته و وایاست چې د تمرین په کتابونو کې انځورونو ته وګوري. زده کوونکو ته و وایاست چې د لومړي انځور په اړه بحث وکړي او و وايي چې په دې انځور کې خلک څه ډول احساس کوي؟ آیا دوی فکر کوي چې د یوه کار یا حالت په اړه ټول خلک یو ډول احساس لري؟ آیا ټول خوشحاله دي؟ آیا ټول خوشحاله نه دي؟ ولې ځیني خلک خوشحاله دي او ځیني نور بیا خوشحاله نه دي؟

۵. زده کوونکو ته و وایاست چې دویم انځور ته وګوري. له هغوی څخه وغواړئ چې په انځور کې څه شی ویني؟ هغه سپین ږیری سړی څه احساس کوي؟ ستاسو په نظر ولې یوه ماشوم غوښتل له هغه سره مرسته وکړي، او بل ماشوم روان و او هغه ته یې هیڅ پام و نه کړ؟ ستاسو په نظر کله چې هغه ماشوم غواړي له سپین ږیري سړي سره مرسته وکړي، نو سپین ږیری سړی به څه احساس وکړي؟

۶. له زده کوونکو پوښتنه وکړئ چې که تاسو کومه ورځ له ښوونځي څخه ناوخته کور ته ورسیږئ. نو مور او پلار به مو وارخطا او په غوسه وي. ستاسو په نظر هغوی به ولې وارخطا او په غوسه وي؟

۷. ښوونکی زده کوونکو ته څرګندوي چې د یوه کار یا حالت په اړه خلک کېدای شي ډول ډول احساسات ولري. د دې په خاطر چې یو له بل سره د یوه کار یا حالت په اړه خبرې وکړو. مهمه ده چې لومړی پوه شو هغه کس د دې کار یا حالت په اړه څه احساس لري؟


غوږنیول او خبرې کول
د نوښتي لیکنې متن بشپړول
نوښتي لیکنه
موږ باید د خلکو پر احساساتو خلونه پوه کړو.
تېره ورځ چې زه ناوخته کور ته ورسېدم،
مور مې ډېره وارخطا وه
پېښه
فکر
ستونزې
لوري
د لومړي او دویم متن بیا لوستل
۷۷

### ۲. نوښتي لیکنه (۱۵ دقیقې)

۱. ښوونکی زده کوونکو ته وايي چې هغوی به اوس د خلکو احساساتو ته د ځواب ویلو په اړه یوه متن ولیکي.

۲. ښوونکی زده کوونکو ته وايي چې د درسي کتاب جملې او د چوکاټ کلمې په یوازې توګه ولولي.

۳. ښوونکی زده کوونکو ته وايي چې د تمرین په کتابونو کې د چوکاټ د کلمو په کارولو سره په تشو ځایونو کې په یوازې توګه جملې جوړې کړي او نیمګړی متن دې بشپړ کړي.

۴. ښوونکی په ټولګي کې ګرځي او هغو زده کوونکو ته چې ستونزې لري مرسته او لارښوونه کوي.

۵. ښوونکی له څو زده کوونکو غواړي چې خپل بشپړ کړي متنونه ټولګیوالو ته و وايي.

### ۳. د لومړي او دویم متن بیا لوستل (۱۰ دقیقې)

ښوونکی له دوو پړاوونو (لکه زده کوونکي یې په دوه کسیزه توګه لولي، زده کوونکي یې پخپله لولي)، څخه په ګټې اخیستنې سره لومړی او دوهم متن له زده کوونکو سره بیا لولي.

### تکرار او کورنۍ دنده (۵ دقیقې)

۱. **تکرار:** د یو حالت په اړه د بېلابېلا نظرونو او احساساتو بیانول.

۲. **کورنۍ دنده:** د لومړي او دوهم متن بیا لوستل. د نوښتي کیسې بشپړول او یو رسم ورزیاتول.

## فرعي موضوع: تکرار او دوامداره ارزونه

**د زده کړې موخې:**
۱- د صفتونو سم کارول.
۲- د امريه او ندايه نښې پر کارولو پوهېدل.
۳- کلمې ډلبندي کول.
٤- د مناسب لحن او فشار په کارولو او له٪ ۹۵ سموالي سره متنونه لوستل.
٥- له٪ ۸۰ سموالي سره د کلمو او جملو ليکل.
٦- د /ث/ د غږ او د (ث، س او ص) تورو لرونکو کلمو سم ليکل.

### ۱. کلمې (۱۰ دقيقې)

۱. ښوونکی د صفتونو مفهوم تکراروي.
۲. ښوونکی زده کوونکو ته وايي چې د درسي کتاب (الف) تمرين ترسره کړي.
۳. ښوونکی د (وال) د روستاړي کارول تکراروي.
٤. ښوونکی زده کوونکو ته وايي چې د درسي کتاب (ب) تمرين ترسره کړي.
٥. ښوونکی په کټګوريو کې د کلمو وېشل تکراروي.
٦. ښوونکی زده کوونکو ته وايي چې د درسي کتاب (ج) تمرين ترسره کړي.
۷. ښوونکی د زده کوونکو ځوابونه ګوري.
۸. ښوونکی د پرله پسې ارزونې په کتاب کې د ځينو زده کوونکو نومرې ثبتوي.

### ۲. د لومړي او دويم متن بيا لوستل (۱۰ دقيقې)

۱. ښوونکی زده کوونکو ته دوې دقيقې وخت ورکوي چې په دوه کسيزه توګه لومړی يا دوهم متن ولولي.
۲. ښوونکی د زده کوونکو له (۴) جوړو څخه غوښتنه کوي چې د ټولګي مخې ته راشي.
۳. ښوونکی هغوی ته وايي چې هره جوړه به د متن يوه برخه لولي. هغوی بايد متن په روانه توګه او د مناسب لحن او حرکاتو په کارولو سره ولولي چې ټکی او د پوښتنې نښې منعکسې کړي.
٤. ښوونکی نورو زده کوونکو ته وايي چې ورو ورو متن له لوستونکي سره ولولي او ښه غوږ ونيسي.
٥. کله چې اته(۸) زده کوونکي په لوستلو بوخت وي، ښوونکی د هغوی د لوستلو د څرنګوالي کتنه کوي او خپله کتنه د پرله پسې ارزونې په کتاب کې ليکي. له هغه زده کوونکو سره چې په ښه توګه دا فعاليت ترسره نه کړي، بايد بله اونۍ مرسته وشي.

### ۳. املا (۱۵ دقيقې)

۱. ښوونکی زده کوونکو ته وايي چې هغوی به يو څو کلمې او جملې وليکي.
۲. ښوونکی زده کوونکو ته د درسي کتابونو د ترلو او د تمرين کتابونو د پرانيستلو څخه وايي.



۳. ښوونکی لومړی کلمه په کراره وايي او څلور(۴)ځلې يې تکراروي. کلمه دا ده: د (**ثواب**) کلمه زده کوونکي ليکي.
۴. ښوونکی همدغه کار د لاندې اتو(۸) کلمو لپاره هم ترسره کوي:
**۱-پسرلی۲-لاس۳-سيند۴-کثافات۵-وارث۶-صفا۷-نصير۸-اخلاص**
۵. ښوونکی لومړی جمله په کراره لولي او (۴) ځلې يې په کراره کراره تکراروي.
**جمله داده: ۱- وراث د اثر په کار کې برخه واخيسته.**
۶. ښوونکی همدا کار د لاندې (۳) جملو لپاره هم ترسره کوي.
**۱- په پسرلي کې هوا پاکه او تازه وي.**
**۲- کثافات بايد په ټاکلي ځای کې واچوو.**
**۳- موږ خپل ښار پاک او صفا ساتو.**
۷. ښوونکی زده کوونکو ته وايي چې خپلې د تمرين کتابچې د ليدلو لپاره راوړي. ښوونکی د هغو املا ګوري او نومرې ورکوي.
۸. ښوونکی د زده کوونکو نومرې د پرله پسې ارزونې په کتاب کې ثبتوي.

### تکرار او کورنۍ دنده (۵ دقيقې)

۱. **تکرار:** هغه څه تکرارول چې زده کوونکو په دې اونۍ کې زده کړي دي.
۲. **کورنۍ دنده:** ښوونکی زده کوونکو ته وايي چې په کورونو کې د درسونو د هغو برخو بيا ليکل او لوستل دې ترسره کړي چې د اونۍ په جريان کې يې ورسره ستونزې لرلې.

د حسن خط فعاليت، ارزونه او کورنۍ دنده (۴۰ دقيقې)

فرعي موضوع: په خپل ځان باور    توري: ت، ط

**د زده کړې موخې:**

۱. د(ت او ط) د غږونو لرونکو تورو د کلمو سم لیکل.
۲. د انځور، سرلیک، مهمو کلمو او د مخکینۍ پوهې څخه په ګټې اخیستنې سره داوړاندوینه وکړي چې کیسه یا متن به د څه په اړه وي.
۳. د لوستلو پر مهال تم کېدل او فکر کول.
۴. یو لوستل شوی متن په لنډو ټکو کې بیانول.

### ۱. توري او کلمې (۱۰ دقیقې)

۱. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې (ت) او (ط) سره ورته غږونه لري.
۲. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې ځینې کلمې د (ت) توری او ځینې نورې د (ط) توری لري.
۳. ښوونکی لاندینۍ کلمې پر تختې لیکي: **توریالی، مطالعه** ښوونکی له زده کوونکو څخه غوښتنه کوي چې کلمې په لوړ غږ ولولي.
٤. ښوونکی له زده کوونکو څخه غوښتنه کوي چې په کلمو کې د (ت) او (ط) تورو ته ګوته ونیسي، او غږ یې وایي.
٥. ښوونکی زده کوونکي د درسي کتاب لوستلو ته رابولي. ښوونکی کلمې په داسې حال کې زده کوونکو ته لولي چې هغوی خپلې ګوتې پر کلمو تېروي. بیا زده کوونکي هغه کلمې په دوه کسیزه توګه لولي.
٦. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې د تمرین په کتابونو کې د کلمو لیکل تمرین کړي.
٧. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې هغوی باید د دغو کلمو لیکل هر ورځ په کور کې په خپلو کتابچو کې تمرین کړي.

### ۲. د لومړي متن لوستل (۲۵ دقیقې)

**له لوستلو څخه مخکې**

۱. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې سرلیک او انځور ته وګوري او وړاندوینه وکړي چې متن به د څه په اړه وي. (په خپلو کې شریکول او بیا له ټولګیوالو سره شریکول)
۲. ښوونکی درې کلیدي کلمې له زده کوونکو سره معنا او په جملو کې یې استعمالوي.

**د لوستلو پر مهال**

۲. ښوونکی تمثیل کوي، ښوونکی او زده کوونکي لوست په ګډه لولي، زده کوونکي یې په دوه کسیزه توګه لولي.
۳. ښوونکی زده کوونکو ته ښيي چې څنګه کولای شي د مفهوم اخیستنې لپاره د بیا لوستلو له ستراتیژۍ څخه ګټه واخلي (د تفصیلي لارښوونو لپاره د لومړۍ برخې عمومي کتنه وګورئ).

**له لوستلو څخه وروسته**

۱. ښوونکی له زده کوونکو څخه پوښتنه کوي چې ایا د کیسې په اړه یې وړاندوینه سمه ده؟ هو یا نه.
۲. ښوونکی له زده کوونکو څخه لاندې پوښتنې کوي.


۱۴
توري او کلمې
ت: توریالی، تلاوت، ساتنه، ساعت، ترانه
ط: طالب، مطالعه، ضابط، خیاط
باور، خپ، اندېښنه
په خپل ځان باور
جاوېد نوی په لومړي ټولګي کې شامل شو. د دوی د کور او ښوونځي ترمنځ لاره کږه وږه وه. هغه خپه و چې ښوونځي ته به څنګه ځي. د جاوېد پلار صابر هغه په غېږ کې ونیوه.
ورته یې وویل: زویه! اندېښنه مه کوه. ورور به دې ښوونځي ته بیایي. جاوېد د پلار په خبره خوشحاله شو.
صابر خپل مشر زوی ته وویل: جاوېد ښوونځي ته بیایه او راوله یې. څو ورځې تېرې شوې. جاوېد پر لاره بلد شو او پر ځان یې باور پیدا شو. هغه خپل مشر ورور ته وویل: ښه وروره! زه نور په خپله ښوونځي ته تلای شم.
۷۶

**- پوښتنه: جاوېد ولې خپه و؟**
**ځواب: د دې لپاره چې ښوونځي ته به څنګه ځي.**
**- پوښتنه: پلاریې له خپل زوی سره څه مرسته وکړه؟**
**ځواب: له مشر زوی څخه یې وغوښتل چې، ورور به دې ښوونځي ته بیایي او بېرته به یې راولي.**
**-پوښتنه: څه سبب شو، چې هغه اوس ښوونځي ته یوازې ځي؟**
**ځواب: بلد شو او پرځان یې باور پیدا شو.**
**- پوښتنه: تاسې چې کله ښوونځي ته ځئ، څه احساس لرئ؟**
**ځواب: د خوښۍ او خوشحالۍ احساس کوو.**

۳. یو متن په لنډو ټکو کې بیانوي (تفصیلي لارښوونو لپاره د دریمې برخې عمومي کتنه وګورئ).(د متن اصلي مفهوم: **جاوېد په لومړي ټولګي کې شامل شو، خپه و چې ښوونځي ته به څنګه ځي، پلاریې په غېږکې ونیو ورته یې وویل: ورور به دې ښوونځي ته بیایي د ورځو په تېرېدو سره د جاوېد پرځان باور پیدا شو. نور خپله ښوونځي تلو.**

### تکرار او کورنۍ دنده (۵ دقیقې)

۱. **تکرار:** ښوونکی له زده کوونکو سره د(ت او ط) غږ لرونکې ځینې کلمې تکراروي.
۲. **کورنۍ دنده:** زده کوونکي توري او کلمې د تمرین کتابونو کې لیکي. هغوی په کور کې د لومړي متن د بیالوستلو تمرین کوي.

## فرعي موضوع: په خپل ځان باور

**د زده کړې موخې:**

۱. له نومونو سره د سمو مؤنثو او مذکرو صفتونو کارول.
۲. د تېرې زماني کارول.
۳. د متن له سياق او سباق څخه په ګټې اخيستنې سره د کلمو معنا اخيستل.
۴. له مناسب لحن او حرکاتو څخه په ګټې اخيستنې او له ۹۵٪ سموالي سره متن لوستل.

### ۱. کلمې او جملې (۱۰ دقيقې)

۱. ښوونکی له زده کوونکو څخه پوښتنه کوي چې ايا هغه کلمې اوس هم په ياد لري چې يو هلک يا نجلۍ تعريفوي. ښوونکی له زده کوونکو څخه د يو څو بېلګو د وړاندې کولو غوښتنه کوي.
۲. ښوونکی زده کوونکو ته وايي چې خپلو درسي کتابونو ته ځير شي. هغوی د خلکو انځورونه ويني. هغوی د کلمو يو لست هم ويني چې هغوی يې بايد د خلکو تعريفولو لپاره وکاروي. ښوونکی لومړۍ بېلګه له زده کوونکو سره يوځای ترسره کوي. بيا زده کوونکي په دوه کسيزه توګه کار ته ادامه ورکوي.
۳. کله چې زده کوونکي په کار بوخت وي، ښوونکی په ټولګي کې ګرځي او له هغو زده کوونکو سره مرسته کوي چې ستونزې لري.
۴. ښوونکی د زده کوونکو ځوابونه ګوري.
۵. ښوونکی د پرله پسې ارزونې په کتاب کې د ځينو زده کوونکو نومرې ثبتوي.
۶. ښوونکی زده کوونکو ته وايي چې خپلو درسي کتابونو ته ځير شي. په کتاب کې دوه بکسونه ورکړل شوي چې د عملي کلمې (فعلونه) لري. په لومړي بکس کې ورکړل شوي د عمل کلمې (فعلونه) هغه کلمې دي چې په ډاګه کوي چې يو کار همدا اوس ترسره کېږي. په دويم بکس کې ورکړل شوي د عمل کلمې (فعلونه) هغه کلمې دي چې په ډاګه کوي چې يو کار پرون يا ډېر مخکې ترسره شوی دی.
۷. ښوونکی زده کوونکو ته وايي چې هغوی بايد د لومړي بکس د عمل کلمې (فعلونه) د دويم بکس له کلمو سره پرتله کړي.
۸. ښوونکی لومړی دوه د عمل کلمې (فعلونه) له زده کوونکو سره تمرين کوي.
۹. ښوونکی زده کوونکو ته وايي چې په دوه کسيزه شکل کار وکړي او تمرين بشپړ کړي.
۱۰. ښوونکی له هغو زده کوونکو سره مرسته کوي چې ستونزې لري.
۱۱. لږ وخت وروسته، ښوونکی د زده کوونکو ځوابونه ګوري.
۱۲. ښوونکی د دوامداره ارزونې کتاب کې د ځينو زده کوونکو نومرې ثبتوي.

### ۳. د لغتونو زېرمه (۱۵ دقيقې)

۱. ښوونکی زده کوونکو ته وايي چې په ځير سره جملې ولولي او د کلمو د معنا د پيدا کولو لپاره تمرين وکړي.
۲. ښوونکی زده کوونکو ته وايي چې خپلو درسي کتابونو ته ځير شي. هغوی شپږ(٦) جملې ويني. بايد په چوکاټ کې هغه کلمې ولټوي چې په جملو کې له ورکړل شويو کلمو سره مطابقت لري او ترې لاندې خطونه کښل شوي، ښوونکی لومړۍ دوه جملې له زده کوونکو سره ترسره کوي.
۳. ښوونکی زده کوونکو ته وايي چې پاتې جملې دې په دوه کسيزه توګه ترسره کړي. چټک زده کوونکي کولای شي همدې تمرين ته په خپل د تمرين کتاب کې هم ادامه ورکړي.
۴. کله چې زده کوونکي په کار کې بوخت وي، ښوونکی په ټولګي کې ګرځي او له هغو زده کوونکو سره مرسته کوي چې ستونزې لري.
لږ وخت وروسته، ښوونکی د زده کوونکو ځوابونه ګوري.
ښوونکی د پرله پسې ارزونې کتاب کې د ځينو زده کوونکو نومرې ثبتوي.



### ۴. د لومړي متن بيا لوستل (۱۰ دقيقې)

۱. د خلور پراوونو څخه په ګټې اخيستنې سره ښوونکی تمثيلوي، ښوونکی او زده کوونکي په ګډه لولي، يعنې زده کوونکي په دوه کسيزه توګه لولي او زده کوونکي يې پخپله لولي، په کارولو سره دوهم متن له زده کوونکو سره بيا لولي.

### تکرار او کورنۍ دنده (۵ دقيقې)

۱. **تکرار:** د مفردو او جمع نومونو تکرار.
۲. **کورنۍ دنده:** ښوونکی زده کوونکو ته وايي چې د کلمو او جملو تمرين په کورونو کې په خپلو کتابچو کې ترسره کړي او لومړی متن بيا ولولي او د املا د تمرين لپاره د کلمو تمرين ترسره کړي.

**فرعي موضوع: پاکه هوا توري: ث،س،ص**

## د زده کړې موخې
۱. د /ث/، /س/ او /ص/ غږونو او د دې تورو لرونکو کلمو سم لیکل.
۲. د انځور، سرلیک، مهمو کلمو او د مخکینۍ پوهې څخه په ګټې اخیستنې سره دا وړاندوینه وکړي چې کیسه یا متن به د څه په اړه وي.
۳. د مفهوم اخیستنې لپاره بیا لوستل.
۴. متن په لنډو ټکو کې بیانول.

## ۱. توري او کلمې (۱۰ دقیقې)
۱. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې د(ث)،(س) او (ص) توري سره ورته غږ لري.
۲. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې په دې اونۍ کې به هغوی د (ث، س، ص) تورو تمرین کوي.
۳. ښوونکی زده کوونکي د درسي کتاب لوستلو ته رابولي. ښوونکی کلمې په داسې حال کې زده کوونکو ته لولي چې هغوی خپلې ګوتې پر کلمو تېروي. بیا زده کوونکي هغه کلمې په دوه کسیزه توګه لولي.
۴. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې د تمرین په کتابونو کې د کلمو لیکل تمرین کړي.
۵. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې باید د دغو کلمو لیکل هر ورځ په کور کې تمرین کړي.
۶. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې هغوی به د اونۍ په پای کې د دې کلمو په اړه املا ولري.

## د دویم متن لوستل (۲۵ دقیقې)

**له لوستلو څخه مخکې**
۱. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې سرلیک او انځور ته وګوري او وړاندوینه وکړي چې متن به د څه په اړه وي، مرسته کوي.(په خپلو کې شریکول، له ټولګیوالو سره شریکول).
۲. ښوونکی درې کلیدي کلمې له زده کوونکو سره معنا او په جملو کې یې استعمالوي.

**د لوستلو پر مهال**
۱. ښوونکی تمثیل کوي، د ښوونکی او زده کوونکي یې په ګډه لولي، زده کوونکي په دوه کسیزه توګه لوستل کوي.
۲. ښوونکی زده کوونکو ته ښیي چې ځنګه کولای شي د مفهوم اخیستنې لپاره د بیا لوستلو له ستراتیژۍ څخه ګټه واخلي. (د تفصیلي لارښوونو لپاره د لومړۍ برخې عمومي کتنه وګورئ).

**له لوستلو څخه وروسته**
۱. ښوونکی له زده کوونکو څخه پوښتنه کوي چې د کیسې په اړه یې وړاندوینه سمه ده؟ هو یا نه.
۲. ښوونکی له زده کوونکو څخه لاندې پوښتنې کوي.
- **پوښتنه: ککړه هوا زموږ روغتیا ته څه زیان رسوي؟**


توري او کلمې
| ث | وارث | کثافات | ثور |
| --- | --- | --- | --- |
| س | درس | سهار | انسان |
| ص | خالص | بصیره | صابر |

ککړتیا غوځ پاکلې

پاکه هوا
څنګه د هوا د ککړتیا مخه نیولای شو؟
هر څوک پاکې هوا ته اړتیا لري
ککړه هوا انسان ناروغه کوي
زموږ په هېواد کې ډېرو کسانو
ښکلي ځنګلونه غوځ کړل. د هوا
صفایي ته یې زیان ورساوه.
ګرانو زده کوونکو! د دې لپاره چې
په پاکه هوا کې ژوند وکړو، نو باید
- ګلان او بوټي وکرو.
- ونې کېنوو او ښکلي باغونه جوړ کړو. د ونو او ګلانو ښه ساتنه وکړو. پلاستیکي او ربړي شیان ونه سوځوو.
- کثافات په ټاکلي ځای کې واچوو.
- شي ونې، ځنګلونه او بوټي پرې نه کړو. تر راتلونکې پورې (...) ته پام وکړو. د خپلې روغتیا لپاره د هوا د ککړتیا مخه ونیسو.

**ځواب: ککړه هوا انسان ناروغه کوي.**
**- پوښتنه: د دې لپاره چې په پاکه هوا کې ژوند وکړو نو څه باید تر سره کړو؟**
**ځواب: ګلان او بوټي وکرو، ونې کېنوو او ښکلي باغونه جوړ رو، کثافات په ټاکلي ځای کې واچوو.**
**- پوښتنه: څنګه هوا پاکه ساتلای شو؟**
**ځواب: باید ګلان، او بوټي وکرو، کثافات په ټاکلي ځای کې واچوو.**
**- پوښتنه: کله چې په پاکه هوا کې ژوند کوی، څه احساس لرئ؟**
**ځواب: د خوښۍ او خوشحالۍ احساس کوو.**
۳. ښوونکی له زده کوونکو سره په ګډه یو متن په لنډو ټکو کې بیانوي (تفصیلي لارښوونو لپاره د دریمې برخې عمومي کتنه وګورئ).(د متن اصلي مفهوم: **څنګلونه هوا پاکوي د پاکې هوا لپاره ګلان او بوټي وکرو تر څو ښه روغتیا ولرو.**
۴. ښوونکی د پرله پسې ارزونې په کتاب کې د اتو( ۸) زده کوونکو نومرې ثبتوي.

## تکرار او کورنۍ دنده (۵ دقیقې)
۱. **تکرار:** ښوونکی له زده کوونکو سره د /ث/، /س/ او /ص/ غږونو او تورو درلودونکې ځینې کلمې تکراروي.
۲. **کورنۍ دنده:** زده کوونکي توري او کلمې په کورونو کې په خپلو کتابچو کې لیکي. زده کوونکي د لومړي متن بیا لوستل په کور کې تمرین کوي.

## فرعي موضوع: پاکه هوا

**د زده کړې موخې**

۱- د مؤنثو او مذکرو نومونو او صفتونو کارول.
۲- د امریه او ندایه نښو پر کارولو پوهېدل.
۳- کلمې په درېیو ډلو کې وېشل.
٤- له مناسب لحن او حرکاتو څخه په ګټه اخیستنې او له٪ ۹۵سموالي سره متنونه لوستل.

### ۱. کلمې (۱۰ دقیقې)

۱. ښوونکی له زده کوونکو څخه پوښتنه کوي چې آیا هغوی اوس هم هغه کلمې په یاد لري چې هلکان یا نجونې یې تعریفوي. ښوونکی له زده کوونکو څخه د یو څو بېلګو د وراندې کولو غوښتنه کوي.

۲. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې خپل درسي کتابونو ته ځیر شي. هغوی د خلکو او ځارویو انځورونهویني. هغوی د کلمو یوه لست هم ویني چې د خلکو او ځارویو د تشریح کولو لپاره یې کاروي. ښوونکی لومړۍ بېلګه له زده کوونکو سره په ګډه ترسره کوي. بیا زده کوونکي په دوه کسیزه توګه په ګډه سره کار ته ادامه ورکوي.

۳. کله چې زده کوونکي په کار بوخت وي، ښوونکی په ټولګي کې ګرځي او له هغو زده کوونکو سره مرسته کوي چې ستونزې لري.

٤. ښوونکی د زده کوونکو ځوابونه ګوري. او د پرله پسې ارزونې په کتاب کې د ځینو زده کوونکو نومرې ثبتوي.

۵. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې هغوی به له مثبت امر او منفي امر سره د ندایه نښې (!) کارول زده کړي.

٦. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې خپل درسي کتاب ته ځیر شي . هلته پنځه( ۵ ) جملې ورکړل شوې دي چې باید په منفي او مثبت امریه ؤ کې ووېشل شي.

۷. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې په دوه کسیزه توګه کار وکړي تر څو ټولې جملې بشپړې کړي.

۸. ښوونکی له هغو زده کوونکو سره مرسته کوي چې ستونزې لري.

۹. له لږ وخت وروسته، ښوونکی د زده کوونکو ځوابونه ګوري.

۱۰. ښوونکی د ځینو زده کوونکو نومرې د پرله پسې ارزونې په کتاب کې ثبتوي.



### ۳. د لغتونو زېرمه (۱۵ دقیقې)

۱. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې هغوی به نن یو ځل بیا د ډلبندي کولو تمرین وکړي. ښوونکی زده کوونکو ته وایي خپل درسي کتابونو ته ځیر شي. هغوی دولس(۱۲)کلمې ویني چې درې ( ۳ ) بېلابېلو کټګوریو پورې تړاو لري.

۲. ښوونکی لومړۍ دوه کلمې له زده کوونکو سره یوځای ترسره کوي. بیا زده کوونکي په دوه کسیزه توګه کار ته ادامه ورکوي.

۳. کله چې زده کوونکي په کار بوخت وي.

٤. ښوونکی په ټولګي کې ګرځي او له هغو زده کوونکو سره مرسته کوي چې ستونزې لري. له لږ وخت وروسته، ښوونکی د زده کوونکو ځوابونه ګوري.

### د دویم متن بیا لوستل (۱۰ دقیقې)

د څلورو پړاوونو یعنې ښوونکی تمثیلوي، ښوونکی او زده کوونکي یې په ګډه لولي، یعنې زده کوونکي یې په دوه کسیزه توګه لولي او زده کوونکي یې پخپله لولي، په کارولو سره دوهم متن له زده کوونکو سره بیا لوستل.

### تکرار او کورنۍ دنده (۵ دقیقې)

۱. **تکرار:** ښوونکی ملکي ضمایر تکراروي.
۲. **کورنۍ دنده:** ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې د کلمو تمرین په کورونو کې په خپلو کتابچو کې ترسره کړي او متن بیا ولولي او د املا د تمرین لپاره د کلمو تمرین ترسره کړي.

د حسن خط فعالیت، ارزونه او کورنۍ دنده (۴۰ دقیقې )

## فرعي موضوعګانې: په خپل ځان باور او پاکه هوا

**د زده کړې موخې:**

۱- دا درک کول چې خلک د یوه کار یا حالت په اړه په یوه حالت کې بېلابېل احساسات او غبرګونونه درلودلای شي.

۲- د نوښتي لیکنې د متن بشپړول.

۳- له مناسب لحن او حرکاتو او٪ ۹۵ سموالي سره د متنونو لوستل.

### ۱. غوږنیول او خبرې کول (۱۰ دقیقې)

۱. ښوونکی تشریح کوي چې ځینې وخت کېدای شي تاسو د یوه کار یا حالت په اړه یو ډول احساس ولرئ، خو نور خلک د هغه په اړه کېدای شي بل ډول احساس ولري. ښوونکی وايي چې په دې لوست کې به هغه تمرین ترسره کړو چې خلک د یوه کار یا حال په اړه ډول ډول نظرونه او ځوابونه وايي.

۲. زده کوونکو ته و وایاست چې د درسي کتاب انځورونو ته وګوري. له هغوی څخه پوښتنه وکړئ چې په انځورونو کې څه شی وینئ؟ د کار یا حالت په اړه بحث وکړئ. په انځور کې زده کوونکي څه احساس کوي؟ آیا دوی د هغه کار یا حالت په اړه یو ډول احساس لري، که د دوی احساس سره توپیر لري؟ د دوی احساسات یو له بل سره څه ډول توپیر لري؟ او ولې.

۳. زده کوونکو ته و وایاست چې د تمرین کتابونو ته وګوري. دوی په دې انځورونو کې څو زده کوونکي ویني. زده کوونکو ته اجازه ورکړئ د انځور د حالت او د ماشومانو د احساساتو په اړه یو له بل سره بحث وکړي.

۴. زده کوونکو ته و وایاست چې په( ۳-۵ )کسیزه ډلو کې کار وکړي او د تمرین د انځورونو په اړه تمثیل ترسره کړي. په تمثیل کې زده کوونکي په بده هوا کې یو ځای کورته ځي. دوی د دې بدې هوا په اړه ډول ډول عکس العملونه او چلند له ځانه ښیي. ځیني یې د کور خوا ته منډې وهي، ځیني یې غواړي د ونې لاندې ودرېږي، خو ځیني نور یې بیا په عادي شکل په لاره روان دي. دوی باید دغې ستونزې ته چې د دوی احساسات تر اغیز لاندې راولي په سمه توګه ځواب و وایي او مثبت ټولنیز مهارتونه تمرین کړي.

۵. زده کوونکو ته و وایاست چې تمثیل ته چمتوالي ونیسي او په تمثیل کې په احساساتو تمرکز وکړي.

٦. له زده کوونکو وغواړئ چې د وخت د شتون په صورت کې څو ډلې د ټولګي په مخ کې تمثیل وکړي.

۷. زده کوونکو ته و وایاست چې موږ باید پر دې پوه شو چې د یوه کار یا حالت په اړه کېدای شي خلک ډول ډول نظرونه او ځوابونه ولري. کله چې موږ د کورنۍ له غړو یا له نورو خلکو سره د کارونو یا موضوعګانو په اړه بحث کوو یا یو ځای کار کوو، نو باید لومړی د کار یا موضوع په اړه د دوی پر نظر او احساس پوه شو او پر خپلو احساساتو باور ولرو.



### ۲. نوښتي لیکنه (۱۵ دقیقې)

۱. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې هغوی به اوس د یوه کار په اړه د خلکو د ډول ډول احساساتو په اړه یو متن ولیکي.

۲. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې د درسي کتاب جملې او د چوکاټ کلمې په یوازې توګه ولولي.

۳. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې د تمرین په کتابونو کې د چوکاټ د کلمو په کارولو سره په تشو ځایونو کې په یوازې توګه جملې جوړې کړي او نیمګړی متن دې بشپړ کړي.

۴. ښوونکی په ټولګي کې ګرځي او هغو زده کوونکو ته چې ستونزې لري مرسته او لارښوونه کوي.

۵. ښوونکی له څو زده کوونکو غواړي چې خپل بشپړ کړي متنونه ټولګیوالو ته و وایي.

### ۳. د لومړي او دویم متن بیا لوستل (۱۰ دقیقې)

ښوونکی له دوو پړاوونو (لکه زده کوونکي په دو کسیزه توګه لولي، زده کوونکي یې پخپله لولي)، څخه په ګټې اخیستنې سره لومړی او دوهم متن له زده کوونکو سره بیا لولي.

### تکرار او کورنۍ دنده (۵ دقیقې)

۱. **تکرار:** د یوه حالت یا کار په اړه بېلابېل احساسات او غبرګونونه بیانوي.

۲. **کورنۍ دنده:** د لومړي او دوهم متن بیا لوستل. د نوښتي کیسې بشپړول او یو رسم ورزیاتول.

## فرعي موضوع: تکرار او دوامداره ارزونه

**د زده کړې موخې:**

۱- له مؤنثو او مذکرو ضمایرو سره صفتونو ته مطابقت ورکول.
۲- امریه جملو ته د ندایه نښې (!) ورزیاتول.
۳- کلمې ډلبندي کول
٤- له٪ ۹۰ سمووالي سره متن لوستل.
٥- د مناسب لحن او فشار په کارولو او له٪ ۹۵ سمووالي سره متنونه لوستل.
٦- له٪ ۸۰ سمووالي سره د کلمو او جملو لیکل.

### ۱.کلمې او جملې(۱۰ دقیقې)

۱. ښوونکی د هلکانو او نجونو لپاره د نومونو او صفتونو مفهوم تکراروي.
۲. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې د درسي کتاب (الف) تمرین ترسره کړي.
۳. ښوونکی د امریه او ندایه نښې کارول تکراروي.
٤. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې د درسي کتاب (ب) تمرین ترسره کړي.
٥. ښوونکی په کټګوریو کې د کلمو وېشل تکراروي.
٦. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې د درسي کتاب (ج) تمرین ترسره کړي.
٧. ښوونکی د زده کوونکو ځوابونه ګوري.
٨. ښوونکی د پرله پسې ارزونې په کتاب کې د ځینو زده کوونکو نومرې ثبتوي.

### ۲. د لومړي او دویم متن بیا لوستل (۱۰ دقیقې)

۱. ښوونکی زده کوونکو ته دوې دقیقې وخت ورکوي چې په دوکسیزه توګه لومړی یا دوهم متن ژر ژر ولولي.
۲. ښوونکی د زده کوونکو له څلورو(۴) جوړو څخه غوښتنه کوي چې د ټولګي مخې ته راشي.
۳. ښوونکی هغوی ته وایي چې هره جوړه به د متن یوه برخه لولي. هغوی باید متن په روانۍ سره او د مناسب لحن او حرکاتو په کارولو سره ولولي چې ټکې او د پوښتنې نښې منعکس کړي.
٤. ښوونکی نورو زده کوونکو ته وایي چې متن ورو ورو له لوستونکي سره ولولي او ښه غوږ ونیسي. کله چې اته( ۸ ) زده کوونکي په لوستلو بوخت وي، ښوونکی د هغوی د لوستلو څرنګوالي کتنه کوي او خپله کتنه د پرله پسې ارزونې په کتاب کې لیکي. له هغو زده کوونکو سره چې په ښه توګه دا فعالیت ترسره نه کړي، باید بله اونۍ مرسته وشي.



### ۳. املا (۱۵ دقیقې)

۱. ښوونکی زده کوونکوته وایي چې هغوی به یوڅو کلمې او جملې ولیکي.
۲. ښوونکی زده کوونکو ته د درسي کتابونو د تړلو او د تمرین دکتابونو له پرانیستلو وایي.
۳. ښوونکی لومړی کلمه په کراره وایي او څلور (۴)ځلې یې تکراروي. کلمه دا ده: (**توريالی**) زده کوونکي کلمې لیکي.
٤. ښوونکی همدا کار د لاندې لسو کلمو لپاره هم تکرار وي.

**۱- اختر ۲- ساعت ۳- مطلب ۴- ضابط ۵- سهار ٦- انسان ۷- ثور ۸- کثافات ۹- صابر ۱۰- خالص**

۴. ښوونکی لومړی جمله په کراره لولي او څلور ځلې یې په کرار کرارده تکراروي.
جمله دا ده:۱. **تورياڵي په لومړي ټولګي کې دی.**
٥.ښوونکی همدا کار د لاندې ۳ جملو لپاره هم ترسره کوي.

**۲. پاکه هوا انسان روغ ساتي.**
**۳. حارث کثافات بې ځایه نه اچوي.**
**۴. زه په ښوونځي کې درس لولم.**

٦. ښوونکي زده کوونکو ته وایي چې خپلې د تمرین کتابچې د لیدلو لپاره راوړي.
۷.ښوونکي د هغو املا ګوري او نومرې ورکوي.
۸. ښوونکی د زده کوونکو نومرې د پرله پسې په ارزونې کتاب کې ثبتوي.

### تکرار او کورنۍ دنده (۵ دقیقې)

۱ . **تکرار:** هغه څه تکرارول چې زده کوونکو په دې اونۍ کې زده کړي دي.
۲. **کورنۍ دنده:** ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې په کورونو کې د درسونو د هغو برخو بیا لیکل او لوستل دې ترسره کړي چې د اونۍ په جریان کې یې ورسره ستونزې لرلې.

د حسن خط فعالیت، ارزونه او کورنۍ دنده (۴۰ دقیقې)

## د پنځمې برخې عمومي کتنه: اصلي موضوع: روغتیا

**د زده کړې موخې:**
زده کوونکي به د دې برخې تر پایه دا وړتیا ولري چې:
۱. د کلمو د تجزیې کولو لپاره د مورفیمونو پوهې څخه کته واخلي.
۲. له فعل سره ضمایر سم وکاروي (د فعل د توګه او صورت پېژندنه)
۳. شارحه (:) او کامه (،) وکاروي
٤. د متن له سیاق او سباق څخه په ګټې اخیستنې سره به د کلمو معنا درک کړي.
۵. د مهمو کلمو په معنا به پوه شي او د غه کلمې به په خبرو یا لیکلو کې وکاروي.
٦. مترادفو کلمو پېژندنه به پیل کړي.
۷. د انځور، سرلیک، مهمو کلمو او د مخکینۍ پوهې څخه په ګټې اخیستنې سره به دا وړاندوینه وکړي چې یو روایتي (غیر حقیقي) متن به د څه په اړه وي.
۸. د یو متن د لوستلو پر مهال د پوهې د روښانه کولو لپاره تم شي او فکر به وکړي.
۹. د لوستلو شویو کیسو یا معلوماتو په اړه پایلې استنباط کړي.
۱۰. له مناسب لحن، حرکاتو او له٪ ۹۵ سموالي سره د دې برخې متنونه ولولي.
۱۱. د ژوندانه له تجربو سره د یوې کیسې پېښو، کرکټرونو او عملونو ته ربط ورکول.
۱۲. له٪ ۸۰ سموالي سره د لوستلو پوښتنې ځواب کړي.
۱۳. په سم ډول د /ز/ غږ او د ز او ذ توررو لرونکي کلمې ولیکي.
۱٤. له٪ ۸۰ درستوالي سره کلمې او جملې ولیکي.
۱۵. یوه کیسه ولیکي چې پیل، منځ او پای ولري.
۱٦. زده کوونکي به په نسخ خط سره امریه جملې د کرسۍ خط پر مخ په صحیح او ښکلې بڼه ولیکلای شي.

**د حسن خط فعالیت (۳۵دقیقې)**


ښوونکي دې د لارښود د مقدمې د (۲۲- ۲۳) مخونو د لارښوونو سره سم امریه جملې تدریس کړي.

**د حسن خط ارزونه او کورنۍ دنده(۵ دقیقې)**
۱- له څو زده کوونکو څخه د کلمو د شایسته لیکلو په اړه پوښتنه وکړي.
۲- زده کوونکي دې له کړکې یا پنسل قلم سره امریه جملې په کورونو کې تمرین کړي.

**د ټولنیزې اوعاطفي زده کړې موخې:**
زده کوونکي به د دې برخې تر پایه د دې وړتیا ولري چې:
د ملګرتیاوو او له خلکو سره د تعلق او ملاتړ د احساساتو د درلودلو په برخه کې به د دغو ملګرتیاوو د مرستې او خرنګوالي پر ارزښت پوه شي. له نورو سره په ګډه د کار کولو او همدا راز په یوه ټیم کې د کار کولو وړتیا پیدا کړي. د ځورونکو/ملنډې وهونکو عادتونو/کړو وړو په ګوته به پوه او پر وړاندې به یې غبرګون وښیي.
**د لوست پیل (۵دقیقې):** د لوست د پیل ټول مقدماتي فعالیتونه دې ترسره شي.

## د دې برخې ځانګړې فعالیتونه

**۱. توري، کلمې او جملې (۱۰ دقیقې)**
۲. ښوونکی په تخته د دوو بېلګو په لیکلو سره درس پیلوي( عزیزه هره ورځ ښوونځي ته ځي) او (هغه هر ورځ ښوونځي ته ځي) ښوونکی تشریح کوي چې د (عزیزې) پرځای ( هغه) هم لیکل کېدای شي.
۳. ښوونکی پر تخته باندې لیکلو سره یوه بله بېلګه هم وړاندې کوي: (عزیزه او اناهیتا هره ورځ ښوونځي ته ځي) او (هغوی هره ورځ ښوونځي ته ځي) ښوونکی تشریح کوي چې د عزیزې او اناهیتا پر ځای هغوی هم لیکل کېدای شي. ښوونکی روښانه کوي چې (هغه) او (هغوی) دواړه شخصي ضمایر دي او دا چې دا ضمایر د اشخاصو یا شیانونو د نومونو پر ځای کارول کېږي.
٤. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې خپلو درسي کتابونو ته ځیر شي. پنځه جملې او یو چوکاټ ورکړل شوی دی. ښوونکی له زده کوونکو سره له چوکاټ څخه د سم شخصي ضمیر په اخیستلو او په لومړۍ جمله کې د تش ځای په ډکولو کې مرسته کوي. بیا زده کوونکي په ګډه سره کار کولو ته ادامه ورکوي. کله چې زده کوونکي په کار بوخت وي، ښوونکی په ټولګي کې ګرځي څو له هغو زده کوونکو سره مرسته وکړي چې ستونزې لري.
۵. ښوونکی له زده کوونکو څخه غوښتنه کوي چې و وایي هغوی په دې درس کې څه زده کړي دي. (ځواب: د اشاري ضمیر کارول).

**۲. د متن لوستل (۲۵ دقیقې)**
۱. له تنظیموونکي چوکاټ څخه په ګټې اخیستنې سره د پایلې لاس ته راوړل.
۲. له لوستلو څخه وړاندې تمرین په مخکینو لوستونو کې هم د پایلې لاس ته راوړلو یوه برخه وه.
۳. له لوستلو څخه وړاندې تمرین په اوږدوکې د تنظیم کوونکې چوکاټ یوه برخه ډکوي چې عنوان یې دی( زه پوهېږم)
٤. ښوونکی وایي: اوس چې مو متن ولوست، یوه پایله به ورځخه ترلاسه کړو. د دې لپاره تاسو له خپلې پخوانۍ پوهې او څه چې مو په متن کې ولوستل ګټه واخلئ. د دې کار د ترسره کولو او مرستې لپاره ستاسو د تمرین په کتاب کې تنظیم کوونکی چوکاټ شته او تاسو په کې ( زه پوهېږم) برخه ډکه کړې ده.
۵. ښوونکی تنظیم کوونکی چوکاټ په تخته رسموي.
٦. ښوونکی له زده کوونکو سره یو ځای په چوکاټ کې د (ما زده کول) برخه لیکي.
۷. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې تاسو به په دې برخه کې له هغه څخه چې مخکې ورباندې پوهېدئ او څه چې مو په متن کې زده کړل یوه پایله لاس ته راوړئ.
۸. ښوونکی او زده کوونکي د لوست پایله په ورستۍ برخه کې لیکي.
۹. ښوونکی له زده کوونکو څخه پوښتنه کوي چې آیا هغوی کولی شي د متن لنډیز و وایي.

**فرعي موضوع: صحي خواړه** **توی: ز**

### د زده کړې موخې:

۱. د /ز/ غږ او /ز/ توري لرونکو کلمو سم ليکل.
د انځور، سرليک، مهمو کلمو او د مخکينۍ پوهې څخه په ګټې اخيستنې سره دا وړاندوينه وکړي چې کيسه يا متن به د څه په اړه وي.
۲. د لوستلو پر مهال تم کېدلو او فکر کولو څخه ګټه اخيستل.
۳. له کيسې نه پايله استنباط کول.

### ۱. توري او کلمې (۱۰ دقيقې)

۱. ښوونکی زده کوونکو ته وايي چې د(ز) او (ذ) توري سره ورته غږ لري. ځينې کلمې د(ز) توری او ځينې نور بيا د (ذ) توری لري.
۲. ښوونکی زده کوونکو ته وايي چې په دې اونۍ کې به د هغو کلمو تمرين کوي چې د (ز) توری پکې کارول کېږي.
۳. ښوونکی لاندينۍ کلمې پر تخته ليکي: **زمری، ګازره**
ښوونکی له زده کوونکو څخه غوښتنه کوي چې کلمه په لوړ غږ ولولي. ښوونکی له زده کوونکو څخه غوښتنه کوي چې په کلمو کې د (ز) توري ته ګوته ونيسي او غږ يې و وايي.
٤. ښوونکی زده کوونکي د درسي کتاب لوستلو ته رابولي. ښوونکی کلمې په داسې حال کې زده کوونکو ته لولي چې هغوی خپلې ګوتې پر کلمو تېروي. بيا زده کوونکي هغه کلمې په دوه کسيزه توګه لولي.
٥. ښوونکی زده کوونکو ته وايي چې د تمرين په کتابونو کې د کلمې ليکل تمرين کړي.
٦. ښوونکی زده کوونکو ته وايي چې هغوی بايد د دغو کلمو ليکل هر ورځ په کور کې تمرين کړي.
٧. ښوونکی زده کوونکو ته وايي چې هغوی به د اونۍ په پای کې د دې کلمو په اړه املا ولري.

### ۲. د لومړي متن لوستل (۲۵ دقيقې)

**لوستلو څخه مخکې**

۱. ښوونکی زده کوونکو ته وايي چې سرليک او انځور ته وګوري او وړاندوينه وکړي چې متن به د څه په اړه وي. (په خپلو کې شريکول، له ټولګيوالو سره شريکول.)
زده کوونکي بايد خپلو درسي کتابونو ته ځير شي، هغه څه چې د موضوع په اړه پوهېږي وليکي چې هغوی د موضوع په اړه مخکې په څه پوهېدل.
۲. ښوونکی درې کليدي کلمې له زده کوونکو سره معنا او په جملو کې يې استعمالوي.

**د لوستلو پر مهال**

۱. ښوونکی لوست په تمثيل سره لولي ښوونکی او زده کوونکي په ګډه لوستل کوي، زده کوونکي په دوه کسيزه توګه لوستل کوي.
۲. ښوونکی زده کوونکو ته ښيي چې څنګه کولای شي د تم کېدلو او فکر کولو ستراتيژۍ څخه ګټه واخلي.

**له لوستلو څخه وروسته**

۱. ښوونکی له زده کوونکو څخه پوښتنه کوي چې ايا د کيسې په اړه يې وړاندوينه سمه ده؟ هو/ نه.
۲. ښوونکی له زده کوونکو څخه لاندې پوښتنې کوي.



١٥

توري او کلمې

ز

| زمری | وزه | باز |
|---|---|---|
| ګازره | زړه | زرګه |
| ترموز | پیاز | بزګر |

کمزوری صحي مناسب

صحي خواړه

يوه ورځ زرمينې خپل زوی کلينيک ته يووړ.
د هغې زوی ډېر کمزوری او ډنګر و.
زرمينې ډاکټرې ته وويل: ډاکټرې صاحبې! دا زوی مې ډېر کمزوری دی او تل ژاړي. ډاکټرې زرمينې ته وويل:
خوري! دې ماشوم ته دې صحي او مناسب خواړه نه دي ورکړي.
زرمينې پوښتنه وکړه: صحي او مناسب خواړه کوم دي؟
ډاکټرې وويل: خوري! ښه پوښتنه دې وکړه.
صحي خواړه هغه دي چې پاک وي. بدن مو قوي کړي. له ناروغيو مو وساتي. ډاکټرې زياته کړه: مور بايد ډول ډول خواړه وخوري. لکه شيدې، هګۍ، ميوې، سابه، لوبيا، نخود، غوښه او داسې نور.
زرمينې وويل: خير يوسې! اوس پوه شوم.

- **پوښتنه: ډاکټر زرمينې ته څه وويل؟**
**ځواب: ماشوم ته دې صحي او مناسب خواړه نه دي ورکړي.**
- **پوښتنه: مور بايد کوم ډول خواړه وخورو؟**
**ځواب: مور بايد شيدې، هګۍ، ميوې، سابه، لوبيا، غوښه او داسې نور وخورو.**
- **پوښتنه: ولې بايد صحي خواړه وخورو؟**
**ځواب: زمونږ روغتيا ته ګټه رسوي او بدن مو غښتلی کوي.**
- **پوښتنه: څنګه صحي خواړه خوړلی شو؟**
**ځواب: پاکوالي ته يې پاملرنه وکړو او ډول ډول خواړه وخورو.**

۳. ښوونکی يو متن په لنډو ټکو کې بيانوي (تفصيلي لارښوونو لپاره د دريمې برخې عمومي کتنه وګورئ).(د متن اصلي مفهوم: **صحي خواړه پاک وي. پاک خواړه زمونږ روغتيا ته ګټه رسوي. بدن مو قوي کوي.**
۴. ښوونکی د پرله پسې ارزونې کتاب کې د ۸ زده کوونکو نومرې ثبتوي.

### تکرار او کورنۍ دنده (۵ دقيقې)

۱. **تکرار:** د (ز) توري غږ او د دې توري لرونکي ځينې کلمې تکراروي.
۲. **کورنۍ دنده:** زده کوونکي توري او کلمې په کورونو کې په خپلو کتابچوکې ليکي. د لومړي متن لوستل تکراروي.

## فرعي موضوع: صحي خواړه

**د زده کړې موخې:**

۱. له فعل سره د اشاري ضميرونو سم کارول.
۲. د کلمو د تړولو عامو مترادفو کلمو پېژندنه.
۳. له مناسب لحن، حرکاتو سره او ۹۵٪ سم والي سره د متنونو لوستل.

### ۱. کلمې او جملې (۱۰ دقیقې)

۱. ښوونکی په تخته د دوو بېلګو په ليکلو سره درس پيلوي: (ايمل پاک خواړه خوري). او (هغه پاک خواړه خوري). ښوونکی تشريح کوي چې د (ايمل) پرځای(هغه) هم ليکل کېدای شي.
۲. ښوونکی پر تخته باندې د جملې په ليکلو سره يوه بله بېلګه هم وړاندې کوي: (سپوږمۍ او ځانګه روغتون ته لاړې). (هغوی روغتون ته لاړې) ښوونکی تشريح کوي چې د (سپوږمۍ او ځانګې) پرځای (هغوی) ليکلی شو. (هغه) او (هغوی) دواړه شخصي ضميرونه دي او دا ضميرونه د اشخاصو يا شيانونو پرځای کارول کېږي.
۳. ښوونکی زده کوونکو ته وايي چې خپلو درسي کتابونو ته ځير شي. (٦) جملې او يو چوکاټ ورکړل شوی دی. ښوونکی له زده کوونکو سره له چوکاټ څخه د سم اشار ضمير په اخيستلو او په لومړۍ جمله کې د تش ځای په ډکولو کې مرسته کوي. بيا زده کوونکي په ګډه سره کار کولو ته ادامه ورکوي. کله چې زده کوونکي په کار بوخت وي، ښوونکی په ټولګي کې ګرځي چې له هغو زده کوونکو سره مرسته وکړي چې ستونزې لري.
۴. ښوونکی له زده کوونکو څخه غوښتنه کوي چې و وايي هغوی په دې درس کې څه زده کړي دي. (ځواب: د اشاري ضمير کارول).

### ۲. د لغتونو زېرمه (۱۵ دقیقې)

۱. ښوونکی زده کوونکو ته وايي چې هغوی به د مترادفو کلمو په اړه زده کړه ترلاسه کړي. مترادفې هغه کلمې دي چې مفهوم يې يو او بڼه يې بدله وي. د دې يوه بېلګه **(تيره)** او **(ډېره)** ده. دا دواړه کلمې يوه معنا لري.
۲. ښوونکی له زده کوونکو څخه د يو څو بېلګو د وړاندې کولو غوښتنه کوي.
۳. ښوونکی له زده کوونکو څخه غوښتنه کوي چې خپل درسي کتاب ته ځير شي. هغوی دوه چوکاټونه ويني. د (الف) چوکاټ کلمې د (ب) چوکاټ له کلمو سره مطابقت لري. لومړۍ کلمه **تيره** له **ډېرې** کلمې سره مطابقت لري ځکه چې دا دواړه مترادفې کلمې دي.



٤. ښوونکی له زده کوونکو څخه د تمرين په کتاب کې د تمرين د سرته رسولو لپاره په دوکسيزه توګه د کار کولو غوښتنه کوي.
٥. کله چې زده کوونکو په کار بوخت وي، ښوونکی په ټولګي کې ګرځي، څو له هغو زده کوونکو سره مرسته وکړي چې ستونزې لري.
٦. ښوونکی له زده کوونکو څخه غوښتنه کوي چې وو ايي هغوی په دې درس کې څه زده کړي دي. (ځواب: موږ د بلې مترادفې کلمې پيدا کول زده کړي چې همدغه کلمې ته ورته معنا لري).

### ۳. د لومړي متن بيا لوستل (۱۰ دقیقې)

۱. له څلورو پراوونو څخه په ګتې اخيستنې سره ښوونکی تمثيلوي، ښوونکی او زده کوونکي په ګډه لولي، يعنې زده کوونکي په دوه کسيزه توګه لولي او زده کوونکي يې پخپله لولي، په کارولو سره لومړی متن له زده کوونکو سره بيا لولي.

### تکرار او کورنۍ دنده (۵ دقیقې)

۱. **تکرار:** د اشاري ضميرونو مفهوم تکرارول.
۲. **کورنۍ دنده:** ښوونکی زده کوونکو ته وايي چې کلمې او جملې په خپلو کورونو کې په کتابچو کې وليکي او لومړی متن بيا ولولي او د املا د تمرين لپاره د کلمو تمرين ترسره کړي.

**فرعي موضوع: د سترګو ساتنه**

**د زده کړې موخې:**

۱. د کلمو د تجزیۀ کولو لپاره په مورفیمونو باندې د کلمو د جوړښت د پوهې کارول.
۲. دا وړاندوینه کول چې یوه کیسه یا متن به د څه په اړه وي له یو انځور، سرلیک، مهمو کلمو او مخکینۍ پوهې څخه ګټه اخیستل.
۳. د لوستلو پر مهال تم کېدل او فکر کول.
۴. له کیسې څخه مفهوم اخیستل.

**۱. کلمې (۱۰ دقیقې)**

۱. ښوونکی د لومړی کلمې جوړښت پر تخته کټ مټ هغسې لیکي لکه په درسي کتاب کې چې لیکل شوی دی.
۲. ښوونکی بېلګه په لوړ غږ زده کوونکو ته لولي. بیا ښوونکی بېلګه له زده کوونکو سره یوځای لولي.
۳. ښوونکی تشریح کوي چې مختاړی کلمې ته ورزیاتېږي او د کلمې معنا بدلېږي.
۴. ښوونکی زده کونکو ته وایي چې د لومړنیو دوه بېلګو د لوستلو لپاره خپل درسي کتاب ته ځیر شي.
۵. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې د تمرین په کتابونو کې د تمرین د سرته رسولو لپاره په دوه کسیزه توګه کار وکړي.
۶. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې د تمرین په کتابونو کې د کلمو لیکل تمرین کړي.
۷. کله چې زده کوونکي د کلمو په لوستلو بوخت وي، ښوونکی په ټولګي کې ګرځي چې له هغو زده کوونکو سره مرسته وکړي چې ستونزې لري.

**۲. د دویم متن لوستل (۲۵ دقیقې)**

**له لوستلو څخه مخکې**

۱. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې سرلیک او انځور ته وګوري او وړاندوینه وکړي چې متن به د څه اړه وي. ( په خپلو منځونو کې شریکول او له ټولګیوالو سره شریکول). زده کوونکي باید خپلو د درسي کتابونو ته ځیر شي.
۲.ښوونکی درې کلیدي کلمې له زده کوونکو سره معنا او په جملو کې یې استعمالوي.

**د لوستلو پر مهال**

۱. ښوونکی تمثیل کوي، ښوونکی او زده کوونکي په ګډه لوستل کوي، زده کوونکي په دوه کسیزه توګه لوستل کوي.
۲. ښوونکی زده کوونکو ته ښیي چې څنګه کولای شي د تم کېدلو او فکر کولو ستراتیژۍ څخه ګټه واخلي.

**له لوستلو څخه ورسته**

۱. ښوونکی له زده کوونکو څخه پوښتنه کوي چې د کیسې په اړه یې وړاندوینه سمه ده؟ هو یا نه.

۲. ښوونکی له زده کوونکو څخه لاندې پوښتنې کوي.
**-پوښتنه:زلمي زمرک ته څه ووېل؟**
**ځواب: زلمي زمرک ته ووېل راځه چې په کمپیوټر کې لوبه وکړو.**




| خم | زړه + خم | زړه خم |
|---|---|---|
| خو | مور + خو | مورخو |
| خاندو | مور + خاندو | مورخاندو |
| لیکي | هغوی + لیکي | هغوی لیکي |

**- پوښتنه: په کتاب کې د سترګو د ساتنې په اړه څه لیکل شوي وو؟**
**ځواب: که ټلویزیون، کمپیوټر، موبایل ته ډېر وخت وګورو سترګې موخرابېږي.**
**- پوښتنه: ولې باید کمپیوټر، ټلویزیون او موبایل ته ډېر وخت ونه کتل شي؟**
**ځواب: ځکه چې سترګې خرابوي.**
**- پوښتنه: څه وخت باید د سترګو ډاکټر ته ورشو؟**
**ځواب: کله چې مو سترګو ته کوم زیان ورسېږي یا شیان ښه نه وینو.**

**۳**. ښوونکی له زده کوونکو سره په ګډه یو متن په لنډ ټکو کې بیانوي (تفصیلي لارښوونو لپاره د دریمې برخې عمومي کتنه وګورئ).(دمتن لنډیز: **که ټلوېزیون، کمپیوټر او مبایل ته وګورئ سترګې مو خرابېږي، په تته رڼا کې مطالعه مه کوئ که څه شی ښه نه وینئ د سترګو ډاکټر ته ورشئ.**
**۴**. ښوونکي د پرله پسې ارزونې کتاب کې د (۸) زده کوونکو نومرې ثبتوي.

**تکرار او کورنۍ دنده (۵ دقیقې)**

۱. **تکرار:** ښوونکی له زده کوونکی سره د پایلې استنباط کولو مفهوم تکراروي.
۲. **کورنۍ دنده:** زده کوونکي توري او کلمې په کورونو کې په خپلو کتابچو کې لیکي او دوهم لوست تکراروي.

**فرعي موضوع: د سترګو ساتنه**

**د زده کړې موخې:**

۱- د شارحې (:) او کامې (،) کارول.
۲- مترادفو کلمو پېژندنه.
۳- له مناسب لحن، حرکاتو او٪ ۹۵ سموالي سره د متنونو لوستل.

### ۱. جملې (۱۰ دقيقې)

۱. ښوونکی زده کوونکو ته وايي چې هغوی به د دوو ګرامري نښو کارول زده کړي.
۲. ښوونکی د شارحې (:) او کامې (،) نښې پر تخته ليکي او له زده کوونکو څخه پوښتنه کوي چې آيا د دغو دواړو نښو نومونه پېژني؟ ځينې زده کوونکي ځواب ورکوي. بيا ښوونکی سم ځواب له زده کوونکو سره شريکوي.
۳. ښوونکی لاندې جمله پر تخته ليکي. **زما د ورونو نومونه دا دي: اتل، خيبر، شمشاد**
٤. ښوونکی له زده کوونکو غوښتنه کوي چې په جمله کې د شارحې او کامې نښو د اېښودلو د ځايونو په اړه فکر وکړي. يو څو زده کوونکي ځواب ورکوي، بيا ښوونکی سم ځواب له زده کوونکو سره شريکوي.
٥. ښوونکی دوهمه جمله پر توره تخته ليکي: (**زموږ دا مېوې خوښېږي انار، مڼې انګور**) او له زده کوونکو څخه پوښتنه کوي چې په جمله کې د شارحې او کامې نښې چېرته اېښودل کېږي.
٦. ښوونکی سم ځواب له زده کوونکو سره شريکوي.
٧. ښوونکی تشريح کوي چې شارحه يوه ګرامري نښه ده چې د نقل قول،وخت يا د شيانو د ښودلو لپاره کارول کېږي. کامه د څيزونو د بېلولو لپاره کارول کېږي.
٨. ښوونکی زده کوونکو ته وايي چې خپلو کتابونو ته ځير شي او لومړی دوه بېلګې له زده کوونکو سره تمرين کړي.
٩. ښوونکی زده کوونکو ته وايي چې په دوه کسيزه توګه کار وکړي. ښوونکی له هغو زده کوونکو سره مرسته کوي چې ستونزې لري.
۱۰. ښوونکی له زده کوونکو څخه د پوښتنې په کولو سره چې هغوی څه زده کړي دي، درس په لنډو ټکو کې بيانوي. هغوی ته اجازه ورکوي چې خپل ځوابونه له ټولګيوالو سره شريک کړي، بيا له يو يا دوه زده کوونکو څخه غوښتنه کوي چې خپل ځوابونه شريک کړي. (ځواب: هغوی د شارحې او کامې کارولو په اړه زده کړه ترلاسه کړې ده).

### ۲. د لغتونو زېرمه (۱۵ دقيقې)

۱. ښوونکی زده کوونکو ته وايي چې هغوی به د متضادو کلمو په اړه زده کړه ترلاسه کړي. يو ځل بيا د يادولو وړ ده چې متضادې کلمې هغه دي چې کلمه ورته مفهوم لري. د دې يوه بېلګه د (**روغ**) او د (**رنځور**) کلمه ده. دواړه کلمې يو د بل ضد دي. يوه بله بېلګه يې د (**چټل**) کلمه او د (**پاک**) کلمه ده.
۲. ښوونکی له زده کوونکو څخه د يو څو بېلګو د وړاندې کولو غوښتنه کوي.
۳. ښوونکی له زده کوونکو څخه غوښتنه کوي چې خپل درسي کتاب ته ځير شي. هلته دوه چوکاټونه شتون لري.




د لومړي چوکاټ کلمې د دوهم چوکاټ له کلمو سره ضد دي. لومړی کلمه **روغ** له **رنځور** کلمې سره ضد لري ځکه چې دا دواړه متضادې کلمې دي. ښوونکی له زده کوونکو نه د تمرين په کتاب کې د تمرين د سرته رسولو لپاره په دوه کسيزه توګه د کار کولو غوښتنه کوي.
٤. کله چې زده کوونکي په کار بوخت وي، ښوونکی په ټولګي کې ګرځي، ترڅو له هغو زده کوونکو سره مرسته وکړي چې ستونزې لري.
٥. ښوونکی له زده کوونکو څخه غوښتنه کوي چې ووايي هغوی په دې درس کې څه زده کړي دي. (ځواب: موږ د بلې متضادې کلمې پيدا کول زده کړي چې همدغه کلمې ته ورته معنا لري).

### ۳. د دويم متن بيا لوستل (۱۰ دقيقې)

د ځلورو پړاوونو (ښوونکی تمثيلوي، ښوونکی او زده کوونکي په ګډه لولي، يعني زده کوونکي په دوه کسيزه توګه لولي او زده کوونکي يې پخپله لولي)، په کارولو سره دوهم متن له زده کوونکو سره بيا لولي.

### تکرار او کورنۍ دنده (۵ دقيقې)

**۱. تکرار:** د شارحې (:) او کامې (،) کارول تکرارول
**۲. کورنۍ دنده:** ښوونکی زده کوونکو ته وايي چې جملې په خپلو کورونو کې په کتابچو کې وليکي او دوهم متن بيا ولولي او د املا د تمرين لپاره د کلمو تمرين ترسره کړي.

د حسن خط فعاليت، ارزونه او کورنۍ دنده (۴۰ دقيقې)

## فرعي موضوعګانې: صحي خواړه او د سترګو ساتنه

### د زده کړې موخې:

۱- د یوه ښه ملګري پېژندل.

۲- د نوښتي لیکنې د کیسې بشپړول.

۳- له مناسب لحن، حرکاتو او٪ ۹۵ سموالي سره د متنونو لوستل.

### ۱. غوږنیول او خبرې کول (۱۰ دقیقې)

۱. ښوونکی زده کوونکو ته وايي چې تاسو به د دې په اړه خبرې وکړئ چې ښه ملګري چا ته ویل کېږي. د مثال په توګه، ښه ملګری مهربان وي، ښه ملګری خپل شیان له نورو سره شریکوي، ښه ملګري له نورو ماشومانو سره لوبې کوي، ښه ملګری د نورو خبرو ته غوږ نیسي، ښه ملګری د ستونزو پر مهال له نورو سره مرسته کوي.

۲. زده کوونکو ته و وایاست چې د درسي کتاب انځورونو ته وګوري او په اړه یې بحث وکړي. له زده کوونکو څخه پوښتنه وکړئ چې دوی څنګه کولی شي ووینې چې په انځور کې ځینې زده کوونکي سره ښه ملګري دي؟

۳. زده کوونکو ته و وایاست چې ښه ملګري دغه مهمې ځانګړتیاوې لري: ښه ملګری مهربان وي، ښه ملګری خپل شیان له نورو سره شریکوي، ښه ملګری له نورو ماشومان سره لوبې کوي، ښه ملګری د نورو خبرو ته غوږ نیسي، ښه ملګری د ستونزو پر مهال له نورو سره مرسته کوي.

۴. زده کوونکو ته وو‌ایاست چې د تمرین کتابونو ته وګوري او د ښه ملګري په اړه یو له بل سره خبرې وکړي. زده کوونکو ته اجازه ورکړئ د ښه ملګري د پورتنیو ځانګړتیاوو په اړه یو له بل سره بحث وکړي او ووايي چې دوی څنګه کولی شي مهربان واوسي؟ څنګه کولی شي خپل ځینې شیان له نورو سره شریک کړي؟ څنګه کولی شي د نورو خبرو ته سم غوږ ونیسي؟ څنګه کولی شي یو ځای لوبې وکړي؟ او څنګه کولی شي له خلکو سره اړتیا په وخت کې مرسته وکړي؟

۵. زده کوونکو ته و وایاست چې خپل نظرونه له ټولګیوالو سره شریک کړي.

٦. د وخت د شتون په صورت کې له څو زده کوونکو څخه وغواړئ د ښه ملګري په اړه تمثیل وکړي. زده کوونکي کولی شي د لاندې حالتونو په اړه تمثیل وکړي: (یوه ماشوم د مېلې لپاره له ځان سره خواړه نه دي راوړي خو نور ماشومان له ځانونو سره پاک خواړه لري).

۷. زده کوونکي په( ۳-۵ )کوچنیو ډلو ووېشئ، ترڅو د تمثیل لپاره چمتوالی ونیسي.

۸. یوه یا ډېرې ډلې را وغواړئ چې خپل تمثیلونه وکړي.

۹. ښوونکی څرګندوي چې د خپلو خوړو په شریکولو، پر هغوی باندې د مهربانۍ کولو، نور لوبو ته د رابللو، د نورو خبرو ته په غوږ نیولو او له نورو سره د مرستې کولو په واسطه تاسو د یوه ښه ملګري ځانګړتیاوې ښودلې.



### ۲. نوښتي لیکنه (۱۵ دقیقې)

۱. ښوونکی زده کوونکو ته وايي چې هغوی به اوس د ښه ملګري په اړه یوه کیسه ولیکي.

۲. ښوونکی د درسي کتاب جملې او د چوکاټ کلمې له زده کوونکو سره یو ځای لولي.

۳. ښوونکی زده کوونکو ته وايي چې د تمرین په کتابونو کې د چوکاټ د کلمو په کارولو سره په تشو ځایونو کې په دوه کسیزه توګه جملې جوړې کړي او نیمګړې کیسه دې بشپړه کړي.

۴. ښوونکی په ټولګي کې ګرځي او هغو زده کوونکو ته چې ستونزې لري مرسته او لارښوونه کوي.

۵. ښوونکی له څو زده کوونکو غواړي چې خپلې بشپړې کړې کیسې ټولګیوالو ته و وايي.

### ۳. د لومړي او دویم متن بیا لوستل (۱۰ دقیقې)

ښوونکی له دوو پړاوونو (لکه زده کوونکي په دوه کسیزه توګه لولي، زده کوونکي یې پخپله لولي)، څخه په ګټه اخیستنې سره لومړی او دوهم متن له زده کوونکو سره بیا لولي.

### تکرار او کورنۍ دنده (۵ دقیقې)

۱. **تکرار:** د یو ښه ملګري ځانګړنې بیانوي.

۲. **کورنۍ دنده:** لومړی او دوهم متن بیا لوستل. د نوښتي کیسې بشپړول او یو انځور ورزیاتول.

ښوونکی زده کوونکو ته هغه تمرین تشریح کوي چې له زده کوونکو سره مرسته وکړي څو یوه شي د ملګرتیا د جوړېدو لاملونه کوم کوم دي.

## فرعي موضوع: تکرار او دوامداره ارزونه

**د زده کړې موخې:**
۱- له فعل سره د اشاري ضميرونو کارول.
۲- د متضادو کلمو پېژندنه.
۳- شارحه (:) او کامه (،) کارول.
٤- له٪ ۹۰ سموالي سره د متن لوستل.
٥- د کلمې او جملې په کچه له مناسب لحن او فشار ځخه په ګټې اخيستلو سره د متن لوستل.
٦- له٪ ۸۹سموالي سره کلمې او جملې لوستل.

### ۱. کلمې او جملې (۱۰ دقيقې)
۱. ښوونکی له فعل سره د اشاري ضميرونو کارول تکراروي.
۲. ښوونکی زده کوونکو ته وايي چې د درسي کتاب (الف) تمرين ترسره کړي.
۳. ښوونکی مترادفې کلمې تکراروي.
٤. ښوونکی زده کوونکو ته وايي چې د درسي کتاب (ب) تمرين ترسره کړي.
٥. ښوونکی د شارحې او کامې کارول تکراروي.
٦. ښوونکی زده کوونکو ته وايي چې د درسي کتاب (ج) تمرين ترسره کړي.
۷. ښوونکی د زده کوونکو ځوابونه ګوري.
۸. ښوونکی د پرله پسې ارزونې په کتاب کې د زده کوونکو نومرې ثبتوي.

### ۲. د لومړي او دويم متن بيا لوستل (۱۰ دقيقې)
۱. ښوونکی زده کوونکو ته دوه دقيقې وخت ورکوي چې په دوه کسيزه توګه لومړی يا دوهم متن ژر ژر ولولي.
۲. ښوونکی د زده کوونکو له څلورو جوړو ځخه غوښتنه کوي چې د ټولګي مخې ته راشي.
۳. ښوونکی هغوی ته وايي چې هره جوړه به د متن يوه برخه لولي. هغوی بايد متن په روانه توګه او د مناسب لحن او حرکاتو په کارولو سره ولولي چې هغه ګرامري نښې منعکس کړي او هغوی لوستلي دي.
٤. ښوونکی زده کوونکو ته وايي چې ورو ورو متن له لوستونکو سره ولولي او ښه غوږ ونيسي. کله چې ۸ زده کوونکي په لوستلو بوخت وي، ښوونکی د هغوی د لوستلو څرنګوالي مشاهده کوي او خپله مشاهده د پرله پسې ارزونې کتاب کې ليکي. له هغو زده کوونکو سره چې په ښه توګه دا فعاليت ترسره نه کړي، بايد په بله اونۍ کې ورسره مرسته وشي.



### ۳. املا (۱۵ دقيقې)
۱. ښوونکی زده کوونکو ته وايي چې هغوی به يو څو کلمې او جملې وليکي.
۲. ښوونکی زده کوونکو ته وايي چې هغوی به يو څو کلمې او جملې وليکي.
۳. ښوونکی زده کوونکو ته د درسي کتابونو د ترلو او د تمرين کتابونو د پرانيستلو وايي. ښوونکی لومړی کلمه په کراره (۴) ځلې يې تکراروي کلمه داده: **زمري**
۴. ښوونکی همدا کار د لاندې اتو(۸) کلمو لپاره هم ترسره کوي.
**۱- ګازره، ۲- ترموز، ۳- وزه، ۴- زړه، ۵- زرکه، ٦- پیاز، ۷- باز، ۸- بزګر**
۵. ښوونکی لومړی جمله په کراره لولي او څلور ځله يې په کرار تکراروي.
جمله داده: **۱- زه پاکه ګازره خورم.**
٦. ښوونکی همدا کار د لاندې (۳) جملو لپاره هم تر سره کوي.
**۲- د پیازو خوړل روغتیا ته ګټه لري. ۳- زه د خپلو سترګو ساتنه کوم. ۴- بزګر په ځمکه کې کار کوي.**
۷. ښوونکی زده کوونکو ته وايي چې خپل د تمرين کتابچې د کتلو لپاره راوړي. ښوونکی د هغوی املا ګوري او نومرې ورکوي.
۸. ښوونکی د زده کوونکو نومرې د پرله پسې ارزونې کتاب کې ثبتوي.

### تکرار او کورنۍ دنده (۵ دقيقې)
۱. **تکرار:** هغه څه تکرارول چې زده کوونکو دې اونۍ کې زده کړي دي.
۲. **کورنۍ دنده:** ښوونکی زده کوونکو ته وايي چې په کورونو کې د درسونو د هغو برخو بيا ليکل او لوستل دي ترسره کړي چې د اونۍ په جريان کې يې ورسره ستونزې لرلې.

د حسن خط فعاليت، ارزونه او کورنۍ دنده (۴۰ دقيقې)

فرعي موضوع: نس ناستي    توری: ذ

## د زده کړې موخې:

١. د /ذ/ غږ او ذ توري لرونکو کلمو سم لیکل.
٢. د انځور، سرلیک، مهمو کلمو او د مخکینۍ پوهې څخه په ګټې اخیستنې سره به داوړاندوینه وکړي چې کیسه یامتن به د څه په اړه وي.
٣. د لوستلو پر مهال تم کېدلو او فکر کولو څخه ګټه اخیستل.
٤. له کیسې نه پایله استنباط کول.

### ١. توري او کلمې (١٠ دقیقې)

١. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې د(**ذ**) او (**ز**) توري سره ورته غږ لري. ځینې کلمې د (**ذ** )توری او ځینې نور یې بیا د (**ز**) توری لري.
٢. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې په دې اونۍ کې به هغوی د هغو کلمو تمرین کوي چې د (ذ) توري پکې کارول کېږي.
٣. ښوونکی لاندینی کلمې پر تخته لیکي: (**ذره بین، کاغذ.**) ښوونکی له زده کوونکو څخه غوښتنه کوي چې کلمه په لوړ غږ ولولي. ښوونکی له زده کوونکو پوښتنه کوي چې کوم توری د/ذ/غږ لري. ښوونکی یو څو زده کوونکو ته اجازه ورکوي چې توري ته ګوته ونیسي.
٤. ښوونکی زده کوونکي د درسي کتاب لوستلو ته رابولي. ښوونکی کلمې په داسې حال کې زده کوونکو ته لولي چې هغوی خپلې ګوتې پر کلمو تېروي. بیا زده کوونکي هغه کلمې په دوه کسیزه توګه لولي.
٥. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې د تمرین په کتابونو کې د کلمو لیکل تمرین کړي.
٦. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې هغوی باید د دغو کلمو لیکل هر ورځ په کور کې تمرین کړي.
٧. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې هغوی به د اونۍ په پای کې د دې کلمو په اړه املا ولري.

### ٢. د لومړي متن لوستل (٢٥ دقیقې)

**له لوستلو څخه مخکې**

١. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې سرلیک او انځور ته وګوري او وړاندوینه وکړي چې متن به د څه په اړه وي. ( په خپلو کې شریکول، له ټولګیوالو سره شریکول). زده کوونکي باید خپلو درسي کتابونو ته ځیر شي چې هغوی د موضوع په اړه مخکې له مخکې څه پوهېدل.
٢.ښوونکی دري کلیدي کلمې له زده کوونکو سره معنا او په جملو کې یې استعمالوي.

**د لوستلو پر مهال**

١. ښوونکی تمثیل کوي، ښوونکی او زده کوونکي په ګډه لوستل کوي، زده کوونکي په دوه کسیزه توګه لوستل کوي.
٢. ښوونکی زده کوونکو ته ښیي چې څنګه کولای شي د تم کېدلو او فکر کولو ستراتیژۍ څخه ګټه واخلي.

**له لوستلوڅخه وروسته**

١. ښوونکی له زده کوونکو څخه پوښتنه کوي چې ایا د کیسې په اړه یې وړاندوینه سمه ده؟ هو یا نه.


توري او کلمې
ذره بین ذبیح ذاکر
نذیر تذکره آذان
کاغذ ذکیه محاذ
نس ناستي

٢. ښوونکی له زده کوونکو څخه لاندې پوښتنې کوي.
- پوښتنه: **ډاکټرانو دڅه په باره کې خبرې وکړې؟**
**ځواب: د نس ناستي په باره کې يې خبرې وکړې.**
- **پوښتنه: د نس ناستي نښې څه دي؟**
**ځواب: د نس ناستي ناروغان ژر ژر تشناب ته ځي کانګې کوي، نس يې خوږيږي او د بدن اوبه يې کميږي.**
- **پوښتنه: څنګه له نس ناستي څخه ځان ژغورلای شو؟**
**ځواب:لاسونه باید په صابون ومینځو، پاکې اوبه وڅښو او پاک خواړه خورو.**
- **پوښتنه:ولې مو سرلوڅي خواړه او اوبه ناروغه کوي؟**
**ځواب: ځکه مچان وربانديې ګرځي او په اسانۍ سره هرشی ورلويږي.**
٣. او د متن اصلی مفهوم دادی.
هغه څه چې زه پرې پوهېږم **نس ناستی** هغه څه چې ما زده کړل. **هغه شیان باید ونه خورو چې مچان وربانديې ګرځي.**
پایله: **پاک شیان وخورو، لاسونه په صابون ومینځو.**

### تکرار او کورنۍ دنده (٥ دقیقې)

١. **تکرار:** ښوونکی له زده کوونکی سره د /ذ/ غږ او ز توري لرونکې ځینې کلمې تکراروي.
٢. **کورنۍ دنده:**زده کوونکي توري او کلمې په کورونو کې په خپلو کتابچو کې لیکي او لومړی متن تکراروي.

## فرعي موضوع: نس ناستی

**د زده کړې موخې:**

۱. له فعل سره د اشاري ضميرونو سم کارول.
۲. د مترادفو کلمو پېژندنه.
۳. له مناسب لحن، حرکاتو او٪ ۹۵ سموالي سره د متنونو لوستل.

### ۱. کلمې او جملې (۱۰ دقيقې)

۱. ښوونکی په تخته د دوو ببلګو په ليکلو سره درس پيلوي. ښوونکی له زده کوونکو څخه پوښتنه کوي چې اشاري ضميرونه او د خلکو يا شيانو د نومونو پر ځای د اشاري ضميرونو ليکلو کارونه لاهم د هغوی په یاد دي.
۲. ښوونکی زده کوونکو ته وايي چې خپل درسي کتابونو ته ځير شي. (۵) جملې او يو چوکاټ ورکړل شوی دی. ښوونکی له زده کوونکو سره له چوکاټ د سم اشاري ضمير په اخيستلو او په لومړۍ جمله کې د تش ځای په ډکولو کې مرسته کوي. بيا زده کوونکي په ګډه سره کار کولو ته ادامه ورکوي.
۳. کله چې زده کوونکي په کار بوخت وي، ښوونکی په ټولګي کې ګرځي څو له هغو زده کوونکو سره مرسته وکړي چې ستونزې لري.
۴. ښوونکی له زده کوونکو څخه غوښتنه کوي چې و وايي هغوی په دې درس کې څه زده کړي دي. (ځواب: د اشاري ضمير کارول).

### ۲. د لغتونو زېرمه (۱۵ دقيقې)

۱. يو ځل بيا د يادولو وړ ده چې مترادفې کلمې هغه دي چې ورته مفهوم لري. د دې يوه بېلګه د (**تياره**) د کلمې مترادفه (**تورتم**) کلمه ده. دواړه کلمې يو معنا لري. يوه بله بېلګه يې د (**کوچنی**) کلمه ده چې مترادفه يې د (**وړوکی**)کلمه ده.
۲. ښوونکی له زده کوونکو څخه د يو څو بېلګو د وړاندې کولو غوښتنه کوي.
۳. ښوونکی له زده کوونکو څخه غوښتنه کوي چې خپل درسي کتاب ته ځير شي. هغوی ته د ښۍ خوا موجودې کلمې د لوستلو او د دې کلمې د متضادې کلمې څخه د دايرې تاوولو لارښوونه کوي. لومړی کلمه (**ملګری**) له (**انډيوال**) کلمې سره مطابقت لري ځکه چې دا دواړه کلمې نږدې او ورته معنا لري.



| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| ۱ | تیاره | رڼا | تورتم | ځنګل |
| ۲ | کوچنی | ډاکتر | لوی | وړوکی |
| ۳ | ملګری | انډیوال | دښمن | قلم |
| ۴ | پوهه | ماشومان | ناپوهي | علم |
| ۵ | [illegible] | یخ | سایه | ګرم |
| ۶ | [illegible] | [illegible] | [illegible] | [illegible] |

۴. ښوونکی زده کوونکو ته وايي چې د تمرين په کتاب کې د تمرين د سر ته رسولو لپاره په دوه کسيزه توګه کار وکړي کله چې زده کوونکي په کار بوخت وي.
۵. ښوونکی په ټولګي کې ګرځي. ترڅو له هغو زده کوونکو سره مرسته وکړي چې ستونزې لري.
٦. ښوونکی له زده کوونکو څخه غوښتنه کوي چې و وايي هغوی په دې درس کې څه زده کړي دي. ( ځواب: موږ د يوې مضادې کلمې پيدا کول زده کړي.)

### ۳. د لومړي متن بيا لوستل (۱۰دقيقې)

۱. د څلور پړاوونو يعنې ښوونکی تمثيلوي، ښوونکی او زده کوونکي په ګډه لولي، زده کوونکي په دوه کسيزه توګه لولي او زده کوونکي يې پخپله لولي، په کارولو سره لومړی متن له زده کوونکو سره بيا لولي.

### تکرار او کورنۍ دنده (۵ دقيقې)

۱. **تکرار:** د شخصي ضمايرو مفهوم تکرارول
۲. **کورنۍ دنده:** ښوونکی زده کوونکو ته وايي چې کلمې په کورونو کې په خپلو کتابچو کې وليکي او د لومړي متن لوستل تکراروي.

## فرعي موضوع: واکسین

**د زده کړې موخې:**

۱. د کلمو د تجزیه کولو لپاره په مورفیمونو باندې د کلمو د جوړښت د پوهې کارول.
۲. د انځور، سرلیک، مهمو کلمو او د مخکینۍ پوهې څخه په ګټې اخیستنې سره به دا وړاندوینه وکړي چې کیسه یا متن به د څه په اړه وي.
۳. د لوستلو پر مهال تم کېدل او فکر کول.
۴. له کیسې څخه پایله استنباط کول.

### ۱. کلمې (۱۰ دقیقې)

۱. ښوونکی د لومړۍ کلمې جوړښت کټ مټ پر تخته هغسې لیکي لکه په درسي کتاب کې چې لیکل شوی دی.
۲. ښوونکی بېلګه په لوړ غږ زده کوونکو ته لولي. بیا ښوونکی بېلګه له زده کوونکو سره یوځای لولي.
۳. ښوونکی تشریح کوي چې مختاړی کلمې ته ورزیاتېږي او د کلمې معنا بدلېږي.
۴. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې د لومړنیو دوه بېلګو د لوستلو لپاره خپل درسي کتاب ته ځیر شي.
۵. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې په درسي کتابونو کې په دوه کسیزه توګه نورې کلمې ولولي.
۶. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې د تمرین په کتابونو کې د کلمو لیکل تمرین کړي.
۷. کله چې زده کوونکي د کلمو په لوستلو بوخت وي، ښوونکی په ټولګي کې ګرځي څو له هغو زده کوونکو سره مرسته وکړي چې ستونزې لري.

### ۲. د دویم متن لوستل (۲۵ دقیقې)

**له لوستلو څخه مخکې**

۱. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې سرلیک او انځور ته وګوري او وړاندوینه وکړي چې متن به د څه په اړه وي. (په خپلو کې شریکول، له ټولګیوالو سره شریکول). زده کوونکي باید خپلو درسي کتابونو ته ځیر شي چې هغوی د موضوع په اړه مخکې له مخکې څه پوهېدل.
۲. ښوونکی درې کلیدي کلمې له زده کوونکو سره معنا او په جملو کې یې استعمالوي.

**د لوستلو پر مهال**

۱. ښوونکی تمثیل کوي، ښوونکی او زده کوونکي په ګډه لوستل کوي، زده کوونکي په دوه کسیزه توګه لولي.
۲. د تم کېدلو او فکر کولو ستراتیژۍ څخه ګټه واخلي.

**له لوستلو څخه وروسته**

۱. ښوونکی له زده کوونکو څخه پوښتنه کوي چې ایا د کیسې په اړه یې وړاندوینه سمه ده؟ هو/ نه.

۲. ښوونکی له زده کوونکو څخه لاندې پوښتنې کوي.
- **پوښتنه: ولې ذبیح الله کاکا خپلو لمسیانو ته واکسین نه کول؟**



**ځواب: ذبیح الله کاکا ویل چې زما لمسیان خو روغ دي. واکسین ورته نه کوم.**
- **پوښتنه: څنګه ذکیې ذبیح الله کاکا قانع کړ؛ چې لمسیان یې واکسین کړي؟**
**ځواب: که ماشومان واکسین نه شي سبا کېدای شي په سختو ناروغیو اخته شي.**
- **پوښتنه: ولې واکسین لګول ضرور دي؟**
**ځواب: ځکه چې د ځینو ناروغیو مخه نیسي.**
- **پوښتنه: څنګه په خپله سیمه کې له واکسین تطبیق کوونکو سره مرسته وکړو؟**
**ځواب: باید د واکسین په ارزښت باندې خلک پوه کړو چې واکسین د ځینو ناروغیو مخه نیسي.**

۳. ښوونکی له زده کوونکو سره په ګډه یو متن په لنډو ټکو کې طریقه ښیي(د تفصیلي جزیات لپاره د برخې عمومي کتنه وګورئ).
۴. هغه څه چې زه پرې پوهېږم د متن اصلي مفهوم دا دی: **د واکسین ګټې دي**
هغه څه چې ما زده کړل. **که ماشومان واکسین نشي، په ډېرو ناروغیو به اخته شي.**
پایله: **واکسین کول د ډېرو ناروغیو مخه نیسي.**

### تکرار او کورنۍ دنده (۵ دقیقې)

۱. **تکرار:** ښوونکی او زده کوونکي په چټکۍ سره د کلمو تجزیه کول تمرین کوي.
۲. **کورنۍ دنده:** زده کوونکي توري او کلمې په کورونو کې په خپلو کتابچو کې لیکي او دوهم لوست تکراروي.

**فرعي موضوع: واکسين**

**د زده کړې موخې**

۱- د شارحې (:) او کامې (،) کارول.

۲- د کلمو د تر ټولو عامو مترادفو کلمو پېژندنه.

۳- له مناسب لحن، حرکاتو او٪ ۹۵ سموالي سره د متنونو لوستل.

### ۱. جملې (۱۰ دقيقې)

۱. ښوونکی زده کوونکو ته وايي چې هغوی به د دوه ګرامري نښو (شارحې (:) او کامې (،)) کارول زده کړي.

۲. ښوونکی لاندې جمله پر توره تخته ليکي. (**موږ څلور خويندې يو هره يوه: لکه تلوسه، ښکلا، خلا او مينه.**)

۳. ښوونکی له زده کوونکو غوښتنه کوي چې په جمله کې د شارحې او کامې نښو د ايښودلو د ځايونو په اړه فکر وکړي. يو څو زده کوونکي ځواب ورکوي، بيا ښوونکی سم ځواب له زده کوونکو سره شريکوي.

٤. ښوونکی دوهمه جمله پر توره تخته ليکي:( **زموږ هېواد ډول ډول مېوې لري لکه: ناک، زردآلو، شفتالو،مڼې**) او له زده کوونکو څخه پوښتنه کوي چې په جمله کې د شارحې او کامې نښې چېرته ايښودل کېږي.

٥. ښوونکی سم ځواب له زده کوونکو سره شريکوي ښوونکی تشريح کوي چې شارحه يوه ګرامري نښه ده چې د نقل قول، وخت يا د شيانو لست د ښودلو لپاره کارول کېږي. کامه د څيزونو د جلا کولو لپاره کارول کېږي.

٦. ښوونکی زده کوونکو ته وايي چې خپلو کتابونو ته ځير شي او لومړی دوه بېلګې له زده کوونکو سره تمرين کوي.

٧. ښوونکی زده کوونکو ته وايي چې په دوه کسيزه توګه کار وکړي. ښوونکی له هغو زده کوونکو سره مرسته کوي چې ستونزې لري.

٨. ښوونکی له زده کوونکو څخه د پوښتنې په کولو سره چې هغوی څه زده کړي دي، درس په لنډو ټکو کې بيانوي. هغوی ته اجازه ورکوي چې خپل ځوابونه له ټولګيوال سره شريک کړي، بيا له يو يا دوه زده کوونکو څخه غوښتنه کوي چې خپل ځوابونه شريک کړي.

### ۲. د لغتونو زېرمه (۱۵ دقيقې)

۱. ښوونکی زده کوونکو ته وايي چې هغوی به د مترادفو کلمو په اړه زده کړه ترلاسه کوي. د دې يوه بېلګه د (**زوړ**) کلمه او د (**سپين ږيری**) ده. دواړه کلمې ورته معنا لري. يوه بله بېلګه يې د (**سوله**) کلمه او د (**روغه**) کلمه ده.

۲. ښوونکی له زده کوونکو څخه د يو څو بېلګو د وړاندې کولو غوښتنه کوي.

۳. ښوونکی له زده کوونکو څخه غوښتنه کوي چې خپل درسي کتاب ته ځير شي او هغوی ته ښې خوا ته موجود کلمې د لوستلو او د دې کلمې د مترادفې کلمې نه د دايرې تاوولو لارښوونه کوي. دربمه کلمه (**ودان**) ده او مترادفه کلمه يې (**آباد**) ده ځکه چې دا دواړه کلمې نږدې او ورته معنا لري.

٤. ښوونکی له زده کوونکو څخه د تمرين په کتاب کې د


۱ زما د خويندو نومونه دا دي: تلوسه، ښکلا، خلا او مينه

۲ زموږ هېواد ډول ډول مېوې لري لکه ناک، زردآلو، شفتالو او مڼې

۳ روغتيا له دغه سابه ګټور دي لکه پالک، ګلپي او شلغم

۴ يو کال څلور فصلونه لري: پسرلی، دوبی، منی او ژمی

۵ زموږ بيرغ درې رنګه لري: تور، سور او زرغون

د لغتونو زېرمه

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| ۱ | زوړ | سپين ږيری | روغتيا | ځوان |
| ۲ | سوله | درمل | روغه | جګړه |
| ۳ | ودان | وېجاړ | باران | آباد |
| ۴ | [illegible] | واکسين | پياوړی | کمزوری |
| ۵ | روغ | جوړ | هېواد | ناروغ |
| ۶ | ورکتوب | مېوه | خواږي | ماشومتوب |

د دويم متن بيا لوستل

۹۱

۵. تمرين د سرته رسولو لپاره په دوه کسيزه توګه د کار کولو غوښتنه کوي.

٦. کله چې زده کوونکي په کار بوخت وي، ښوونکی په ټولګي کې ګرځي تر څو له هغو زده کوونکو سره مرسته وکړي چې ستونزې لري. ښوونکی له زده کوونکو څخه غوښتنه کوي چې ووايي هغوی په دې درس کې څه زده کړي دي. (ځواب: موږ د بلې مترادفې کلمې پيدا کول زده کړي چې همدغه کلمې ته ورته معنا لري)

### ۳.د دويم متن بيا لوستل (۱۰ دقيقې)

د څلور پراوونو ښوونکی تمثيلوي، ښوونکی او زده کوونکي په ګډه لولي، زده کوونکي په دوه کسيزه توګه لولي او زده کوونکي يې پخپله لولي، په کارولو سره دوهم متن له زده کوونکو سره بيا لولي.

### تکرار او کورنۍ دنده (۵ دقيقې)

۱. **تکرار:** د شارحې او کامې کارول.

۲. **کورنۍ دنده:** ښوونکی زده کوونکو ته وايي چې جملې په کورونو کې په خپلو کتابچو کې وليکي او دوهم متن بيا ولولي او د املا د تمرين لپاره د کلمو تمرين ترسره کړي.

د حسن خط فعاليت، ارزونه او کورنۍ دنده (۴۰ دقيقې)

## فرعي موضوعګانې: نس ناستی، واکسین

### د زده کړې موخې:
۱- په یو ټیم (ډله) کې ګډ کار کول او له یوه بل سره همکاري کول.
۲- د نوښتي لیکنې د کیسې بشپړول.
۳- له مناسب لحن، حرکاتو او ۹۵٪ سموالي سره د متنونو لوستل.

### ۱. غوږنیول او خبرې کول (۱۰ دقیقې)

۱. زده کوونکو ته و وایاست چې د نن ورځې په درس کې به د یوځای کارکولو یا په ګډه د کار کولو په اړه خبرې وکړو. په کور، ښوونځي او ټولنه کې په ګډه کار کول ډېر ارزښت لري. په ګډه کار کول له تاسو سره مرسته کوي چې په لږ وخت کې ډېر کارونه ترسره کړئ او کارونه په سمه توګه ترسره کړئ.
۲. زده کوونکو ته و وایاست د درسي کتابونو هغو انځورونو ته وګوري چې زده کوونکی پکې خپل ټولګی تنظیموي. له زده کوونکو څخه دا پوښتنې وکړئ: په انځور کې څه شی وینئ؟ زده کوونکي څه کار کوي؟ فکر کوئ چې دوی به کار په لږ وخت کې ترسره کړي؟ که یوه زده کوونکي ټولګی تنظیم کړي وای، نو څه به پېښ شوي وای؟ زده کوونکو ته و وایاست کله چې تاسو یو له بل سره په ګډه کار کوئ. نو تاسو کولی شئ کار په لږ وخت کې ترسره کړئ او په آسانۍ سره یې ترسره کړئ.
۳. زده کوونکو ته و وایاست چې د تمرین کتابونو اوو تورو ته وګوري. هغوی ته و وایئ چې له دغو (۷) تورو سره څومره کلمې چې کولی شي په یوازې توګه جوړې کړي. دوی درې دقیقې وخت لري چې په یوازې توګه کلمې جوړې کړي.
۴. زده کوونکو ته و وایاست چې د (ک، أ، ن، ل، و، ر، ی) له تورو سره چې څومره کلمې کولی شي جوړې کړي او په لاندې چوکاټ کې دې ولیکي.
۵. ښوونکی له زده کوونکو څخه درې دقیقې وروسته پوښتنه کوي، چا له (۱۰) څخه ډېرې کلمې جوړې کړې؟ چا له (۱۵) څخه زیاتې کلمې جوړې کړې دي؟ له هغوی زده کوونکو څخه چې ډېرې کلمې یې جوړې کړې دي وغواړئ چې کلمې یې ټولګیوالو ته و وایي.
۶. زده کوونکو ته و وایئ چې اوس به دوی همدا کار د څو نورو تورو لپاره هم ترسره کړي. خو دا ځل به دوی له تورو څخه کلمې په(۴-۶)کسیزه کوچنیو ډلو کې جوړوي. دغه توري پر تخته ولیکئ: (م، ا، ب، ت، و، ر، ه). زده کوونکو ته و وایاست چې دوی درې دقیقې وخت لري چې څومره کلمې کولی شي ترې جوړې کړي. دا ځل زده کوونکي باید په ګډه کار وکړي او کلمې جوړې کړي.
۷. له زده کوونکو څخه درې دقیقې وروسته وغواړئ چې څومره کلمې یې جوړې کړې دي. هغه ډله چې ډېرې کلمې یې جوړې کړې دي ټولګیوالو ته خپلې کلمې وایي.
۸. له زده کوونکو وغواړئ پر دې بحث وکړي چې په یوازې توګه د کارونو ترسره کول او په ګډه سره د کارونو ترسره کول څه توپیر سره لري؟ څو دقیقې وروسته له ځینو زده کوونکو وغواړئ چې خپل نظرونه له تاسو سره شریک کړي.
۹. زده کوونکو ته و وایاست چې په ګډه سره د کار ترسره کول په ژوند کې ډېر ارزښت لري. په ګډه کار ترسره کول له تاسو سره مرسته کوي چې په لږ وخت کې ډېر کارونه ترسره کړئ او کارونه په سمه توګه ترسره کړئ.



### ۲. نوښتي لیکنه (۱۵ دقیقې)

۱. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې هغوی به اوس په ګډه د کارکولو په اړه یوه کیسه ولیکي.
۲. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې د درسي کتاب جملې او د چوکاټ کلمې یو له بل سره په ګډه ولولي.
۳. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې د تمرین په کتابونو کې د چوکاټ د کلمو په کارولو سره په تشو ځایونو کې په دوه کسیزه توګه جملې جوړې کړي او نیمګړې کیسه دې بشپړه کړي.
۴. ښوونکی په ټولګي کې ګرځي او هغو زده کوونکو ته چې ستونزې لري مرسته او لارښوونه کوي.
۵. ښوونکی له څو زده کوونکو غواړي چې خپلې بشپړې کړې کیسې ټولګیوالو ته و وایي.

### ۳. د لومړي او دویم متن بیا لوستل (۱۰ دقیقې)

ښوونکی له دوو پراوونو (لکه زده کوونکي په دوه کسیزه توګه لولي، زده کوونکي یې پخپله لولي)، څخه په ګټې اخیستنې سره لومړی او دوهم متن له زده کوونکو سره بیا لولي.

### تکرار او کورنۍ دنده (۵ دقیقې)

۱. **تکرار**: زده کوونکي به ګډه سره د یوه کار د ترسره کوول ګټې بیانوي.
۲. **کورنۍ دنده**: د لومړي او دوهم متن بیا لوستل. د تخلیقي کیسې بشپړول او یو انځور ورسره زیاتول.
ښوونکی زده کوونکو ته هغه تمرین تشریح کوي چې له زده کوونکو سره مرسته وکړي څو یوه شي د ملګرتیا د جوړېدو لاملونه کوم دي.

## فرعي موضوع: تکرار او دوامداره ارزونه

**د زده کړې موخې:**
۱- له فعل سره د اشاري ضميرونو سم کارول.
۲- د کلمو د تر ټولو عامو مترادفو کلمو پېژندنه.
۳- شارحه (:) او کامه (،) کارول.
٤- له ۹۰٪ سموالي سره متن لوستل.
٥- د کلمې او جملې په کچه له مناسب لحن او فشار څخه په ګټې اخيستلو سره متن لوستل.
٦- له ۸۹٪ سموالي سره کلمې او جملې لوستل.

### ۱. کلمې اوجملې (۱۰ دقيقې)
۱. ښوونکی له فعل سره د شخصي ضميرونوسم کارول تکراروي.
۲. ښوونکی زده کوونکو ته وايي چې د درسي کتاب (الف) تمرين ترسره کړي.
۳. ښوونکی د مترادفې کلمې تکراروي.
٤. ښوونکی زده کوونکو ته وايي چې د درسي کتاب (ب) تمرين ترسره کړي.
٥. ښوونکی د شارحې او کامې کارول تکراروي.
٦. ښوونکی زده کوونکو ته وايي چې د درسي کتاب (ج) تمرين ترسره کړي.
۷. ښوونکی د زده کوونکو ځوابونه ګوري.
۸. ښوونکی د پرله پسې ارزونې په کتاب کې د زده کوونکو نومرې ثبتوي.

### ۲. د لومړي او دويم متن بيا لوستل (۱۰ دقيقې)
۱. ښوونکی زده کوونکو ته دوو دقيقې وخت ورکوي چې په دوه کسيزه توګه لومړی يا دوهم متن ژر ژر ولولي.
۲. ښوونکی له اتو تنو زده کوونکو څخه غوښتنه کوي چې د ټولګي مخې ته راشي.
۳. ښوونکی هغوی ته وايي چې هر دوه تنه به د متن يوه برخه لولي. هغوی بايد متن په روانه توګه او د مناسب لحن او حرکاتو په کارولو سره ولولي چې هغه ګرامري نښې منعکس کړي چې هغوی لوستلې دي.
٤. ښوونکی زده کوونکو ته وايي چې ورو ورو متن له لوستونکي سره ولولي او ښه غوږ ورته ونيسي. کله چې (۸) زده کوونکي په لوستلو بوخت وي، ښوونکی د هغوی د لوستلو څرنګوالی مشاهده کوي او خپله مشاهده د پرله پسې ارزونې په کتاب کې ليکي. له هغو زده کوونکو سره چې په ښه توګه دا فعاليت ترسره نه کړي، بايد په بله اونۍ کې مرسته ورسره وشي.



### ۳. املا (۱۵ دقيقې)
۱. ښوونکی زده کوونکو ته وايي چې هغوی به يو څو کلمې وليکي.
۲. ښوونکی زده کوونکو ته د درسي کتابونو ټولولو او د تمرين دکتابونو د پرانيستلو وايي. ښوونکی لومړی کلمه په کراره وايي او (۴) ځلې يې تکراروي. کلمه دا ده: **ذره بين** زده کوونکي کلمې ليکي.
۳. ښوونکي همداکار د لاندې (۸) کلمو لپاره هم ترسره کوي:
**۱- نذير، ۲- کاغذ، ۳- ذبيح، ۴- تذکره، ۵- ذاکر، ٦- آذان، ۷- محاذ، ۸- ذکيه**
۴. ښوونکی لومړی جمله په کراره لولي او څلور ځله يې تکراروي جمله دا ده: ۱. **نذير نا پاکې اوبه نه څښي.**
**۲. زما ورور ذبيح دی.**
**۳. ذاکر په سپين کاغذ خط ليکي. ۴. د واکسينو کول ماشوم ته ډېرې ګټې رسوي.**
۵. ښوونکی زده کوونکو ته وايي چې د خپل تمرين کتابچې د کتلو لپاره راوړي. ښوونکی د هغوی د املا ګوري او نومرې ورکوي.
ښوونکی د زده کوونکو نومرې د پرله پسې ارزونې کتاب کې ثبتوي.

### تکرار او کورنۍ دنده (۵ دقيقې)
۱. **تکرار:** هغه څه تکرارول چې زده کوونکو دې اونۍ کې زده کړي دي.
۲. **کورنۍ دنده:** ښوونکی زده کوونکو ته وايي چې په کورونو کې د درسونو د هغو برخو بيا ليکل او لوستل دې ترسره کړي چې د اونۍ په جريان کې يې ورسره ستونزې لرلې.

د حسن خط فعاليت، ارزونه او کورنۍ دنده (۴۰ دقيقې)

**فرعي موضوع: ورزش** **توري: ز، ذ**

**د زده کړې موخې:**

۱. د /ز/ او /ذ/ غږونو او تورو لرونکو کلمو سم لیکل.
۲. د انځور، سرلیک، مهمو کلمو او د مخکینۍ پوهې څخه په ګټې اخیستنې سره به د اورېدونکو وړاندوینه وکړو چې کیسه یا متن به د څه شي په اړه وي.
۳. د لوستلو پر مهال له تم کېدلو او فکر کولو څخه ګټه اخیستل.
۴. له کیسې څخه مفهوم اخیستل.

### ۱. توري او کلمې (۱۰ دقیقې)

۱. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې د (ز) او (ذ) توري سره نږدې غږونه لري. ځینې کلمې د( **ز**) توری او ځینې نور یې بیا د (ذ ) توری لري.
۲. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې په دې اونۍ کې به هغوی د هغو کلمو تمرین کوي چې د (ز) او (ذ) توري پکې کارول کېږي.
۳. ښوونکی لاندینۍ کلمې پر تخته لیکي: **(ذکریا، ذره بین)** ښوونکی له زده کوونکو څخه غوښتنه کوي چې کلمه په لوړ غږ ولولي. ښوونکی له زده کوونکو پوښتنه کوي چې کوم توري د(ز) او (ذ) غږونه لري.
۴. ښوونکی یو څو زده کوونکو ته اجازه ورکوي چې توري ته ګوته ونیسي.
۵. ښوونکی زده کوونکي درسي کتابونو لوستلو ته رابولي.
۶. ښوونکی کلمې په داسې حال کې زده کوونکو ته لولي چې هغوی خپلې ګوتې پر کلمو تېروي. بیا زده کوونکي هغه کلمې په دوه کسیزه توګه لولي.
۷. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې د تمرین په کتابونو کې د کلمو لیکل تمرین کړي.
۸. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې هغوی باید د دغو کلمو لیکل هر ورځ په کور کې تمرین کړي.
۹. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې هغوی به د اونۍ په پای کې د دې کلمو په اړه املا ولري.

### ۲. د لومړي متن لوستل (۲۵ دقیقې)

**له لوستلو څخه مخکې**

۱. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې سرلیک او انځور ته وګوري او وړاندوینه وکړي چې متن به د څه په اړه وي. (په خپلو منځو کې شریکول، له ټولګیوالو سره شریکول).
۲. ښوونکی درې کلیدي کلمې له زده کوونکو سره معنا او په جملو کې یې استعمالوي.

**د لوستلو پر مهال**

۱. ښوونکی تمثیل کوي، ښوونکی او زده کوونکي یې په ګډه لوستل کوي، زده کوونکي یې په دوه کسیزه توګه لولي.
۲. ښوونکی زده کوونکو ته ښیي چې څنګه کولای شي د تم کېدلو او فکر کولو ستراتیژۍ څخه ګټه واخلي.

**له لوستلو څخه وروسته**

۱. ښوونکی له زده کوونکو څخه پوښتنه کوي چې ایا د کیسې په اړه یې وړاندوینه سمه ده؟ هو/ نه.


۱۷ اونۍ ۱
توري او کلمې

| | | | |
|---|---|---|---|
| زکریا | ورزش | پیاز | ز |
| کاریز | زرمینه | ذره بین | |
| عذاب | کاغذ | تذکره | ذ |

والیبال ذهن ژمنه

ورزش

زکریا هره ورځ له ملګرو سره په کوڅه کې والیبال کاوه. یوه ورځ د دوی توپ د زرمینې ترور په کور کې ولوېد.
زرمینه ترور له کوره راووته او زکریا ته یې وویل: زویه ولې مو په دې توپ هسې ځان له کاره ایستلی دی؟
زکریا ورته وویل: ترورې! ځان له کاره نه باسو، ورزش کوو. زرمینې ترور وویل: زویه! ورزش څه ګټې لري؟
هغه ځواب ورکړ: ترورې! څوک چې ورزش کوي، بدن یې ښه وده کوي، ذهن یې ښه وي او ژر نه ناروغه کېږي.
زرمینې ترور وویل: زویه چې دومره ګټې لري، بیا په مناسب ځای کې ورزش کوئ. خو په داسې ځای کې نه چې څوک په عذاب شي. هغوی ژمنه وکړه چې نور به په سم ځای کې لوبې کوي.

۱۷

۲. ښوونکی له زده کوونکو څخه لاندې پوښتنې کوي:

**-پوښتنه: ذکریا په کوڅه کې څه کول؟**
**ځواب: والیبال.**
**- پوښتنه: ولې ورزش مهم دی؟**
**ځواب: څکه ذهن او بدن مو غوښتلی کوي او له ناروغیو څخه مو ساتي.**
**- پوښتنه: د ورزش آداب څه شی دي؟**
**ځواب: د ګټلو او بایللو په وخت کې یو بل ته درناوی په پام کې نیول.**
**- پوښتنه: تاسې کومې لوبې کوئ؟**
**ځواب: والیبا ل، کرېکټ، فوټبال، او داسې نورې...**

۳. یو متن په لنډو ټکو کې بیانوي (تفصیلي لارښوونو لپاره د دریمې برخې عمومي کتنه وګورئ).(امکاني لنډیز:
۴. ښوونکي د پرله پسې ارزونې په کتاب کې د ۸ زده کوونکو نومرې ثبتوي.

### تکرار او کورنۍ دنده (۵ دقیقې)

۱. **تکرار:** ښوونکی له زده کوونکی سره ځینې کلمې تکراروي چې د (ز) او (ذ) توري سره نږدې غږ لري.
۲. **کورنۍ دنده:** زده کوونکي توري او کلمې په کورونو کې په خپلو کتابچو کې لیکي او لومړی متن تکراروي.

## فرعي موضوع: ورزش

**د زده کړې موخې:**

۱. له فعل سره د اشاري ضمیرونو سم کارول.
۲. له کلمو څخه تر ټولو دعامو مترادفو کلمو پېژندنو پیل کول.
۳. په مناسب لحن او حرکاتو سره د ٪۹۵ سموالي سره د متنونو لوستل.

### ۱. کلمې او جملې (۱۰ دقیقې)

۱. ښوونکی له زده کوونکو څخه پوښتنه کوي چې ایا د خلکو یا شیانو د نومونو پر ځای د اشاري ضمیرونو لیکلو کارونه لاهم د هغوی په یاد دي.
۲. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې خپلو درسي کتابونو ته ځیر شي. څلور(۴) جملې او یو چوکاټ ورکړل شوی دی. ښوونکی له زده کوونکو سره د لومړۍ جملې د اشاري ضمیر په لیکلو کې مرسته کوي چې د هغه نوم یا نومونو ځای ونیسي چې ترې لاندې خط کښل شوی دی.
۳. زده کوونکي په ګډه سره کار کولو ته ادامه ورکوي. کله چې زده کوونکي پر کار بوخت وي، ښوونکی په ټولګي کې ګرځي چې له هغو زده کوونکو سره مرسته وکړي چې ستونزې لري.
٤. ښوونکی له زده کوونکو څخه غوښتنه کوي چې و وایي هغوی په دې درس کې څه زده کړي دي. (ځواب: د اشاري ضمیر کارول).

### ۲. د لغتونو زېرمه (۱۵ دقیقې)

۱. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې په ځیر سره کلمې ولولي او د هرې کلمې مترادفې (هم معنا) کلمې د پیدا کولو لپاره دې تمرین وکړي.
۲. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې خپلو درسي کتابونو ته ځیر شي. هغوی په چوکاټ کې شپږ(٦) کلمېویني. هغوی باید له هغې کلمو څخه دایره تاوه کړي چې په لومړي چوکاټ کې له اړونده کلمې سره مطابقت لري.
۳. ښوونکی له زده کوونکو سره لومړۍ دوو کلمو تمرین کوي.
٤. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې نورې کلمې په دوه کسیزه توګه ترسره کړي. چټک زده کوونکي همدې تمرین ته خپلو د تمرین په کتابونو کې هم ادامه ورکولای شي.
٥. کله چې زده کوونکو پر کار بوخت وي، ښوونکی په ټولګي کې ګرځي، ترڅو له هغو زده کوونکو سره مرسته وکړي چې ستونزې لري.


۱۷ اونۍ — ۲ لوست

کلمې او جملې

۱. خوشحال هره ورځ ورزش کوي
هغه هره ورځ ورزش کوي
۲. زرغونې پرون یو ښکلی قلم واخیست
پرون یو ښکلی قلم واخیست
۳. زه او خانګه خپل غابونه پاک ساتو
خپل غابونه پاک ساتو
۴. زلمی او توریالی درس لولي
درس لولي

هغه
هغې
موږ
هغوی

د لغتونو زېرمه

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| ۱ | خام | اومه | والیبال | پوخ |
| ۲ | لرې | لیټ | جګ | ورزش |
| ۳ | ویښ | ورځ | ویده | بیدار |
| ۴ | ګټه | زیان | فایده | توپ |
| ۵ | صبر | میدان | بې‌صبري | زغم |
| ٦ | عالم | چمن | پوه | چاغل |

د لومړي متن بیا لوستل

۹۰

٦. له لږ وخت وروسته، ښوونکی د زده کوونکو ځوابونه ګوري.
۷. ښوونکی له زده کوونکو څخه غوښتنه کوي چې ووایي هغوی په دې درس کې څه زده کړي دي. (ځواب: موږ له یوې جملې څخه په ګټې اخیستنې سره د یوې کلمې معنا موندل زده کړل).

### ۳. د لومړي متن بیا لوستل (۱۰ دقیقې)

۱. له څلورو پړاوونو (ښوونکی تمثیلوي، ښوونکی او زده کوونکي یې په ګډه لولي، زده کوونکي یې په دوه کسیزه توګه لولي او زده کوونکي یې پخپله لولي)، په کارولو سره لومړی متن له زده کوونکو سره بیا لوستل.

### تکرار او کورنۍ دنده (۵ دقیقې)

۱. **تکرار:** د اشاري ضمیرونو مفهوم تکرارول.
۲. **کورنۍ دنده:** ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې کلمې او جملې په کورونو کې په خپلو کتابچو کې ولیکي او لومړی متن بیا ولولي او د اونۍ د پای د املا د تمرین لپاره د کلمو تمرین ترسره کړي.

## فرعي موضوع: د روغتیا ترانه

**د زده کړې موخې:**
۱. د کلمو تجزیه کول د مورفیمونو په اړه د کلمو د جوړښت د پوهې کارول.
۲. انځور، سرلیک، مهمو کلمو او مخکینۍ پوهې څخه په ګټې اخیستنې سره دې دا وړاندوینه وکړي چې متن یا کیسه به د څه په اړه وي.
۳. د لوستلو پر مهال تم کېدل او فکر کول.
۴. له کیسې څخه نتیجه اخیستل.

### ۱. کلمې او جملې (۱۰ دقیقې)
۱. ښوونکی د لومړۍ کلمې جوړښت پر تخته لیکي کټ مټ هغسې لکه: په درسي کتاب کې چې لیکل شوی دی.
۲. لومړۍ یې ښوونکی بېلګه په لوړ غږ زده کوونکو ته لولي. بیا یې له زده کوونکو سره یوځای لولي.
۳. ښوونکی تشریح کوي چې یوه کوچنۍ برخه کلمې ته ورزیاتېږي او د کلمې معنا بدلېږي.
۴. ښوونکی زده کونکو ته وایي چې د لومړنیو دوه بېلګو د لوستلو لپاره خپل درسي کتاب ته ځیر شي.
۵. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې په درسي کتابونو کې په دوه کسیزه توګه کلمې ولولي.
۶. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې د تمرین په کتابونو کې د کلمو لیکل تمرین کړي.
۷. کله چې زده کوونکي د کلمو په لوستلو بوخت وي، ښوونکی په ټولګي کې ګرځي چې له هغو زده کوونکو سره مرسته وکړي چې ستونزې لري.

### ۲. د دویم متن لوستل (۲۵ دقیقې)

**له لوستلو څخه مخکې**
۱. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې سرلیک او انځور ته وګوري او وړاندوینه وکړي چې متن به د څه په اړه وي. (په خپلو منځو کې شریکول، له ټولګیوالو سره شریکول). زده کوونکي باید خپلو درسي کتابونو ته ځیر شي چې هغوی د موضوع په اړه مخکې له مخکې په څه پوهېدل.
۲. ښوونکی درې کلیدي کلمې له زده کوونکو سره معنا او په جملو کې یې استعمالوي.

**د لوستلو پر مهال**
۱. ښوونکی تمثیل کوي، ښوونکی او زده کوونکي یې په ګډه لولي، زده کوونکي یې په دوه کسیزه توګه لولي.
۲. ښوونکی زده کوونکو ته ښیي چې څرنګه کولای شي د تم کېدلو او فکر کولو ستراتیژي څخه ګټه واخلي.

**له لوستلو څخه وروسته**
۱. ښوونکی له زده کوونکو څخه پوښتنه کوي چې د کیسې په اړه یې وړاندوینه سمه ده؟ هو یا نه.




۲. ښوونکی له زده کوونکو څخه لاندې پوښتنې کوي.
- **پوښتنه: څنګه کولای شو خپله روغتیا وساتو؟**
**ځواب: پاک خواړه او پاکې مېوې وخورو.**
- **پوښتنه: ولې مو روغتیا مهمه ده؟**
**ځواب: ځکه روغ انسان خوشحاله وي او خپل کارونه ښه کولی شي.**
- **پوښتنه: ناپاک خواړه خوړل څه زیان لري؟**
**ځواب: په ډول ډول ناروغیو مو اخته کوي.**
- **پوښتنه: که روغ بدن ونه لرو، له کومو ستونزو سره به مخ شو؟**
**ځواب: له بېلابېلو ستونزو سره به مخامخ شو. تل به نورو ته احتیاج یو. کار به په ټاکلي وخت نشو ترسره کولای.**
۳. ښوونکی له زده کوونکو سره په ګډه یو متن په لنډه ټکو کې بیانوي (تفصیلي لارښوونو لپاره د دریمې برخې عمومي کتنه وګورئ). (د متن اصلي مفهوم: **که غواړو ښه صحت ولرو تل باید ځان، خوړو او چاپېریال ته پاملرنه وکړو.**)
۴. ښوونکی د پرله پسې ارزونې په کتاب کې د ارزول شویو زده کوونکو نومرې ثبتوي.

### تکرار او کورنۍ دنده (۵ دقیقې)
۱. **تکرار:** ښوونکی او زده کوونکي په چټکۍ سره د کلمو تجزیه کول تمرین کوي.
۲. **کورنۍ دنده:** زده کوونکي کلمې او جملې په کورونو کې په خپلو کتابچو کې لیکي او دوهم متن تکراروي.

## فرعي موضوع: د روغتيا ترانه

**د زده کړې موخې:**

١- د شارحې (:) او کامې (،) کارول.
٢- له کلمو څخه تر ټولو د عامو مترادفو کلمو پېژندل.
٣- له مناسب لحن او حرکاتو او٪ ۹۵ سموالي سره متنونه لوستل.

### ۱. جملې (۱۰ دقيقې)

١. ښوونکی زده کوونکو ته وايي چې هغوی به دوه ګرامري لیک نښې چې شارحه (:) او کامه (،) دي، کارول زده کړي.
٢. ښوونکی زده کوونکو ته تکراروي چې شارحه يوه ګرامري نښه ده چې د نقل قول، وخت يا د شيانو لست د ښودلو لپاره کارول کېږي. کامه د څيزونو بېلولو لپاره کارول کېږي.
٣. ښوونکی زده کوونکو ته وايي چې خپلو کتابونو ته ځير شي او لومړی دوه بېلګې له زده کوونکو سره تمرين کړي.
٤. ښوونکی زده کوونکو ته وايي چې په دوه کسيزه توګه کار وکړي. ښوونکی له هغه زده کوونکو سره مرسته کوي چې ستونزې لري.
٥. ښوونکی له زده کوونکو څخه د پوښتنې په کولو سره چې هغوی څه زده کړي دي، درس په لنډو ټکو کې بيانوي. هغوی ته اجازه ورکوي چې خپل ځوابونه له ټولګيوالو سره شريک کړي، بيا له يو يا دوه زده کوونکو څخه غوښتنه کوي چې خپل ځوابونه شريک کړي. (ځواب: هغوی د شارحې او کامې د کارولو په اړه زده کړه ترلاسه کړې ده).

### ۲. د لغتونو زېرمه (۱۵ دقيقې)

١. ښوونکی زده کوونکو ته وايي چې په ځير سره دې متضادې کلمې ولولي د هرې کلمې د متضاد شکل د پيدا کولو لپاره دې تمرين وکړي.
٢. ښوونکی زده کوونکو ته وايي چې خپلو درسي کتابونو ته ځير شي. هغوی شپږ(٦) کلمېويني. هغوی بايد له هغې کلمې څخه دايره تاوه کړي چې ترې لاندې خط کښل شوی دی. ښوونکی لومړی کلمه له زده کوونکو سره ترسره کوي.
٣. ښوونکی زده کوونکو ته وايي چې نورې کلمې په دوه کسيزه توګه ترسره کړي. چټک زده کوونکي همدې تمرين ته په خپلو د تمرين کتابونو کې هم ادامه ورکولای شي.
٤. کله چې زده کوونکي پر کار بوخت وي، ښوونکی په ټولګي کې ګرځي تر څو له هغو زده کوونکو سره مرسته وکړي چې ستونزې لري.
٥. لږ وخت وروسته، ښوونکی د زده کوونکو ځوابونه ګوري.



جملې

١ ورزشي لوبې دا دي: فوټبال، کرکټ، منډې وهل او واليبال
٢ د اونۍ ورځې دا دي: شنبه، يکشنبه، دوشنبه، سه شنبه، چهارشنبه، پنجشنبه او جمعه
٣ زما دا رنګونه خوښيږي: شين، سور، ژېړ، سپين او تور
٤ دا خواړه زموږ روغتيا ته ګټه رسوي لکه: غوښه، لوبيا، نخود او ساګه
٥ زموږ هېواد ډول ډول وچې مېوې لري لکه: بادام، پسته، جلغوزي او غوزان

د لغتونو زېرمه

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| ١ | مينه | محبت | کرکه | [illegible] |
| ٢ | کوچنيان | ماشومان | جامې | لويان |
| ٣ | ستړی | ښکلی | هوسا | ستومانه |
| ٤ | توان | روغتيا | طاقت | ناتوان |
| ٥ | سهار | ګهيځ | ماښام | غذا |
| ٦ | ښکلی | [illegible] | ښايسته | بدرنګه |

د دويم متن بيا لوستل

٦. ښوونکی له زده کوونکو څخه غوښتنه کوي چې ووايي هغوی په دې درس کې څه زده کړي دي. (ځواب: موږ له يوې جملې څخه په ګټه اخيستنې سره د يوې کلمې معنا موندل زده کړل).

### ۳. د دويم متن بيا لوستل (۱۰ دقيقې)

١. د څلور پړاوونو يعنې ښوونکی تمثيلوي، ښوونکی او زده کوونکي يې په ګډه لولي، يعنې زده کوونکي يې په دوه کسيزه توګه لولي او زده کوونکي يې پخپله لولي، په کارولو سره لومړی متن له زده کوونکو سره بيا لوستل.

### تکرار او کورنۍ دنده (۵ دقيقې)

**۱. تکرار:** د شارحې او کامې د کارولو تکرار
**۲. کورنۍ دنده:** ښوونکی زده کوونکو ته وايي چې جملې په کورونو کې په خپلو کتابچو کې وليکي او دوهم متن بيا ولولي او د املا د تمرين لپاره د کلمو تمرين ترسره کړي.

د حسن خط فعاليت، ارزونه او کورنۍ دنده (۴۰ دقيقې)

## فرعي موضوعګانې: ورزش او د روغتیا ترانه

### د زده کړې موخې:
۱- د ځورونو په ګوته کول او پر وړاندې یې مثبت غبرګون ښودل.
۲- د نوښتي لیکنې د کیسې بشپړول.
۳- له مناسب لحن،حرکاتو او٪ ۹۵ سموالي سره د متن لوستل.

### ۱. غوږنیول او خبرې کول (۱۰ دقیقې)

۱. ښوونکی وایي چې د نن ورځې په درس کې به د مثبت چلند او د ځورولو د مخنیوي په اړه خبرې وکړو. ځورول په دې معنا دي چې یو زده کوونکی بل زده کوونکي ته له کوم دلیله ځوروي. د مثال په توګه: له ځانه د کوچني زده کوونکي وهل، د هلک له خوا د نجلۍ وهل کیدل، د یو چا په بد نامه یادول او داسې نور.
۲. زده کوونکو ته و وایاست چې په درسي کتابونو کې انځورونو ته وګوري. چې په انځورونو کې څه شیویني. په انځورونو کې ځینې زده کوونکي ځینې نور ځوروي.
۳. زده کوونکو ته و وایاست چې هغوی به اوس د یوه حالت په اړه معلومات واوري او وروسته به د خپل څنګ له ملګری سره د حالت په اړه بحث وکړي. زده کوونکو ته دغه حالت ولولئ: ذبیح الله یو کوچنی هلک دی او له فوټبال سره ډېره مینه لري. زلمی چې تر ذبیح الله لوی هلک دی غواړي د فوټبال پر ځای والیبال وکړي. زلمي د ذبیح الله توپ په ډېر زور او شدت سره په پښه ووهلو او توپ د ذبیح الله پر مخ ولګید ځکه چې زلمی نه غوښتل فوټبال وکړي.
۴. زده کوونکو ته و وایاست چې د تمرین کتابونو ته وګوري. دوی د تمرین په کتابونو کې د انځورونو په اړه درې پوښتنې ویني. له زده کوونکو څخه وغواړئ د دې پوښتنو په اړه په دوه کسیزه او یا درې کسیزه توګه بحث وکړي. پوښتنې په لاندې ډول دي:
- څه ډول کړنو او کارونو ته ځورول ویل کیږي؟
- څه فکر کوئ چې ذبیح الله څه احساس کاوه؟ څه فکر کوئ چې زلمي څه احساس کاوه؟
- که تاسو د زلمي پر ځای وای څه به مو کړي وای؟
۵. زده کوونکو ته و وایاست چې خپل ځوابونه له ټولګیوالو سره شریک کړي او د پوښتنو په اړه ورسره بحث وکړئ.
٦. له زده کوونکو وغواړئ د ځورونې هغه پیښې چې دوی په ټولګي، ښوونځي یا کلي کې لیدلې دي له نورو زده کوونکو سره شریکې کړي او په اړه یې لنډ بحث وکړي. له زده کوونکو وغواړئ چې د دې ځورونو په اړه د دوی عکس العمل او ځواب څه و؟ دوی د دې ځورونو په اړه څه احساس کوو؟
۷. زده کوونکو ته وواياست چې موږ باید د ځورولو چلند وپېژنو او د نورو له ځورولو څخه ډډه وکړو. موږ باید له خپلو ټولګیوالو او ملګرو سره په ګډه ژوند وکړو او د یو بل له ځورولو څخه په کلکه ډډه وکړو. تل باید یو له بل سره مثبت چلند وکړو.




### ۲. نوښتي لیکنه (۱۵ دقیقې)

۱. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې هغوی به اوس د مثبت چلند او د ځو رولو د مخنیوي په اړه یوه کیسه ولیکي.
۲. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې د درسي کتاب جملې او د چوکاټ کلمې یو له بل سره په ګډه ولولي.
۳. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې د تمرین په کتابونو کې د چوکاټ د کلمو په کارولو سره په تشو ځایونو کې په دوه کسیزه توګه جملې جوړې کړي او نیمګړې کیسه دې بشپړه کړي.
۴. ښوونکی په ټولګي کې ګرځي او هغو زده کوونکو ته چې ستونزې لري مرسته او لارښوونه کوي.
۵. ښوونکی له څو زده کوونکو غواړي چې خپلې بشپړې کړې کیسې ټولګیوالو ته و وایي.

### ۳. د لومړي او دویم متن بیا لوستل (۱۰ دقیقې)

ښوونکی له دوو پړاوونو (لکه زده کوونکي په دوه کسیزه توګه لولي، زده کوونکي یې پخپله لولي)، څخه په ګټه اخیستنې لومړی او دوهم متن له زده کوونکو سره بیا لولي.

### تکرار او کورنۍ دنده (۵ دقیقې)

**۱. تکرار:** د ځورونو په ګوته کول او پر وړاندې یې د مثبت غبرګون د ښودلو تکرارول.

**۲. کورنۍ دنده:** د زده کوونکو له خوا د لومړي او دوهم متن لوستل. نوښتي کیسې بشپړولو کیسې ته د یو انځور د ورزیاتولو او په کور کې کیسه یو چاته لولي.

## فرعي موضوع: تکرار او دوامداره ارزونه

**د زده کړې موخې:**

۱- له فعل سره د اشاري ضمیرونو سم کارول.
۲- له کلمو څخه تر ټولو د عامو مترادفو کلمو پېژندنه او پېل کول.
۳- شارحه (:) او کامه (،) کارول.
٤- له٪ ۹۰ سموالي سره متن لوستل.
٥- د کلمې او جملې په کچه له مناسب لحن او فشار څخه په ګټې اخیستلو سره متن لوستل.
٦- له٪ ۸۹ سموالي سره کلمې او جملې لوستل.

### ۱. کلمې او جملې (۱۰ دقیقې)

۱. ښوونکی له فعل سره د اشاري ضمیرونو سم کارول تکراروي.
۲. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې د درسي کتاب (الف) تمرین ترسره کړي.
۳. ښوونکی له کلمو څخه تر د ټولوعامو مترادفې او متضادې کلمې تکراروي
٤. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې د درسي کتاب (ب) تمرین ترسره کړي.
٥. ښوونکی د شارحې او کامې کارول تکراروي.
٦. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې د درسي کتاب (ج) تمرین ترسره کړي.
۷. ښوونکی د زده کوونکو ځوابونه ګوري.
۸. هر زده کوونکي د دې وړتیا ښودلې ده چې دا فعالیت په ښه توګه ترسره کړي. (له٪ ۹۰ پورته د سمې کچې لپاره△، د٪ ۷۰ - ۹۰ ترمنځ لپاره ^ او تر٪ ۷۰ ټیټې کچې لپاره / نښه کاروي. له هغو زده کوونکو سره چې له ٪۷۰ یا تر دې ټیټې نومرې لري باید بله اونۍ د همدې تمرین په برخه کې مرسته وشي.

### ۲. د لومړي او دویم متن بیا لوستل (۱۰ دقیقې)

۱. ښوونکی زده کوونکو ته دوه دقیقې وخت ورکوي چې په دوه کسیزه توګه لومړی یا دوهم متن ولولي.
۲. ښوونکی د زده کوونکو له څو تنو څخه غوښتنه کوي چې د ټولګي مخې ته راشي.
۳. ښوونکی هغوی ته وایي چې هره دوه تنه د متن یوه برخه لولي. هغوی باید متن په روانۍ سره او د مناسب لحن او حرکاتو په کارولو سره ولولي چې هغه ګرامري نښې منعکس کړي چې هغوی لوستلې دي.
٤. ښه غور ونیسي. کله چې اته(۸ )زده کوونکي په لوستلو بوخت وي، ښوونکی د هغوی د لوستلو څرنګوالی مشاهده کوي او خپله مشاهده د پرله پسې ارزونې په کتاب کې لیکي. له هغه زده کوونکو سره چې په ښه توګه دا فعالیت ترسره نه کړي، باید بله اونۍ مرسته وشي.



### ۳. املا (۱۵ دقیقې)

۱. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې هغوی به یو څو کلمې او جملې ولیکي.
۲. ښوونکی زده کوونکو ته د درسي کتابونو د ټرلو او د تمرین کتابونو له پرانیستلو څخه وایي. ښوونکی لومړی کلمه په کراره وایي او څلور ځلې یې تکراروي. کلمه دا ده: **زکریا**
۳. ښوونکی همدغه کار د لاندې اتو(۸)کلمو لپاره هم ترسره کوي.
**۱-ورزش، ۲- پیاز، ۳-ذره بین، ۴- کاغذ، ۵- عذاب، ٦-زرمینه، ۷- تذکره، ۸- کاریز.**
٤. ښوونکی لومړی جمله په کراره لولي او (۴) ځلې یې په کراره کراره تکراروي.
**۱. زرمینه خپلې روغتیا ته پام کوي.**
٥. ښوونکی همدا کار د لاندې(۳) جملو لپاره ترسره کوي.
**۲. زکریا هره ورځ ورزش کوي.۳. زموږ سیمه کاریز لري. ۴. زه هر سهار ورزش کوم.**
٦. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې خپلې د تمرین کتابچې د کتلو لپاره راوړي. ښوونکی د هغوی املا ګوري او نومرې ورکوي.
۷. ښوونکي د زده کوونکو نومرې د پرله پسې ارزونې په کتاب کې ثبتوي.

### تکرار او کورنۍ دنده (۵ دقیقې)

۱. **تکرار:** هغه څه تکرارول چې زده کوونکو په دې اونۍ کې زده کړې دي.
۲. **کورنۍ دنده:** ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې په کورونو کې د درسونو د هغو برخو بیا لیکل او لوستل دې ترسره کړي چې د اونۍ په جریان کې یې ورسره ستونزې لرلې.

د حسن خط فعالیت، ارزونه او کورنۍ دنده (۴۰ دقیقې )

## د شپږمې برخې عمومي کتنه: اصلي موضوع: ملي او فرهنګي ارزښتونه

**د لیک او لوست موخې:**

د دې برخې تر پایه به زده کوونکي د دې وړتیا ولري چې:

١. د کلمو د تجزیه په مورفیمونو دکلمو د جوړښت اړونده له پوهې څخه ګټه واخلي.
٢. په سم ډول شخصي ضمیرونه وکاروي او فعلونو ته مطابقت ورکړي.
٣. راتلونکي زمانه وکاروي (د حال زماني په پرتله)
٤. د متن له سیاق او سباق څخه په ګټه اخیستنې سره د کلمو په معنا پوه شي.
٥. په کیسو او معلوماتي متنونو کې ښودل شو ي ناآشنا کلمې زده کړي او وې کاروي.
٦. دا وړاندوینه کول چې یو روایتي غیري داستاني متن به د څه په باره کې وي، له انځور، سرلیک، مهمو کلمو او مخکینۍ پوهې څخه کار واخلي.
٧. د پوهې د روښانتیا لپاره د یوه متن بیا لوستل.
٨. د لوستلو شویو کیسو مفهوم ترلاسه کړي.
٩. په مناسب لحن او حرکاتو سره او له٪ ٩٥ سموالي سره د دې برخې متنونه ولولي.
١٠. د ژوندانه له تجربو سره د یوې کیسې د پېښو، کرکټرونو او عملونو ته تراو ورکړي.
١١. له٪ ٨٠ سموالي سره واقعیتي او استنباطي پوښتنې ځواب کړي.
١٢. په سمه توګه د /z/ غږ او د ض او ظ تورو درلودونکي کلمې ولیکي.
١٣. په تدریجي ډول پېچلې کلمې له٪ ٨٠ سموالي سره ولیکي.
١٤. یو پاراګراف ولیکي چې مناسبې ګرامري نښې پکې کارول شوې وي.
١٥. زده کوونکي به په نسخ خط سره سوالیه جملې د کرسۍ خط پر مخ په صحیح او ښکلې بڼه ولیکلای شي.

**د حسن خط فعالیت (۳۵دقیقې)**

ښوونکي دې د لارښود د مقدمې د (۲۲- ۲۳) مخونو د لارښوونو سره سم سوالیه جملې تدریس کړي.

**د حسن خط ارزونه او کورنۍ دنده(۵ دقیقې)**

۱- له ځو زده کوونکو څخه د کلمو د ښایسته لیکلو په اړه پوښتنه وکړي.
۲- زده کوونکي دې له کړکي یا پنسل قلم سره سوالیه جملې په کورونو کې تمرین کړي.

**د ټولنیزي عاطفي زده کړې موخې:**

زده کوونکي به د دې برخې ترپایه دا وړتیا ولري چې:
د یوې ښځې لاملوته په ګوته او تشریح کړي.
هغه ټګلارې په ګوته کړي چې په رغنیز ډول د ښځو د حللو لپاره کارول کېږي.
د ښځو د هوارې کړه وړه او ګامونه عملاً څرګند کړي.
**د لوست پیل (۵دقیقې):** د لوست دپیل ټول لومړني فعالیتونه دې ترسره شي.

**د دې برخې ځانګړي فعالیتونه**

١. ښوونکي زده کوونکو ته وایي چې د مناسبو ګرامري نښو د کارولو پر مټ یو پاراګراف ولیکي. پاراګراف به د هغه څه په اړه وي چې تاسي په دې اونۍ کې زده کړي وي. پاراګراف باید یو عنواني جمله، معلومات او پایلي جمله ولري. عنواني جمله له پرانیستونکي جملې څخه عبارت ده چې اصلي مفهوم پکې نغښتی وي.
٢. ښوونکي زده کوونکو ته د عنواني جملې، جزیاتو او پای جملې ولري د یو پاراګراف د لیکلو د څرنګوالي پړاوونه تشریح کوي.
٣. ښوونکي تشریح کوي چې عنواني جمله تر ډېره د اصلي مفهوم په خبر ده چې هغوی یې له متن څخه استنباط کول ترسره کړي.
٤. ښوونکي روښانه کوي چې جزیات تر ډېره د هغه څه په اړه لنډیز ته ورته دي چې هغوی په دې اونۍ کې زده کړي دي.
٥. ښوونکي تشریح کوي چې وروستۍ جمله تر ډېره د پایلې د استنباط مهارت دی چې هغوی یې تمرینونه ترسره کړي دي.
٦. ښوونکي پر زده کوونکو ټینګار کوي چې هغه ګرامري نښې وکاروي چې هغوی دمخه زده کړې دي.
٧. زده کوونکي جملې خپل د تمرین په کتابچو ته نقلوي.
٨. ښوونکي له دوه یا دریو زده کوونکو څخه غوښتنه کوي چې پاراګرافونه ټولګي ته ولولي.
٩. ښوونکي زده کوونکو ته وایي چې په کور کې د پاراګراف لیکل بشپړ کړي.

**د لوستلو متن (۲۵ دقیقې)**

١. ښوونکي ته یادونه: له لوستلو څخه وړاندې تمرین.
٢. ښوونکي لاندې جمله پر تخته لیکي: **زه نیالګي کرم**
٣. ښوونکي دا جمله زده کوونکو ته لولي. ښوونکي وایي، زه دا جمله په یو بل ډول هم ویلای شم چې شاید دا کار به سبا پېښ شي بیا نو جمله دا رنګه لیکلی شي: **زه به نیالګی وکرم** بیا ښوونکي زده کوونکو ته وایي چې هغه کلمه چې بدلون مومي د عمل کلمې (فعل) په نوم یادېږي. ښوونکي یو څو نورې بېلګې زده کوونکو ته وړاندې کوي.
٤. ښوونکي زده کوونکي خپل درسي کتاب ته ځیر کېدلو او په ګډه سره د یو څو جملو تمرین کولو ته رابولي. هغه کلمه چې لاندې ترې خط کښل شوی، د عمل کلمه (فعل) ده. دا هماغه کلمه ده چې بدلون مومي.
٥. ښوونکي له زده کوونکو د لومړیو دوو کلمو تمرین کوي.
٦. ښوونکي زده کوونکو ته په دوه کسیزه توګه د کار کولو او د نورو جملو د لوستلو او جملې په راتلونکې زمانې ته د بدلولو وایي .
٧. ښوونکي له هغو زده کوونکو سره مرسته کوي چې ستونزې لري.
٨. لږ وخت وروسته، ښوونکي د زده کوونکو ځوابونه ګوري.
٩. ښوونکي له زده کوونکو غوښتنه کوي چې و وایي هغوی په دې درس کې څه زده کړي دي. (ځواب: د راتلونکې زمانې کارول).

**فرعي موضوع: د غزني لرغونی ښار        توری: ظ**

## د زده کړې موخې:

۱. د ظ/ غږ او توري لرونکو کلمو سم لیکل.
۲. انځور، سرلیک، مهمو کلمو او مخکینۍ پوهې څخه ګټه اخیستلو دا وړاندوینه کول چې یوه کیسه یا متن به د څه په اړه وي.
۳. د پوهې د وضاحت لپاره د یوه متن بیا لوستل
٤. له یوه لوستل شوي متن څخه لنډ مفهوم اخیستل.

## ۱. توري او کلمې (۵ دقیقې)

۱. ښوونکی زده کوونکو ته وايي چې د(**ظ**) او (**ض**) توري سره ورته غږ لري. ځینې کلمې د (**ظ**) توري او ځینې نور یې بیا د (**ض**) توري لري.
۲. ښوونکی زده کوونکو ته وايي چې په دې اونۍ کې به د هغو کلمو تمرین کوي چې د (ظ) توری پکې کارول کېږي.
۳. ښوونکی لاندینۍ کلمې پر تخته لیکي: (**ظریف، محفوظ**) ښوونکی له زده کوونکو څخه غوښتنه کوي چې کلمه په لوړ غږ ولولي او کوم توری د/ظ/غږ لري. ښوونکی یو څو زده کوونکو ته اجازه ورکوي چې توري ته ګوته ونیسي.
٤. ښوونکی زده کوونکو د درسي کتاب لوستلو ته رابولي. ښوونکی کلمې په داسې حال کې زده کوونکو ته لولي چې هغوی خپلې ګوتې په کلمو تېروي. بیا زده کوونکي هغه کلمې په دوه کسیزه توګه لولي.
۵. ښوونکی زده کوونکو ته وايي چې د تمرین په کتابونو کې د کلمو لیکل تمرین کړي.
٦. ښوونکی زده کوونکو ته وايي چې هغوی باید د دغو کلمو لیکل هر ورځ په کور کې تمرین کړي.
۷. ښوونکی زده کوونکو ته وايي چې هغوی به د اونۍ په پای کې د دې کلمو په باره کې املا ولري.

## ۲. د لومړي متن لوستل (۲۵ دقیقې)

### له لوستلو څخه مخکې

۱. ښوونکی زده کوونکو ته وايي چې سرلیک او انځور ته وګوري او وړاندوینه وکړي چې متن به د څه په اړه وي. ( په خپلو منځونو کې شریکول او بیا له ټولګیوالو سره شریکول). زده کوونکي باید خپلو درسي کتابونو ته ځیر شي.
۲. ښوونکی درې کلیدي کلمې له زده کوونکو سره معنا او په جملو کې یې استعمالوي.

### د لوستلو پر مهال

۱. ښوونکی تمثیل کوي، ښوونکی او زده کوونکي په ګډه لوستل کوي، زده کوونکي په دوه کسیزه توګه  لوستل کوي.
۲. ښوونکی زده کوونکو ته ښیي چې څرنګه کولای شي د تم کېدلو او فکر کولو ستراتیژۍ څخه ګټه واخلي.

### له لوستلو څخه وروسته

۱. ښوونکی له زده کوونکو څخه پوښتنه کوي چې ایا د کیسې په اړه یې وړاندوینه سمه ده؟ هو یا نه.
۲. ښوونکی له زده کوونکو څخه لاندې پوښتنې کوي:



**- پوښتنه: ښوونکي، ظریف او نور زده کوونکي د کوم ځای لیدلو ته بوتلل؟**

**ځواب:د غزني د لرغونو آثارو لیدو ته یې بوتلل.**

**- پوښتنه: په غزني کې کوم لرغوني آثار شته؟**

**ځواب: په غزني کې لوړ منارونه او د محمود غزنوي قبر او باغ شته.**

**پوښتنه: ستاسو په سیمه کې کوم لرغوني ځایونه او ودانۍ شته؟**

**ځواب:**

**پوښتنه: که خپل لرغوني آثار و نه ساتو څه به پېښ شي؟**

**ځواب: له منځه به لاړ شي؟**

۳. ښوونکي زده کوونکو ته له متن څخه د پایلو د استنباط کولو لاره ښيي(د لا ډېرو معلوماتو لپاره د برخې عمومي کتنه وګورئ.
٤. هغه څه چې زه پرې پوهېږم: **د غزني لرغونی ښار دی.**

هغه څه چې ما زده کړل: **غزني ډېر پخواني ستر منارونه لري.**

پایله: **غزني د اسلامي نړۍ د علمي او فرهنګي مرکز په توګه منل شوی دی.**

## تکرار او کورنۍ دنده (۵ دقیقې)

۱. **تکرار:** ښوونکی له زده کوونکی سره (ظ) غږ درلودونکې ځینې کلمې تکراروي.
۲. **کورنۍ دنده:** زده کوونکي توري او کلمې په کورونو کې په خپلو کتابچو کې لیکي او دوهم متن تکراروي.

## فرعي موضوع: د غزني لرغونی ښار

**د زده کړې موخې:**

۱. له فعل سره د اشاري ضميرونو سم کارول.
۲. د متن له سياق او سباق څخه په ګټه اخيستنې سره د کلمو معنا استنباط کول.
۳. په مناسب لحن او حرکاتو سره او له ٪۹۵ سموالي سره د متن روان لوستل.

### ۱. کلمې او جملې (۱۰ دقيقې)

۱. ښوونکی په تخته د لاندې دوه(۲) بېلګو په ليکلو سره درس پيلوي: هوسۍ لوست لولي او (هغه) لوست لولي. ښوونکی يې ورته تشريح کوي چې (**هوسۍ**) نوم پر ځای (**هغه**) کارول شوی.
۲. ښوونکی پر تخته د ډيوه او سپوږمۍ ښوونځي ته ځي او (هغوی) ښوونځي ته ځي، ليکلو سره بله بېلګه وړاندې کوي. ښوونکی تشريح کوي چې د دوی پر ځای موږ کارول کېدای شي. ښوونکی تشريح کوي چې (**هغه**) او (**هغوی**) دواړه اشاري ضميرونه دي چې د خلکو يا شيانو د نومونو پر ځای کارول کېدای شي.
۳. ښوونکی زده کوونکو ته وايي چې خپل درسي کتابونو ته ځير شي. څلور(۴)جملې او يو چوکاټ ورکړل شوی دی. ښوونکی له زده کوونکو سره له بکس څخه د سم اشاري ضمير په اخيستلو او په لومړۍ جمله کې د تش ځای په ډکولو کې مرسته کوي. بيا زده کوونکي په ګډه سره کار کولو ته ادامه ورکوي. کله چې زده کوونکي پر کار بوخت وي، ښوونکی په ټولګي کې ګرځي چې له هغو زده کوونکو سره مرسته وکړي چې ستونزې لري.
۴. ښوونکی له زده کوونکو څخه غوښتنه کوي چې و وايي هغوی په دې درس کې څه زده کړي دي. (ځواب: د اشاري ضمير کارول)

### ۲. د لغتونو زېرمه (۱۵ دقيقې)

۱. ښوونکی زده کوونکو ته وايي چې په ښه توګه د جملو په لوستلو سره د کلمې مفهوم پيدا کړي.
۲. ښوونکی لومړۍ جمله پر تخته ليکي چې يوه کلمه پکې کمه ليدل کېږي: حامد خيل ځان (     ) ساتي.
۳. ښوونکی زده کوونکو ته وايي چې سمه کلمه (پاک) ده.
٤. ښوونکی زده کوونکو ته وايي چې خپل درسي کتابونو ته ځير شي. هغوی پنځه جملېويني. ښوونکی لومړۍ دوه جملې له زده کوونکو سره ترسره کوي.
۵. ښوونکی زده کوونکو ته وايي چې دوه نورې جملې په دوه کسيزه توګه ترسره کړي. چټک زده کوونکي کولای شي همدې تمرين ته په خپل د تمرين په کتابونو کې هم ادامه ورکړي.
٦. کله چې زده کوونکي پر کار بوخت وي، ښوونکی په ټولګي کې ګرځي ترڅو له هغو زده کوونکو سره مرسته وکړي چې ستونزې لري. له لږ وخت وروسته، ښوونکی د زده کوونکو ځوابونه ګوري.
۷. ښوونکی له زده کوونکو څخه غوښتنه کوي چې په دې درس کې يې څه زده کړي دي. (ځواب: موږ د جملې په کارولو سره د يوې کلمې معنا پيدا کول، زده کړل.)




### ۳. د لومړي متن بيا لوستل (۱۰ دقيقې)

۱. له څلورو پړاوونو څخه په ګټې اخيستنې ښوونکی تمثيلوي، ښوونکی او زده کوونکي يې په ګډه لولي، يعنې زده کوونکي يې په دوه کسيزه توګه لولي او زده کوونکي يې پخپله لولي، په کارولو سره لومړی متن له زده کوونکو سره بيا لولي.

### تکرار او کورنۍ دنده (۵ دقيقې)

۱. **تکرار:** د اشاري ضميرونو مفهوم تکرارول
۲. **کورنۍ دنده:** ښوونکی زده کوونکو ته وايي چې کلمې په کورونو کې په خپلو کتابچو کې وليکي او لومړی متن بيا ولولي او د املا د تمرين لپاره د کلمو تمرين ترسره کړي.

**فرعي موضوع: زموږ هېواد**

**د زده کړې موخې:**

۱. په مورفيمونو د کلمو تجزيه کول او په اړه يې د کلمو د جوړښت د پوهې کارول.
۲. انځور، سرليک، مهمو کلمو او مخکينۍ پوهې څخه ګټه اخيستلو د اوړاندوينه کول چې يوه کيسه يا متن به د څه په اړه وي.
۳. د پوهې د وضاحت لپاره د يوه متن بيا لوستل.
٤. له يوه لوستل شوي متن څخه پايلې استنباط کول.

**۱. کلمې او جملې (۱۰ دقيقې)**

۱. ښوونکی د لومړۍ کلمې جوړښت پر توره تخته ليکي کټ مټ هغسې لکه په درسي کتاب کې چې ليکل شوی دی.
۲. ښوونکی ببلګه په لوړ غږ زده کوونکو ته لولي. بيا ښوونکی بېلګه له زده کوونکو سره يوځای لولي.
۳. ښوونکی تشريح کوي چې څرنګه يوه کوچنۍ برخه کلمې ته ورزياته شي، نو د کلمې معنا بدلېږي.
٤. ښوونکی زده کوونکو ته وايي چې خپلو درسي کتابونو ته ځير شي او لومړۍ دوه بېلګې له زده کوونکو سره لولي.
٥. ښوونکی زده کوونکو ته وايي چې په درسي کتابونو کې په دوه کسيزه توګه کلمې ولولي.
٦. ښوونکی زده کوونکو ته وايي چې د تمرين په کتابونو کې د کلمو ليکل تمرين کړي.
۷. کله چې زده کوونکي د کلمو په لوستلو بوخت وي، ښوونکی په ټولګي کې ګرځي چې له هغو زده کوونکو سره مرسته وکړي چې ستونزې لري.

**۲. د دويم متن لوستل (۲۵ دقيقې)**

**له لوستلو څخه مخکې**

۱. ښوونکی زده کوونکو ته وايي چې سرليک او انځور ته وګوري او وړاندوينه وکړي چې متن به د څه په اړه وي. (خپلو منځو کې شريکول او له ټولګيوالو سره شريکول). زده کوونکي بايد خپلو درسي کتابونو ته ځير شي.
۲. ښوونکی درې کليدي کلمې له زده کوونکو سره معنا او په جملو کې يې استعمالوي.

**د لوستلو پر مهال**

۱. ښوونکی تمثيل کوي، ښوونکی او زده کوونکي په ګډه لوستل کوي، زده کوونکي په دوه کسيزه توګه لوستل کوي.
۲. ښوونکی زده کوونکو ته ښيي چې څنګه کولای شي د تم کېدلو او فکر کولو څخه له ستراتيژۍ څخه ګټه واخلي.

**له لوستلو څخه وروسته**

۱. ښوونکی له زده کوونکو څخه پوښتنه کوي چې ايا د کيسې په اړه يې وړاندوينه سمه ده؟ هو يا نه.
۲. ښوونکی له زده کوونکو څخه لاندې پوښتنې کوي:


کلمې او جملې

| ځم | زه + ځم | زه ځم |
| --- | --- | --- |
| لاړه | موږ + لاړه | موږ لاړه |
| ګورو | موږ + خبرې ګورو | موږ خبرې ګورو |
| ځي | هغوی + ځي | هغوی ځي |

ونو ته پام

**-پوښتنه: خيبر او سهراب په کوم ځای کې ګرځېدل؟**
**ځواب: په ننګرهار کې د سراج العمارت په باغ کې.**
**-پوښتنه: خيبر سهراب ته څه وويل؟**
**ځواب: ښاخ دې ولې مات کړ؟**
**-پوښتنه: ولې بايد د ونو ښاخونه مات نکړو؟**
**ځواب: ونې وچيږي او له منځه ځي.**
**-پوښتنه: تاسو د خپلې سيمې له ملي شتمنيو څخه څنګه ساتنه کوئ؟**
**ځواب: مات يې نه کړو، بل چاته اجازه ورنه کړو چې خراب يې کړي، پاک يې وساتو.**

۳. ښوونکي زده کوونکو ته له متن څخه د پايلو د استنباط کولو طريقه ښيي(د ډېرو معلوماتو لپاره د برخې عمومي کتنه وګورئ).
٤. **زموږ د هېواد ملي شتمنۍ اثار، منارونه او نور دي.**
پايله: **موږ بايد له خپلو ملي شتمنيو څخه ساتنه وکړو.**

**تکرار او کورنۍ دنده (۵ دقيقې)**

۱. **تکرار:** ښوونکی له زده کوونکی سره د پايلې استنباط کولو مفهوم تکراروي.
۲. **کورنۍ دنده:** زده کوونکي توري او کلمې په کورونو کې په خپلو کتابچو کې ليکي او دوهم متن تکراروي.

**فرعي موضوع: زموږ هېواد**

**د زده کړې موخې:**

۱- د حال زمانه په راتلونکې زمانه بدلول.
۲- د متن له سیاق او سباق څخه په ګټه اخیستنې سره د کلمو معنا پیدا کول.
۳- په مناسب لحن او حرکاتو سره او٪ ۹۵ سموالي سره د متن لوستل.

### ۱. کلمې (۱۰ دقیقې)

۱. ښوونکی لاندې جمله پر تخته لیکي: **زرغونه ډوډۍ خوري.** ښوونکی دا جمله زده کوونکو ته لولي. ښوونکی وایي، زه دا جمله په یو بل ډول هم ویلای شم چې شاید دا کار به سبا پېښ شي. بیا نو جمله داسې لیکلای شو: **زرغونه به ډوډۍ وخوري.** ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې هغه کلمه چې بدلون مومي، د عمل کلمې (فعل) په نوم یادېږي. ښوونکی یو څو نورې بېلګې زده کوونکو ته وړاندې کوي.
۲. ښوونکی زده کوونکي خپلو درسي کتابونو ته ځیر کوي او په ګډه سره دوی د یو څو جملو د تمرین کولو ته رابولي. هغه کلمه چې لاندې ترې خط کښل شوی، د عمل کلمه (فعل) ده. دا هماغه کلمه ده چې بدلون مومي.
۳. ښوونکی لومړی دوه جملې له زده کوونکو سره تمرین کوي.
٤. ښوونکی زده کوونکو ته په دوه کسیزه توګه د کار کولو او د نورو جملو د لوستلو او جملې په راتلونکې زمانه کې د بدلولو وایي .
٥. ښوونکی له هغو زده کوونکو سره مرسته کوي چې ستونزې لري.
٦. لږ وخت وروسته، ښوونکی د زده کوونکو ځوابونه ګوري.
٧. ښوونکی له زده کوونکو غوښتنه کوي چې و وایي هغوی په دې درس کې څه زده کړي دي. (ځواب: د راتلونکې زمانې کارول).

### ۲. د لغتونو زېرمه (۱۵ دقیقې)

۱. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې په ښه توګه د جملو په لوستلو سره د کلمې مفهوم پیدا کوي.
۲. ښوونکی یوه جمله پر تخته لیکي چې یوه کلمه پکې کمه لیدل کېږي: فرید(      ) هلک دی.
۳. ښوونکی زده کوونکو ته د سم ځواب پیدا کول ښيي(پاک).
٤. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې خپلو درسي کتابونو ته ځیر شي. هغوی شپږ(٦) جملې ویني. ښوونکی لومړی دوه جملې له زده کوونکو سره ترسره کوي.
٥. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې دوه(۲) نورې جملې په دوه کسیزه توګه ترسره کړي. چټک زده کوونکي کولای شي همدې تمرین ته په خپل د تمرین کتابونو کې هم



ادامه ورکړي. کله چې زده کوونکو پر کار بوخت وي، ښوونکی په ټولګي کې ګرځي، تر څو له هغو زده کوونکو سره مرسته کړي چې ستونزې لري.
٦. لږ وخت وروسته، ښوونکی د زده کوونکو ځوابونه ګوري.
٧. ښوونکی له زده کوونکو څخه غوښتنه کوي چې و وایي هغوی په دې درس کې څه زده کړي دي. (ځواب: موږ د جملې په کارولو سره د یوې کلمې معنا پیدا کول زده کړل.)

### ۳. د دویم متن بیا لوستل (۱۰ دقیقې)

د څلور پړاوونو څخه په ګټې اخیستنې ښوونکی تمثیلوي، ښوونکی او زده کوونکي یې په ګډه لولي، یعنې زده کوونکي یې په دوه کسیزه توګه لولي او زده کوونکي یې پخپله لولي، په کارولو سره دوهم متن له زده کوونکو سره بیا لوستل.

### تکرار او کورنۍ دنده (۵ دقیقې)

۱. **تکرار:** د حال زمانه په راتلونکې زمان بدلول.
۲. **کورنۍ دنده:** ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې جملې په کورونو کې په خپلو کتابچو کې ولیکي او دوهم متن بیا ولولي او د املا د تمرین لپاره د کلمو تمرین ترسره کړي.

د حسن خط فعالیت، ارزونه او کورنۍ دنده (۴۰ دقیقې )

## فرعي موضوعګانې: د غزني لرغونی ښار او زموږ هېواد

**د زده کړې موخې:**

۱- د ځوروني په ګوته کول او په اړه يې مثبت غبرګون ښودل.

۲- د نوښتي ليکنې د کيسې بشپړول.

۳- له مناسب لحن،حرکاتو او٪ ۹۵ سموالي سره د متن لوستل.

### ۱. ځورنيول او خبرې کول (۱۰ دقيقې)

۱. ښوونکی زده کوونکو ته وايي چې د نن ورځې په درس کې به د ځورولو په اړه خبرې وکړو. ځورول په دې معنا دي چې يو زده کوونکی بل زده کوونکی بې له کوم دليله ځوروي.

- ځورول کېدای شی د ځينو ناسمو خبرو په کولو سره منځ ته راشي لکه: يو چا ته په سپک نامه غږ کول، په يو چا باندې ملنډې وهل، يو چا ته د هغه د قوم په نام غږ کول، په يو چا پورې تور لګول، د يو چا تهديدول او داسې نور.

- ځورول کېدای شي د ځينو کارونو په ترسره کولو سره منځ ته راشي لکه: د يو چا محرومول، په ډله ييزه توګه د يو چا وهل، له يو چا څخه د جامو يا کاليو اخيستل او يا هم يو څوک په ناپاکو يا ختيو يا نورو چټلو شيانو ککړول يا پکې غورځول او داسې نور.

- ځورول کېدای شی د بدن په واسطه هم منځ ته راشي لکه: له يوه شي څخه له يو چا سره په قصدي توګه تماس کول، وهل،لاړې توکول، د يو چا غورځول، ځان ښودل، پورې وهل، حمله کول او داسې نور.

۲. زده کوونکو ته و واياست چې درسي کتابونو ته وګوري. ورڅخه پوښتنه وکړئ چې په انځور کې څه شی وينې؟ دوی د انځور له ليدلو څخه څه ډول احساس کوي؟ څوک خوشحاله دي؟ څوک خفه دي؟ هلکان څه کار کوي؟ ستاسو په نظر پر چا باندې ملنډې وهل کېږي؟ په انځور کې پر ماشوم باندې له پورتنيو ياد شوو ملنډو څخه کوم ډول ملنډې وهل کېږي؟ څو زده کوونکو ته وخت ورکړئ چې خپل نظرونه او ځوابونه له ټولګيوالو سره شريک کړي.

۳. زده کوونکو ته و واياست چې د تمرين کتابونو ته وګوري. د تمرين په کتابونو کې پنځه جملې دي او له هرې جملې سره څو کلمې ليکل شوې. هره کلمه يو ډول ځورول بيانوي. له زده کوونکو وغواړئ چې د هرې جملې اړونده کلمه پيدا کړي او و وايي چې دا څه ډول ځورونه ده.

۴. له زده کوونکو سره د پوښتنو او ځوابونو په اړه بحث وکړئ.

۵. د وخت د شتون په صورت کې له زده کوونکو وغواړئ د درسي کتاب د انځور په اړه د ټولګي په مخ کې تمثيل وکړي. د مختلفو حالتونو په اړه دې څو څو زده کوونکي د ټولګي په مخ کې تمثيل وکړي.

٦. د زده کوونکو له څو ډلو څخه وغواړئ چې د ټولګي مخې ته راشي او خپل تمثيل وړاندې کړي.

۷. له هر تمثيل وروسته له ځينو زده کوونکو وغواړئ چې و وايي په تمثيل کې څه ډول شخړې او ځورونې وې او دوی د هغه په اړه څه فکر کوي.

۸. زده کوونکو ته و واياست چې موږ کولی شو ځورول د ښو ښوونو له لارې، لکه: اشارې حالت او کلمې، وپېژنو.



### ۲. نوښتي ليکنه (۱۵ دقيقې)

۱. ښوونکی زده کوونکو ته وايي چې هغوی به اوس د ځورولو پېژندلو په اړه يوه کيسه وليکي.

۲. ښوونکی د درسي کتاب جملې او د چوکاټ کلمې له زده کوونکو سره يو ځای لولي.

۳. ښوونکی زده کوونکو ته وايي چې د تمرين په کتابونو کې د چوکاټ د کلمو په کارولو سره په تشو ځايونو کې په دوه کسيزه توګه جملې جوړې کړي او نيمګړې کيسه دې بشپړه کړي.

۴. ښوونکی په ټولګي کې ګرځي او هغو زده کوونکو ته چې ستونزې لري مرسته او لارښوونه کوي.

۵. ښوونکی له څو زده کوونکو غواړي چې خپلې بشپړې کړې کيسې ټولګيوالو ته و وايي.

### ۳. د لومړي او دويم متن بيا لوستل (۱۰ دقيقې)

ښوونکی له دوو پراوونو (لکه زده کوونکي په دوه کسيزه توګه لولي، زده کوونکي يې پخپله لولي)، څخه په ګډه اخيستنې لومړی او دوهم متن له زده کوونکو سره بيا لولي.

### تکرار او کورنۍ دنده (۵ دقيقې)

۱. **تکرار:** د يوې شخړې لاملونه په ګوته کول.

**کورنۍ دنده:** لومړی او دوهم متن بيا لوستل. د نوښتي کيسې بشپړول او يو انځور ورزياتول.

## فرعي موضوع: تکرار او دوامداره ارزونه

**د زده کړې موخې:**

۱- له فعل سره اشاري ضمیرونه کارول.
۲- د متن له سیاق او سباق نه په ګټه اخیستنې سره د کلمو معنا لاسته راوړل.
۳- د حال زمانه په راتلونکې زمانه بدلول.
۴- د متن لوستل له٪۹۰ سموالي سره.
۵- د کلمې او جملې په کچه له مناسب لحن او فشار څخه په ګټه اخیستلو سره متن لوستل.
۶- له٪ ۸۰ سموالي سره کلمې او جملې لیکل.

### ۱.کلمې اوجملې (۱۰ دقیقې)

۱. ښوونکی له فعل سره د اشاري ضمیرونو کارول تکراروي.
۲. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې د درسي کتاب (الف) تمرین ترسره کړي.
۳. ښوونکی د جملو په لوستلو سره د کلمې مفهوم او معنا پیدا کول تکراروي.
۴. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې د درسي کتاب (ب) تمرین ترسره کړي.
۵. ښوونکی د حال زمانه په راتلونکې زماني بدلول تکراروي.
۶. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې د درسي کتاب (ج) تمرین ترسره کړي.
۷. ښوونکی د زده کوونکو ځوابونه ګوري.
۸. ښوونکی د پرله پسې ارزونې په کتاب کې د زده کوونکو نومرې ثبتوي.

### ۲. د لومړي او دویم متن بیا لوستل (۱۰ دقیقې)

۱. ښوونکی زده کوونکو ته دوه دقیقې وخت ورکوي چې په دوه کسیزه توګه لومړی یا دوهم متن ژر ژر ولولي.
۲. ښوونکی د زده کوونکو له څلور(۴) جوړو څخه غوښتنه کوي چې د ټولګي مخې ته راشي.
۳. ښوونکی هغوی ته وایي چې هره جوړه به د متن یوه برخه لولي. هغوی باید متن په رواني او د مناسب لحن او حرکاتو په کارولو سره ولولي چې پای ټکی او د پوښتنې نښې منعکسې کړي.
۴. ښوونکی ټولګیوالو ته وایي چې ورو ورو متن له لوستونکي سره ولولي او ورته ښه غوږ ونیسي.کله چې اتو(۸) زده کوونکي په لوستلو بوخت وي، ښوونکی د هغوی د لوستلو څرنګوالی مشاهده کوي او خپله مشاهده د پرله پسې ارزونې په کتاب کې لیکي. له هغو زده کوونکو سره چې په ښه توګه دا فعالیت ترسره نه کړي، باید بله اونۍ مرسته وشي.



### ۳. املا (۱۵ دقیقې)

۱. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې هغوی به یو څو کلمې او جملې ولیکي.
۲. ښوونکی زده کوونکو ته د درسي کتابونو د تړلو او د تمرین کتابونو د پرانیستلو وایي.
۳. ښوونکی لومړی کلمه په کراره وایي او څلور(۴) ځلې یې تکراروي. کلمه دا ده: **(ظریف)** زده کوونکي کلمې لیکي.
۴. ښوونکی همدغه کار د لاندې(۸) کلمو لپاره هم ترسره کوي.
**۱- نظیفه، ۲- محفوظ، ۳- ظاهره، ۴- ظرفونه، ۵- نظر، ۶- لحاظ، ۷- مظلوم، ۸- لفظ.**
۵. ښوونکی لومړی جمله په کراره لولي او (۴) ځله یې تکرار وي. جمله دا ده:
**۱. زمونږ هېواد ښکلی دی.**
۶. ښوونکی همدا کار د لاندې (۳) جملو لپاره هم تکراروي.
**۲. په هېواد کې مو تاریخي آثار شته.**
**۳. زه غزني ته تللی وم ۴. په هرات کې منارونه دي.**
۷.ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې خپلې د تمرین کتابچې د کتلو لپاره راوړي.
ښوونکی د هغوی املا ګوري او نومرې ورکوي.
۸. ښوونکی د زده کوونکو نومرې د پرله پسې ارزونې په کتاب کې ثبتوي.

### تکرار او کورنۍ دنده (۵ دقیقې)

**۱. تکرار:** هغه څه تکرارول چې زده کوونکو په دې اونۍ کې زده کړي دي.
**۲. کورنۍ دنده:** ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې په کورونو کې د درسونو د هغو برخو بیا لیکل او لوستل دې ترسره کړي چې د اونۍ په جریان کې یې ورسره ستونزې لرلې.

د حسن خط فعالیت، ارزونه او کورنۍ دنده (۴۰ دقیقې)

**فرعي موضوع: افغانۍ** **توری: ض**

**د زده کړې موخې:**

۱. د/ض/غږ او توري لرونکي کلمو ليکل.
۲. دا وړاندوينه کول چې يوه کيسه يا متن به د څه په اړه وي له يو انځور، سرليک، مهمو کلمو او مخکينۍ پوهې څخه ګټه اخيستل.
۳. د پوهې د وضاحت لپاره د يوه متن برخې بيا لوستل
۴. له يوه لوستل شوي متن څخه پايلې استنباط کول.

**۱. توری او کلمې (۱۰ دقيقې)**

۱. ښوونکی زده کوونکو ته وايي چې د (ض) او (ظ) توری سره ورته غږ لري. ځينې کلمې د (ظ) توری او ځينې نور يې بيا د (ض) توری لري.
۲. ښوونکی زده کوونکو ته وايي چې په دې اونۍ کې به د هغو کلمو تمرين کوي چې د (ض) توری پکې کارول شوی وي.
۳. ښوونکی لاندينۍ کلمې پر تختې ليکي: **(ضيا، حوض)** ښوونکی له زده کوونکو څخه غوښتنه کوي چې کلمه په لوړ غږ ولولي. ښوونکی له زده کوونکو پوښتنه کوي چې کوم توری د(ض)غږ لري. ښوونکی څو زده کوونکو ته اجازه ورکوي چې توري ته ګوته ونيسي.
۴. ښوونکی زده کوونکي درسي کتاب لوستلو ته رابولي. ښوونکی کلمې په داسې حال کې زده کوونکو ته لولي چې هغوی خپلې ګوتې پر کلمو تېروي. بيا زده کوونکي هغه کلمې په دوه کسيزه ټوګه لولي.
۵. ښوونکی زده کوونکو ته وايي چې د تمرين په کتابونو کې د کلمو ليکل تمرين کړي.
۶. ښوونکی زده کوونکو ته وايي چې هغوی بايد د دغو کلمو ليکل هر ورځ په کور کې تمرين کړي.
۷. ښوونکی زده کوونکو ته وايي چې هغوی به د اونۍ په پای کې د دې کلمو په اړه کې املا ولري.

**۲. د لومړي متن لوستل (۲۵ دقيقې)**

**له لوستلو څخه مخکې**

۱. ښوونکی زده کوونکو ته وايي چې سرليک او انځور ته وګوري او وړاندوينه وکړي چې متن به د څه په اړه وي. (په خپلو منځونو کې شريکول او له ټولګيوالو سره شريکول). زده کوونکي بايد خپلو درسي کتابونو ته ځير شي .
۲. ښوونکی درې کليدي کلمې له زده کوونکو سره معنا او په جملو کې يې استعمالوي.

**د لوستلو پر مهال**

۳. ښوونکی تمثيل کوي، ښوونکی او زده کوونکي په ګډه لوستل کوي، زده کوونکي په دوه کسيزه ټوګه لوستل کوي.
۴. ښوونکی زده کوونکو ته ښيي چې څنګه کولای شي د تم کېدلو او فکر کولو ستراتيژۍ څخه ګټه واخلي.

**له لوستلوڅخه وروسته**

۱. ښوونکی له زده کوونکو څخه پوښتنه کوي چې ايا د کيسې په اړه يې وړاندوينه سمه ده؟ هو/ نه.
۲. ښوونکی له زده کوونکو څخه لاندې پوښتنې کوي:




- **پوښتنه: مرضيې ته پلار د څه شي د اخيستلو لپاره پيسې ورکړې؟**
**ځواب: مرضيې ته يې پلار د رسم د کتابچې د اخيستلو لپاره پنځوس افغانۍ ورکړې.**
- **پوښتنه: پلارې مرضيې ته څه وويل؟**
**ځواب: چې نوي نوټونه دې خوښ د ي، نو ته يې هم ښه وساته. افغانۍ زمونږ دهيواد پيسې دي. موږ ته ارزښت لري.**
- **پوښتنه: له پيسو ولې ګټه اخلو؟**
**ځواب: ځکه چې د ژوند ځينې اړتياوې په پيسو پوره کېږي.**

۳. ښوونکي زده کوونکو ته له متن څخه د لنډې معنا اخيستلو لار ښيي (د تفصيلي جزياتو لپاره د برخې عمومي کتنه وګورئ).

هغه څه چې زه پرې پوهېږم: **افغانۍ** ده.
هغه څه چې ما زده کړل: **افغانۍ زموږ د هېواد پيسه ده.**
**پايله: موږ بايد خپلې پيسې ښې وساتو.**

**تکرار او کورنۍ دنده (۵ دقيقې)**

۱. **تکرار:** ښوونکی له زده کوونکی سره /ض/ غږ لرونکې ځينې کلمې تکراروي.
۲. **کورنۍ دنده:** زده کوونکي توري او کلمې په کورونو کې په خپلو کتابچو کې ليکي او لومړی متن تکراروي.

**فرعي موضوع: افغاني**

**د زده کړې موخې:**

۱. له فعل سره د اشاري ضميرونو سم کارول.
۲. د متن له سياق او سباق څخه په ګټې اخيستنې سره د کلموپه‌معنا پوهيدل.
۳. له مناسب لحن،حرکاتو او له ٪۹۵ سموالي سره د متنونو لوستل.

### ۱. کلمې او جملې (۱۰ دقيقې)

۱. ښوونکی له زده کوونکو څخه پوښتنه کوي چې آيا هغوی اوس هم اشاري ضميرونه او د خلکو او شيانو د نومونو پر ځای د ضميرونو کارول په ياد لري؟
۲. ښوونکی زده کوونکو ته وايي چې خپل درسي کتابونو ته ځير شي. (۵) جملې او يو چوکاټ ورکړل شوي دي. ښوونکی له زده کوونکو سره د چوکاټ د سم اشاري ضمير په اخيستلو او په لومړۍ جمله کې د تش ځای په ډکولو کې مرسته کوي. بيا زده کوونکي په ګډه سره کار کولو ته ادامه ورکوي.
۳. کله چې زده کوونکي په کار بوخت وي، ښوونکی په ټولګي کې ګرځي څو له هغو زده کوونکو سره مرسته وکړي چې ستونزې لري.
٤. ښوونکی له زده کوونکو څخه غوښتنه کوي چې و وايي هغوی په دې درس کې څه زده کړي دي. (ځواب: د شخصي ضمير کارول).

### ۲. د لغتونو زېرمه (۱۵ دقيقې)

۱. ښوونکی زده کوونکو ته وايي چې هغوی به په ښه توګه د جملو په لوستلو سره د کلمې مفهوم پيدا کوي.
۲. ښوونکی يوه جمله پر تختې ليکي چې يوه کلمه پکې کمه ليدل کېږي: **زه (           ) ته ځم.**
۳. ښوونکی زده کوونکو ته وايي چې سمه کلمه (هرات) ده.
٤. ښوونکی زده کوونکو ته وايي چې خپل درسي کتابونو ته ځير شي. هغوی (٦) جملېويني. زده کوونکي بايد په چوکاټ کې هغه کلمه پيدا کړي چې په جمله کې له هغو کلمو سره مطابقت لري چې لاندې يې خط کښل شوی دی.
۵. ښوونکی لومړۍ دوه جملې له زده کوونکو سره ترسره کوي.
٦. ښوونکی زده کوونکو ته وايي چې نورې جملې په دوه کسيزه توګه  ترسره کړي. چټک زده کوونکي کولای شي همدې تمرين ته د خپل د تمرين په کتابونو کې هم ادامه ورکړي.



۷. کله چې زده کوونکي په کار بوخت وي، ښوونکی په ټولګي کې ګرځي، تر څو له هغو زده کوونکو سره مرسته وکړي چې ستونزې لري. لږ وخت وروسته، ښوونکی د زده کوونکو ځوابونه ګوري.
۸. ښوونکی له زده کوونکو  څخه غوښتنه کوي چې و وايي هغوی په دې درس کې څه زده کړي دي. (ځواب: موږ د جملې په کارولو سره د يوې کلمې معنا پيدا کول زده کړل.)

### ۳. د لومړي متن بيا لوستل (۱۰دقيقې)

۱. د څلورو پراوونو يعنې ښوونکی يې تمثيلوي، ښوونکی او زده کوونکي په ګډه لولي، زده کوونکي په دوه کسيزه توګه لولي او زده کوونکي يې پخپله لولي، په کارولو سره لومړی متن له زده کوونکو سره بيا لولي.

### تکرار او کورنۍ دنده (۵ دقيقې)

۱. **تکرار:** د اشاري ضميرونو مفهوم تکرارول.
۲. **کورنۍ دنده:** ښوونکی زده کوونکو ته وايي چې د کلمو او جملو تمرين  په کورونو کې په خپلو کتابچو کې وليکي او لومړی متن بيا ولولي او د املا د تمرين لپاره د کلمو تمرين ترسره کړي.

## فرعي موضوع: گل سرخ مېله

**د زده کړې موخې:**

۱. په مورفیمونو باندې په چټکۍ سره د کلمو تجزیه کولو لپاره د کلمو د جوړښت د پوهې کارول.
۲. د انځور، سرلیک، مهمو کلمو او د مخکینۍ پوهې څخه په گټې اخیستنې سره دا وړاندوینه کول چې متن یا کیسه به د څه په اړه وي.
۳. د پوهې د وضاحت لپاره د یوه متن برخې بیا لوستل.
۴. د یوه لوستل شوي متن په پایلو پوهېدل.

### ۱. کلمې او جملې (۱۰ دقیقې)

۱. ښوونکی د لومړۍ کلمې جوړښت کټ مټ پر تخته لیکي هغسې لکه په درسي کتاب کې چې لیکل شوی دی.
۲. ښوونکی بېلگه په لوړ غږ زده کوونکو ته لولي. بیا ښوونکی بېلگه له زده کوونکو سره یوځای لولي.
۳. ښوونکی تشریح کوي چې څنگه یوې کلمې ته د یوې برخې په ورزیاتېدلو سره د کلمې معنا بدلېږي.
۴. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې خپل درسي کتاب ته ځیر شي او لومړۍ دوه بېلگې له زده کوونکو سره لولي.
۵. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې په درسي کتابونو کې په دوه کسیزه توگه کلمې ولولي.
۶. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې د تمرین په کتابونو کې د کلمو لیکل تمرین کړي.
۷. کله چې زده کوونکي د کلمو په لوستلو بوخت وي، ښوونکی په ټولگي کې گرځي او له هغو زده کوونکو سره مرسته کوي چې ستونزې لري.

### ۲. د دویم متن لوستل (۲۵ دقیقې)

**له لوستلو څخه مخکې**

۱. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې سرلیک او انځور ته وگوري او وړاندوینه وکړي چې متن به د څه په اړه وي. ( په خپلومنځونو کې شریکول، له ټولگیوالو سره شریکول). زده کوونکي باید خپلو درسي کتابونو ته ځیر شي.
۲.ښوونکی درې کلیدي کلمې له زده کوونکو سره معنا او په جملو کې یې استعمالوي.

**د لوستلو پر مهال**

۱. ښوونکی تمثیل کوي، ښوونکی او زده کوونکي یې په گډه لولي، زده کوونکي یې په دوه کسیزه توگه لولي.
۲. ښوونکی زده کوونکو ته ښیي چې څنگه کولای شي د تم کېدلو او فکر کولو ستراتیژۍ څخه گټه واخلي.

**له لوستلو څخه وروسته**

۱. ښوونکی له زده کوونکو څخه پوښتنه کوي چې ایا د کیسې په اړه یې وړاندوینه سمه ده؟ هو/ نه.
۲. ښوونکی له زده کوونکو څخه لاندې پوښتنې کوي.
**-پوښتنه: د گل سرخ مېله چېرته جوړېږي؟**


۱۹ ۳

کلمې او جملې

| خو | موږ + خو | موږ خو |
| --- | --- | --- |
| خوري | هغوی + خوري | هغوی خوري |
| خي | هغه + خي | هغه خي |
| راځي | دوی + راځي | دوی راځي |

لرغونی غاټول بزکشي

د گل سرخ مېله

د گل سرخ لرغونې مېله هر پسرلي په بلخ کې جوړېږي. سږ کال ضیا له کورنۍ سره دې مېلې ته تللی و. گورې چې د شادیانو دښته سره غاټولو پوښلې ده. دښته داسې سره وه لکه سور بخمل. ضیا یو هلک ولید چې ښکلې جامې او برگه چینه یې اغوستې وه. پر سر یې سره خولۍ وه. دوی سره ملگري شول. هغه ضمیر نومېده او د هغه ځای اوسېدونکی و. لږ لرې په لوی میدان کې خلکو آسونه ځغلول. ضیا وویل: دا خلک څه کوي؟ ضمیر ځواب ورکړ: دوی بزکشي کوي. راځه چې زه او ته هم لوبې وکړو. ضیا او ضمیر لوبې وکړې او له مېلې څخه یې خوند واخیست.

**ځواب: د گل سرخ لرغونې مېله د بلخ په ولایت کې جوړېږي.**
**- پوښتنه: ضیاء له چا سره ملگری شو؟**
**ځواب: ضیاء له ضمیر سره ملگری شو.**
**- پوښتنه: خلک ولې مېلو ته ځي؟**
**ځواب: د تفریح کولو او ساعت تېرۍ لپاره .**
**- پوښتنه: مېلې څه ارزښت لري؟**
**ځواب: په فکرونو کې بدلون راځي، نوي شیان گوري او له بېلابېلو خلکو سره اشنا کېږي.**

۳. ښوونکي زده کوونکو ته له متن څخه د لنډ مفهوم اخستلو طریقه ښيي(د تفصیلي جزیاتو لپاره د برخې عمومي کتنه وگورئ).
۴. هغه څه چې زه پرې پوهېږم: **د گل سرخ مېله ده.**
هغه څه چې ما زده کړل: **د گل سرخ مېله په پسرلي کې په بلخ کې جوړېږي.**پایله: **د گل سرخ مېله یو له مشهورو او لرغونو مېلو څخه ده چې هر کال په بلخ ولایت کې ترسره کېږي.**

### تکرار او کورنۍ دنده (۵ دقیقې)

۱. **تکرار:**ښوونکی کلمې لولي.
۲. **کورنۍ دنده:**زده کوونکي توري او کلمې په کورونو کې په خپلو کتابچو کې لیکي او دوهم متن تکراروي.

## فرعي موضوع: ګل سرخ مېله

**د زده کړې موخې:**

۱- حال زمانه په راتلونکې زمانه بدلول.
۲- د متن له سیاق او سباق څخه په ګټې اخیستنې سره د کلمو معنا پیدا کول.
۳- په مناسب لحن، حرکاتو او٪ ۹۵ سموالي سره دمتن لوستل.

### ۱. جملې (۱۰ دقیقې)

۱. ښوونکی زده کوونکو ته وايي چې هغوی به نن جملې له حال زمانې څخه راتلونکې زمانې ته بدلوي.
۲. ښوونکی لاندې جمله پر تختې لیکي: **(مورله خپلو پیسو سره مینه لرو)** ښوونکی دا جمله زده کوونکو ته لولي. ښوونکی وايي، زه دا جمله په یو بل ډول هم ویلای شم چې ګوندې دا کار به سبا پېښ شي. بیا نو جمله داسې لیکلای شو:( **موږ به له خپلو پیسو سره مینه ولرو)** ښوونکی زده کوونکو ته وايي هغه کلمه چې بدلون مومي د عمل کلمه د (فعل) په نوم یادېږي. ښوونکی یو څو نورې بېلګې زده کوونکو ته وړاندې کوي.
۳. ښوونکی زده کوونکي خپلو درسي کتابونو ځیر کېدلو او په ګډه سره د یو څو جملو د تمرین کولو ته رابولي. هغه کلمه چې لاندې یې خط کښل شوی، د عمل کلمه (فعل) ده. دا هماغه کلمه ده چې بدلون مومي.
۴. ښوونکی لومړۍ دوه جملې له زده کوونکو سره تمرین کوي.
۵. ښوونکی زده کوونکو ته په دوه کسیزه توګه د کار کولو او د نورو جملو د لوستلو او جملې په راتلونکې زمانه کې د بدلولو وايي .
۶. ښوونکی له هغو زده کوونکو سره مرسته کوي چې ستونزې لري.
۷. لږ وخت وروسته، ښوونکی د زده کوونکو ځوابونه ګوري.
۸. ښوونکی له زده کوونکو غوښتنه کوي چې و وايي هغوی په دې درس کې څه زده کړي دي. (ځواب: د راتلونکې زمانې کارول).

### ۲. د لغتونو زېرمه (۱۵ دقیقې)

۱. ښوونکی زده کوونکو ته وايي چې هغوی به په ښه توګه د جملو په لوستلو سره د کلمو مفهوم پیدا کوي.
۲. ښوونکی یوه جمله پر تختې لیکي چې یوه کلمه پکې کمه لیدل کېږي: **موږ یو پربل** ( ) **یو**
۳. ښوونکی زده کوونکو ته وايي چې سمه کلمه **(مهربانه)** ده.
۴. ښوونکی زده کوونکو ته وايي چې خپلو درسي کتابونو ته ځیر شي. هغوی شپږ(٦) جملېویني. زده کوونکي باید په چوکاټ کې هغه کلمه پیدا کړي چې په جمله کې له هغو کلمو سره مطابقت لري چې لاندې یې خط کښل شوی دی.
ښوونکی لومړۍ دوه جملې له زده کوونکو سره ترسره کوي.
۵. ښوونکی زده کوونکو ته وايي چې نورې جملې په دوه کسیزه



توګه ترسره کړي. چټک زده کوونکي کولای شي همدې تمرین ته په خپلو د تمرین په کتابونو کې هم ادامه ورکړي.
٦. کله چې زده کوونکي په کار بوخت وي، ښوونکی په ټولګي کې ګرځي تر څو له هغو زده کوونکو سره مرسته وکړي چې ستونزې لري.
۷. لږ وخت وروسته، ښوونکی د زده کوونکو ځوابونه ګوري.
۸. ښوونکی زده کوونکو ته وايي چې هغوی په دې درس کې څه زده کړي دي. (ځواب: موږ د جملې په کارولو سره د یوې کلمې معنا پیدا کول زده کړل.)

### ۳. د دویم متن بیا لوستل (۱۰ دقیقې)

د ځلور پړاوونیزې ښوونکی تمثیلوي، ښوونکی او زده کوونکي په ګډه لولي، زده کوونکي په دوه کسیزه توګه لولي او زده کوونکي یې پخپله لولي، په کارولو سره دوهم متن له زده کوونکو سره بیا لوستل.

### تکرار او کورنۍ دنده (۵ دقیقې)

**۱. تکرار:** د حال زمانې او راتلونکې زمانې د عمل کلمې (فعلونه) تکرارول.
**۲. کورنۍ دنده:** زده کوونکو ته وايي چې جملې په کورونو کې په خپلو کتابچو کې ولیکي او دوهم متن بیا ولولي او د املا د تمرین لپاره د کلمو تمرین ترسره کړي.

د حسن خط فعالیت، ارزونه او کورنۍ دنده (۴۰ دقیقې )

## فرعي موضوعګانې: افغاني او ګل سرخ

**د زده کړې موخې:**

۱- د څورونو په ګوته کول او پر وړاندې يې مثبت غبرګون ښودل.
۲- د نوښتي ليکنې د کيسې بشپړول.
۳- له مناسب لحن،حرکاتو او٪ ۹۵ سموالي سره د متن لوستل.

### ۱. غوږنيول او خبري کول (۱۰ دقيقې)

۱. زده کوونکو ته و واياست چې د نن ورځې په درس کې به د څورولو په اړه لا زيات بحث وکړي. چې څورول ډېر بد کار دی او پر ماشومانو په رښتيا سره ډېر بد اغيز کوي.

۲. زده کوونکو ته و واياست چې په درسي کتابونو کې انځورونو ته وګوري. له هغوی پوښتنه وکړئ چې په انځورونو کې څه شی ويني؟ (په انځور کې څلور ډلې ماشومان دي چې يو او بل څوروي).

۲. زده کوونکو ته وخت ورکړئ چې د انځورونو په اړه خپل نظرونه له ټولګيوالو سره شريک کړي. هغوی ته و واياست چې په انځور کې ځينې ماشومان ځينې نور څوروي او په انځور کې ځينې نور ماشومان  بيا سره ښه ټولګيوال او ملګري دي. زده کوونکو ته و واياست چې موږ بايد يو او بل و نه څوروو. هغو ماشومانو ته چې نور څوروي لارښوونه وکړو او له هغه ماشوم سره مرسته وکړو چې د نورو له خوا څورول کېږي لکه: زه ستاسو ملګری يم، تاسو ډېر تکړه هلک يا نجلۍ ياست، تاسو ډېر مهربانه ياست، تاسو له موږ سره کولی شی په درسونو کې مرسته وکړي. د هغه چا سره چې نور څوروي مه خاندئ او د نورو په څورولو کې ورسره مه يو ځای کېږئ. که اړتيا وي له بل چا څخه د څورولو په مخنيوي کې مرسته وغواړئ. هغو کسانو ته چې نور څوروي وواياست چې دا ښه کار نه دي. موږ بايد هيڅکله نور ماشومان و نه څوروو.

۳. زده کوونکو ته و واياست چې د تمرين کتابونو ته وګوري. هغوی د تمرين په کتابونو کې د لويو ماشومانو کوچنی انځور ويني. هغوی ته وواياست چې په( ۲-۳ )کسيزه ډلو کې تمرين وکړي او د هغو لارو چارو په اړه فکر وکړي چې کولی شی د نورو له څورولو مخنيوی وکړي.

۴. د زده کوونکو له څو ډلو وغواړئ چې د شخړو د هوارولو لارې چارې يې له ټولګيوالو سره شريکې کړي. د هغوی ځوابونه او د حل لارې پر تخته وليکئ او له ټولو زده کوونکو سره پرې بحث وکړئ.

۵. د وخت د شتون په صورت کې زده کوونکو ته وخت ورکړئ چې د شخړو د هوارولو په اړه د ټولګي په مخ کې تمثيل وکړي. په تمثيل کې به ځينې زده کوونکي ځينې نور څوروي خويو شمېرنور زده کوونکي به بيا د څورولو مخنيوی کوي او له هغو زده کوونکو سره مرسته کوي چې څورول کېږي. د اړتيا په صورت کې له ښوونکي غواړي د څورولو د مخنيوي په خاطر ورسره مرسته وکړي.

۶. ښوونکي څرګندوي هغه زده کوونکي چې د نورو په څورولو کې ښکيل نه دي بايد د څورولو په اړه چپ پاتې نه شي او د زده کوونکو له څورولو څخه مخنيوی وکړي.




### ۲. نوښتي ليکنه (۱۵ دقيقې)

۱. ښوونکی زده کوونکو ته وايي چې هغوی به اوس د څورولو او نورو زده کوونکو په اړه يو ه کيسه وليکي.
۲. ښوونکی زده کوونکو ته وايي چې  د درسي کتاب جملې او د چوکاټ کلمې يو له بل سره په ګډه ولولي.
۳. ښوونکی زده کوونکو ته وايي چې د تمرين په کتابونو کې د چوکاټ د کلمو په کارولو سره په تشو ځايونو کې په دوه کسيزه توګه جملې جوړې کړي او نيمګړې  کيسه دې بشپړه کړي.
۴. ښوونکی په ټولګي کې ګرځي او هغو زده کوونکو ته چې ستونزې لري مرسته او لارښوونه کوي.
۵. ښوونکی له څو زده کوونکو غواړي چې خپلې بشپړې کړې کيسې ټولګيوالو ته و وايي.

### ۳. د لومړي او دويم متن بيا لوستل (۱۰ دقيقې)

ښوونکی  له دوو پړاوونو (لکه زده کوونکي په دوه کسيزه توګه لولي، زده کوونکي يې پخپله لولي)، څخه په ګټې اخيستنې سره لومړی او دوهم متن له زده کوونکو سره بيا لولي.

### تکرار او کورنۍ دنده (۵ دقيقې)

۱.    د يوې شخړې د لاملونو په ګوته کولو تکرارول.
۲.   **کورنۍ دنده:** د لومړي او دوهم متن بيا لوستل. د نوښتي کيسې بشپړول او يو انځور ورسره زياتول.

## فرعي موضوع: تکرار او دوامداره ارزونه

**د زده کړې موخې:**

۱- د متن له سیاق او سباق څخه په ګټې اخیستنې سره د کلمو معنا ترلاسه کول.
۲- حال زمانه په راتلونکې زمانه بدلول.
۳- له٪ ۹۰ سموالي سره د متن لوستل.
٤- د کلمې او جملې په کچه له مناسب لحن او فشار څخه په ګټې اخیستلو سره د متن لوستل.
۵- له٪ ۸۰ سموالي سره کلمې او جملې لیکل.

### ۱. کلمې او جملې (۱۰ دقیقې)

۱. ښوونکی له فعل سره د شخصي ضمیرونو سم کارول تکراروي
۲. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې د درسي کتاب (الف) تمرین ترسره کړي.
۳. ښوونکی د جملو په لوستلو سره د کلمې د مفهوم او معنا پیدا کول تکراروي.
٤. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې د درسي کتاب (ب) تمرین ترسره کړي.
۵. ښوونکی د حال زمانه په راتلونکې زمانې بدلول تکراروي.
٦. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې د درسي کتاب (ج) تمرین ترسره کړي.
۷. ښوونکی د زده کوونکو ځوابونه ګوري.
۸. ښوونکی د پرله پسې ارزونې په کتاب کې د زده کوونکو نومرې ثبتوي.

### ۲. د لومړي او دویم متن بیا لوستل (۱۰ دقیقې)

۱. ښوونکی زده کوونکو ته دوې دقیقې وخت ورکوي چې په دوه کسیزه توګه لومړی یا دوهم متن ژر ژر ولولي.
۲. ښوونکی له اتو(۸) تنو زده کوونکو څخه غوښتنه کوي چې د ټولګي مخې ته راشي.
۳. ښوونکی هغوی ته وایي چې هر دوه تنه به د متن یوه برخه لولي. هغوی باید متن په روان او مناسب لحن او حرکاتو په کارولو سره ولولي چې د پای ټکی او د پوښتنې نښه منعکس کړي .
٤. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې ورو ورو متن له لوستونکي سره ولولي او ښه غوږ ورته ونیسي. کله چې(۸) زده کوونکي په لوستلو بوخت وي، ښوونکی د هغوی د لوستلو څرنګوالی ګوري او خپله کتنه د پرله پسې ارزونې په کتاب کې لیکي. له هغو زده کوونکو سره چې په ښه توګه دا فعالیت ترسره نه کړي، باید په بله اونۍ کې مرسته ورسره وشي.



### ۳. املا (۱۵ دقیقې)

ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې هغوی به یو څو کلمې او جملې ولیکي.
۱. ښوونکی زده کوونکو ته د درسي کتابونو د ټولولو او د تمرین کتابونو د پرانیستلو وایي. ښوونکی لومړی کلمه په کراره وایي او ۴ ځلې یې تکراروي. کلمه دا ده: **(ضیا)** زده کوونکي کلمه لیکي.
۲. ښوونکی همدغه کار د لاندې ۸ کلمو لپاره هم ترسره کوي.
**۱- مرضیه، ۲- حوض ۳- ضابط، ۴- عریضه، ۵- مریض، ٦- ضرورت، ۷- حضرت، ۸- عارض.**
۳. ښوونکی لومړی جمله په کراره لولي او څلور ځله یې تکراروي.
٤. جمله دا ده: **۱- ضیا ماته لس افغانۍ راکړې.**
۵. زده کوونکي جمله د تمرین په کتاب کې لیکي. ښوونکی همدا کار د لاندې (۳) جملو لپاره هم ترسره کوي.
**۲. مرضیه خپلې پیسې ښې ساتي. ۳. عارض په حوض کې لامبي. ۴. مور د ګل سرخ مېلې ته ځو.**
٦. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې د خپل تمرین کتابچې د کتلو لپاره راوړي. ښوونکی د هغوی املا ګوري او نومرې ورکوي.
۷. ښوونکی د زده کوونکو نومرې د پرله پسې ارزونې په کتاب کې ثبتوي.

### تکرار او کورنۍ دنده (۵ دقیقې)

۱. **تکرار:** هغه څه تکرارول چې زده کوونکو دې اونۍ کې زده کړې دي.
۲. **کورنۍ دنده:** ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې په کورونو کې د درسونو هغو برخو بیا لیکل او لوستل دې ترسره کړي چې د اونۍ په جریان کې یې ورسره ستونزې لرلې.

د حسن خط فعالیت، ارزونه او کورنۍ دنده (۴۰ دقیقې)

**فرعي موضوع: ملالۍ** — **توري: ظ، ض**

## د زده کړې موخې
۱. د/ظ/ او/ض/ غږونو او تورو لرونکو کلمو سم لیکل.
۲. د انځور، سرلیک، مهمو کلمو او د مخکینۍ پوهې څخه په ګټې اخیستنې سره دا وړاندوینه کول چې متن یا کیسه به د څه په اړه وي.
۳. د پوهې د زیاتوالي لپاره د یوه متن بیا لوستل
۴. له یوه لوستل شوي متن څخه پایلې استنباط کول.

### ۱. توري او کلمې (۱۰ دقیقې)
۱. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې د(**ظ**) او (**ض**) توري سره ورته غږونه لري. ځینې کلمې د(**ظ**) توری او ځینې نور یې بیا د (**ض**) توری لري.
۲. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې په دې اونۍ کې به د هغو کلمو تمرین کوي چې د (ظ) او (ض) توري پکې کارول کېږي.
۳. ښوونکی لاندینۍ کلمې پر تختې لیکي: **ظفر، ضیا** ښوونکی له زده کوونکو څخه غوښتنه کوي چې کلمه په لوړ غږ ولولي. ښوونکی له زده کوونکو پوښتنه کوي چې کوم توری د**اض/**غږ لري. ښوونکی یو څو زده کوونکو ته اجازه ورکوي چې توري ته ګوته ونیسي.
٤. ښوونکی زده کوونکو درسي کتاب لوستلو ته رابولي. ښوونکی کلمې په داسې حال کې زده کوونکو ته لولي چې هغوی خپلې ګوتې پر کلمو تېروي. بیا زده کوونکي هغه کلمې په دوه کسیزه توګه لولي.
٥. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې د تمرین په کتابونو کې د کلمو لیکل تمرین کړي.
٦. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې هغوی باید د دغو کلمو لیکل هر ورځ په کور کې تمرین کړي.
۷. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې هغوی به د اونۍ په پای کې د دې کلمو په اړه املا ولري.

### ۲. د لومړي متن لوستل (۲۵ دقیقې)
**له لوستلو څخه مخکې**
۱. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې سرلیک او انځور ته وګوري او وړاندوینه وکړي چې متن به د څه په اړه وي. (په خپلومنځو کې شریکول، له ټولګیوالو سره شریکول). زده کوونکي باید خپلو درسي کتابونو ته ځیر شي چې هغوی د موضوع په اړه مخکې له مخکې په څه پوهېدل.
۲.ښوونکی دري کلیدي کلمې له زده کوونکو سره معنا او په جملو کې یې استعمالوي.

**د لوستلو پر مهال**
۱. ښوونکی تمثیل کوي، ښوونکی او زده کوونکي په ګډه لوستل کوي، زده کوونکي په دوه کسیزه توګه لوستل کوي.
۲. ښوونکی زده کوونکو ته ښیي چې څنګه کولای شي د تم کېدلو او فکر کولو ستراتیژي نه ګټه واخلي.

**له لوستلو څخه وروسته**
۱. ښوونکی له زده کوونکوڅخه پوښتنه کوي چې د کیسې په اړه یې وړاندوینه سمه ده؟ هو یا نه.



۲. ښوونکی له زده کوونکو څخه لاندې پوښتنې کوي:
- **پوښتنه: راضیې څه پوښتنه وکړه؟**
**ځواب: زرغونه انا څوک وه او ولې یې انا بولو.**
- **پوښتنه: زرغونه انا څوک وه؟**
**ځواب: د احمد شاه بابا مور وه.**
- **پوښتنه: زرغونه ولې انا بولو؟**
**ځواب: ځکه چې د ټولو وطنوالو په فکر کې وه.**
- **پوښتنه: د هېواد پر وړاندې ستاسو مسؤولیت څه دی؟**
**ځواب: دا چې ښه درس ووایو، زیار وباسو او وطن ته خدمت وکړو.**

۳. ښوونکی زده کوونکو ته له متن څخه د پایلو د استنباط کولو طریقه ښیي(د تفصیلي جزیاتو لپاره د برخې عمومي کتنه وګورئ.)
٤. هغه څه چې زه پرې پوهېږم: **ملالۍ** ده.
هغه څه چې ما زده کړل: **ملالۍ په میدان کې غازیانو ته اوبه رسولې.**
پایله: **د لنډۍ په اورېدلو د غازیانو وینه په جوش راغله او دښمن یې مات کړ.**

### تکرار او کورنۍ دنده (۵ دقیقې)
**۱. تکرار:** ښوونکی له زده کوونکو سره د(ظ) او (ض) غږ او تورو لرونکې ځینې کلمې تکراروي.
**۲. کورنۍ دنده:**زده کوونکي توري او کلمې په کورونو کې په خپلو کتابچو کې لیکي او لومړی متن تکراروي.

## فرعي موضوع: ملالۍ

**د زده کړې موخې:**

۱. له فعل سره د اشاري ضميرونو سم کارول.
۲. د متن له سياق او سباق څخه په ګټې اخيستنې سره د کلمومعنااستنباط کول.
۳. له مناسب لحن او حرکاتو سره او له٪ ۹۵ سموالي سره د متن لوستل.

### ۱. کلمې او جملې (۱۰ دقيقې)

۱. ښوونکی زده کوونکو ته وايي چې هغوی به اشاري ضميرونه او د خلکو او شيانو د نومونو پر ځای د ضميرونو کارول تمرين کړي.
۲. ښوونکی زده کوونکو ته وايي چې خپل درسي کتابونو ته ځير شي. ۵ جملې او يو چوکاټ ورکړل شوی دی. ښوونکی له زده کوونکو سره له چوکاټ څخه د سم اشاري ضمير په اخيستلو او په لومړۍ جمله کې د تش ځای په ډکولو کې مرسته کوي. بيا زده کوونکي په ګډه سره کار کولو ته ادامه ورکوي.
۳. کله چې زده کوونکي په کار بوخت وي، ښوونکی په ټولګي کې ګرځي چې له هغو زده کوونکو سره مرسته کوي چې ستونزې لري.
٤. ښوونکی له زده کوونکو څخه غوښتنه کوي چې و وايي هغوی په دې درس کې څه زده کړي دي. (ځواب: د اشاري ضمير کارول)

### ۲. د لغتونو زېرمه (۱۵ دقيقې)

۱. ښوونکی زده کوونکو ته وايي چې هغوی به د جملو په لوستلو سره د کلمې مفهوم پيدا کوي.
۲. ښوونکی زده کوونکو ته وايي چې خپلو درسي کتابونو ته ځير شي. هلته شپږ(٦) جملېويني. زده کوونکي بايد په چوکاټ کې هغه کلمه پيدا کړي چې په جمله کې له هغو کلمو سره مطابقت لري چې لاندې يې خط کښل شوی دی.
۳. ښوونکی لومړۍ دوه جملې له زده کوونکو سره ترسره کوي.
٤. ښوونکی زده کوونکو ته وايي چې نورې جملې په دوه کسيزه توګه ترسره کړي. چټک زده کوونکي کولای شي همدې تمرين ته خپل د تمرين په کتابونو کې هم ادامه ورکړي.
۵. کله چې زده کوونکو پر کار بوخت وي، ښوونکی په ټولګي کې ګرځي، ترڅو له هغو زده کوونکو سره




مرسته وکړي چې ستونزې لري.
٦. پر وخت وروسته، ښوونکی د زده کوونکو ځوابونه ګوري.
۷. ښوونکی له زده کوونکو څخه غوښتنه کوي چې هغوی په دې درس کې څه زده کړي دي. (ځواب: مورږ د جملې په کارولو سره د يوې کلمې معنا پيدا کول زده کړل.)

### ۳. د لومړي متن بيا لوستل (۱۰دقيقې)

۱. له څلورو پراوونو څخه په ګټې اخيستنې سره ښوونکی يې تمثيلوي، ښوونکی او زده کوونکي يې په ګډه لولي، زده کوونکي په دوه کسيزه توګه لولي او زده کوونکي يې پخپله لولي، په کارولو سره لومړی متن له زده کوونکو سره بيا لوستل.

### تکرار او کورنۍ دنده (۵ دقيقې)

۱. **تکرار:** د اشاري ضميرونو مفهوم تکرارول.
۲. **کورنۍ دنده:** ښوونکی زده کوونکو ته وايي چې کلمې په خپلو کورونو کې په کتابچو کې وليکي او لومړی متن بيا ولولي او د املا د تمرين لپاره د کلمو تمرين ترسره کړي.

## فرعي موضوع: د وطن ترانه

**د زده کړې موخې:**

۱. په چټکۍ سره د کلمو د تجزیه کولو لپاره په مورفیمونو باندې د کلمو د جوړښت د پوهې کارول.
۲. د انځور، سرلیک، مهمو کلمو او د مخکینۍ پوهې څخه په ګټې اخیستلو سره دا وړاندوینه کول چې متن یا کیسه به د څه په ا ړه وي.
۳. د پوهې د وضاحت لپاره د یوه متن برخې بیا لوستل.
۴. له یوه لوستل شوي متن څخه پایلې استنباط کول.

### ۱. کلمې او جملې (۱۰ دقیقې)

۱. ښوونکی د لومړۍ کلمې جوړښت پر تخته لیکي کټ مټ هغسې لکه، په درسي کتاب کې چې لیکل شوي دي.
۲. ښوونکی بېلګه په لوړ غږ زده کوونکو ته لولي. بیا ښوونکی بېلګه له زده کوونکو سره یوځای لولي.
۳. ښوونکی تشریح کوي چې د ضمیرونو یوه کلمه د فعل له کلمو سره یو ځای کېږي او یوه جمله جوړه وي.
۴. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې خپل درسي کتاب ته ځیر شي او لومړۍ دوه بېلګې له زده کوونکو سره لولي.
۵. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې په درسي کتابونو کې په دوه کسیزه توګه کلمې ولولي.
۶. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې د تمرین په کتابونو کې د کلمو لیکل تمرین کړي.
۷. کله چې زده کوونکي د کلمو په لوستلو کې بوخت وي، ښوونکی په ټولګي کې ګرځي او له هغو زده کوونکو سره مرسته کوي چې ستونزې لري.

### ۲. د دویم متن لوستل (۲۵ دقیقې)

**له لوستلو څخه مخکې**

۱. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې سرلیک او انځور ته وګوري او وړاندوینه وکړي چې متن به د څه په اړه وي. ( په خپلو منځو کې شریکول، له ټولګیوالو سره شریکول). زده کوونکي باید د خپلو درسي کتابونو ته ځیر شي چې هغوی د موضوع په اړه مخکې له مخکې په څه پوهېدل.
۲. ښوونکی درې کلیدي کلمې له زده کوونکو سره معنا او په جملو کې یې استعمالوي.

**د لوستلو پر مهال**

۱. ښوونکی تمثیل کوي، ښوونکی او زده کوونکي په ګډه لوستل کوي، زده کوونکي په دوه کسیزه توګه لوستل کوي.
۲. ښوونکی زده کوونکو ته ښیي چې څنګه کولای شي د تم کېدلو او فکر کولو ستراتیژۍ څخه ګټه واخلي.

**له لوستلو څخه وروسته**

۱. ښوونکی له زده کوونکو څخه پوښتنه کوي چې د کیسې په اړه یې وړاندوینه سمه ده؟ هو/ نه.



۲. ښوونکی له زده کوونکو څخه لاندې پوښتنې کوي:

- **پوښتنه: زموږ وطن څه نومېږي؟**

**ځواب: افغانستان.**

- **پوښتنه: زموږ بیرغ کوم رنګونو لري؟**

**ځواب: تور، سور او زرغون.**

- **پوښتنه: ولې له وطن سره مینه لرو؟**

**ځواب: ځکه چې موږ خپلواک ژوند پکې کوو.**

- **پوښتنه: وطن پر موږ څه حقونه لري؟**

**ځواب: وطن پر موږ د مور او پلار په شان حق لري باید وطن سمسور کړو، درناوی یې وکړو، خپل درسونه ښه ووایو او خپل کتاب، مېز، څوکۍ او ښوونځی ښه وساتو.**

۳. ښوونکي زده کوونکو ته له متن څخه د پایلو د استنباط کولو طریقه ښیي(د تفصیلي جزیاتو لپاره د برخې عمومي کتنه وګورئ).
۴. هغه څه چې زه پرې پوهېږم: **د وطن ترانه**

هغه څه چې ما زده کړل: **د وطن سره مینه**

پایله: **موږ باید خپل وطن په پوهه او قلم ودان کړو.**

### تکرار او کورنۍ دنده (۵ دقیقې)

۱. **تکرار:** ښوونکی کلمې لولي.
۲. **کورنۍ دنده:** زده کوونکي توري او کلمې په خپلو کورونو کې په کتابچو کې لیکي او د دوهم متن لوستل تکرا روي.

## فرعي موضوع: د وطن ترانه

**د زده کړې موخې:**

۱- د حال زمانه په راتلونکې زمانې بدلول.

۲- د متن له سیاق او سباق څخه په ګټې اخیستنې سره د کلمو معنا پیدا کول.

۳- له مناسب لحن، حرکاتو او٪ ۹۵ سموالي سره د متنونو لوستل.

### ۱. جملې (۱۰ دقیقې)

۱. ښوونکی زده کوونکو ته وايي چې هغوی به يوه جمله له حال زمانې څخه راتلونکې زمانې ته بدلوي.

۲. ښوونکی لاندې جمله پر تختې ليکي:(**موږ له موږ سره مرسته کوو.**) ښوونکی دا جمله زده کوونکو ته لولي. ښوونکی وايي، دا جمله يو بل ډول هم ويل کېږي چې شايد دا کار به سبا پېښ شي. او جمله داسې ليکلای شو: (**موږ به له موږ سره مرسته وکړو.**)ښوونکی زده کوونکو ته وايي چې هغه کلمه چې بدلون مومي د عمل کلمې (فعل) په نوم يادېږي. ښوونکی يو څو نورې بېلګې زده کوونکو ته وړاندې کوي.

۳. ښوونکی زده کوونکو ته وايي چې درس ته ځير شي او په ګډه سره د څو جملو تمرين وکړئ. هغه کلمه چې لاندې يې خط کښل شوی، د عمل کلمه (فعل) ده. دا هماغه کلمه ده چې بدلون مومي.

٤. ښوونکی لومړی دوه جملې له زده کوونکو سره تمرين کوي.

۵. ښوونکی زده کوونکو ته په دوه کسيزه توګه د کار کولو او د نورو جملو د لوستلو او جملې په راتلونکې زمانه کې د بدلولو وايي .

٦. ښوونکی له هغو زده کوونکو سره مرسته کوي چې ستونزې لري.

۷. لږ وخت وروسته، ښوونکی د زده کوونکو ځوابونه ګوري.

۸. ښوونکی له زده کوونکو څخه غوښتنه کوي چې په دې درس کې څه زده کړي دي. (ځواب: د راتلونکې زمانې کارول).

### ۲. د لغتونو زېرمه (۱۵ دقيقې)

۱. ښوونکی زده کوونکو ته وايي چې هغوی به په ښه توګه د جملو په لوستلو سره د کلمې معنا پيدا کوي.

۲. ښوونکی زده کوونکو ته وايي چې خپلو درسي کتابونو ته ځير شي. هغوی ٦ جملې ويني. زده کوونکي بايد په چوکاټ کې هغه کلمه پيدا کړي چې په جمله کې له هغو کلمو سره مطابقت لري چې لاندې يې خط کښل شوی دی.

۳. ښوونکی لومړی دوه جملې له زده کوونکو سره ترسره کوي.

٤. ښوونکی زده کوونکو ته وايي چې نورې جملې په دوه کسيزه توګه ترسره کړي. چټک زده کوونکي کولای شي همدې تمرين ته د خپل تمرين په کتابونو کې ادامه ورکړي.

۵. کله چې زده کوونکو پر کار بوخت وي، ښوونکی په ټولګي کې ګرځي څو له هغو زده کوونکو سره مرسته کړي چې ستونزې لري.

٦. لږ وخت وروسته، ښوونکی د زده کوونکو ځوابونه ګوري.

۷. ښوونکی له زده کوونکو څخه غوښتنه کوي هغوی په دې درس کې څه زده کړي دي. (ځواب: موږ د جملې په کارولو سره د يوې کلمې معنا پيدا کول، زده کړل.)



### ۳. د دويم متن بيا لوستل (۱۰ دقيقې)

د څلور پړاوونو يعنې ښوونکی تمثيلوي، ښوونکی او زده کوونکي په ګډه لولي، يعنې زده کوونکي په دوه کسيزه توګه لولي او زده کوونکي يې يخپله لولي، په کارولو سره دوهم متن له زده کوونکو سره بيا لوستل.

### تکرار او کورنۍ دنده (۵ دقيقې)

۱. **تکرار:** د حال زمانې او راتلونکې زمانې د عمل کلمې (فعلونه) تکرارول.

۲. **کورنۍ دنده:** ښوونکی زده کوونکو ته وايي چې جملې په خپلو کتابچو کې وليکي او دوهم متن بيا ولولي او د املا د تمرين لپاره د کلمو تمرين ترسره کړي.

د حسن خط فعاليت، ارزونه او کورنۍ دنده (۴۰ دقيقې )

## فرعي موضوعګانې: ملالۍ او د وطن ترانه

**د زده کړې موخې:**

۱- دشخړې دهوارۍ کړووړو/عادتونه په ګوته کول او تشریح کول.
۲- د نوښتي لیکنې د کیسې بشپړول.
۳- له مناسب لحن او حرکاتو او ٪۹۵ سموالي سره متنونه لوستل.

### ۱. غوږنیول او خبرې کول (۱۰ دقیقې)

۱. زده کوونکو ته و وایاست په نننۍ درس کې به په دې اړه خبرې وکړو چې څنګه کولی شو د ځورولو مخنیوی وکړو. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې موږ باید د ځورولو د مخنیوي لپاره د سمو لارو چارو څخه کار واخلو.
۲. زده کوونکو ته و وایاست چې د درسي کتاب انځورونو ته وګوري. له هغوی څخه وپوښتئ چې په انځورونو کې څه شی ویني؟ په انځورونو کې څه ډول احساس پېژنئ؟ (په لومړي انځور کې یو زده کوونکی بل زده کوونکی ځوروي.) هغه زده کوونکی چې ځورول کېږي په جرأت سره ځواب وایي او نور زده کوونکي چې هلته دي، د ځورول شوي زده کوونکي تر څنګ درېږي، د هغه ملاتړ کوي او له زده کوونکي څخه د ځورولو د بس کولو غوښتنه کوي. څوک خبرې کوي؟ څوک ځورول کېږي؟ ځورول شوی کس څه ډول عکس العمل ښيي؟ په ټولګي کې نور زده کوونکي څه کوي؟
۳. زده کوونکو ته و وایاست چې ځورول ډېر بد کار دی. موږ کولی شو د مختلفو لارو چارو په کارولو سره د ځورولو مخنیوی وکړو. هغه زده کوونکي چې د نورو په ځورولو کې ښکیل نه دي کولی شي د ځورولو په مخنیوي کې ښه رول ولوبوي. دوی کولی شي زده کوونکو ته و وایي چې دا کار مو ښه نه دی او ماشومان مه ځوروئ. دوی کولی شي له هغو ماشومانو څخه ملاتړ وکړي چې نور یې ځوروي. دوی له هغو زده کوونکو څخه چې نور ځوروي ملاتړ و نه کړي. د اړتیا په صورت کې دوی کولی شي له ښوونکی او نورو لویانو خلکو مرسته وغواړي چې د ځورولو مخنیوی وکړي.
۴. زده کوونکو ته و وایاست چې د تمرین کتابونه راخلاص کړي. دوی د تمرین په کتابونو کې د درسي کتاب انځور ته ورته کوچنی انځور ویني. هغوی ته و وایاست چې په(۲-۳) کسیزه ډلو کې د ځورولو د مختلفو لارو چارو په اړه بحث وکړي. هغوی ته اجازه ورکړئ چې د ګڼو لارو چارو په اړه فکر وکړي.
۵. د زده کوونکو له څو ډلو څخه وغواړئ چې خپلې د حل لارې ټولګیوالو ته ووايي. د هغوی حل لارې پر تخته ولیکئ او له هغوی سره بحث پرې وکړئ.
۶. د وخت د شتون په صورت کې له څو زده کوونکو وغواړئ چې د ټولګي په مخ کې د ځورولو د مخنیوي په اړه تمثیل وکړي. په تمثیل کې ځینې زده کوونکو نور زده کوونکي ځوروي او دوی کوښښ کوي چې د ځورولو شخړه له منځه یوسي. زده کوونکو ته و وایاست چې موږ باید د ځورولو مخه ونیسو.



### ۲. نوښتي لیکنه (۱۵ دقیقې)

۱. ښوونکی زده کوونکو ته وايي چې هغوی به اوس د ځو رولو د مخنیوي په اړه یو کیسه ولیکي.
۲. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې د درسي کتاب جملې او د چوکاټ کلمې په یوازې توګه ولولي.
۳. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې د تمرین په کتابونو کې د چوکاټ د کلمو په کارولو سره په تشو ځایونو کې په یوازې توګه جملې جوړې کړي او نیمګړې کیسه دې بشپړه کړي.
۴. ښوونکی په ټولګي کې ګرځي او هغو زده کوونکو ته چې ستونزې لري مرسته او لارښوونه کوي.
۵. ښوونکی له څو زده کوونکو غواړي چې خپلې بشپړې کړې کیسې ټولګیوالو ته و وایي.

### ۳. د لومړي او دویم متن بیا لوستل (۱۰ دقیقې)

ښوونکی له دوو پړاوونو (لکه زده کوونکي په دوه کسیزه توګه لولي، زده کوونکي یې پخپله لولي)، څخه په ګټه اخیستنې سره لومړی او دوهم متن له زده کوونکو سره بیا لولي.

### تکرار او کورنۍ دنده (۵ دقیقې)

۱. **تکرار:** د شخړې د هوارۍ د کړو وړو یا عادتونه په ګوته کول او تشریح کول.
۲. **کورنۍ دنده:** لومړی او دوهم متن بیا لوستل. د نوښتي کیسې بشپړول او یو انځو ورزیاتول.

## فرعي موضوع: تکرار او دوامداره ارزونه

**د زده کړې موخې:**

۱- د متن له سیاق او سباق څخه په ګټې اخیستنې سره د کلمو معنا ترلاسه کول.
۲- د اوس زمانه په راتلونکې زماني بدلول.
۳- له٪ ۹۰ سموالي سره د متن لوستل
٤- د کلمې او جملې په کچه له مناسب لحن او فشار څخه په ګټې اخیستلو سره متن لوستل
٥- له٪ ۸۰ سموالي سره کلمې او جملې لیکل.

### ۱. کلمې او جملې (۱۰ دقیقې)

۱. ښوونکی له فعل سره د اشاري ضمیرونو سم کارول تکراروي.
۲. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې د درسي کتاب (الف) تمرین ترسره کړي.
۳. ښوونکی د جملو په لوستلو سره د کلمې د مفهوم او معنا پیدا کول تکراروي.
٤. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې د درسي کتاب (ب) تمرین ترسره کړي.
٥. ښوونکی د حال زمانه په راتلونکې زماني بدلول تکراروي.
٦. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې د درسي کتاب (ج) تمرین ترسره کړي.
۷. ښوونکی د زده کوونکو ځوابونه ګوري.
۸. ښوونکی د پرله پسې ارزونې کتاب کې د زده کوونکو نومرې ثبتوي چې آیا هر زده کوونکي د دې وړتیا ترلاسه کړې ده چې دا فعالیت په ښه توګه ترسره کړي (له٪ ۹۰ پورته لپاره △ نښه، د ٪۷۰-۹۰ ترمنځ لپاره ∧ نښه او له ٪ ۷۰ ټیټ لپاره / نښه. هغه زده کوونکي چې نومرې یې ٪ ۷۰ یا تر دې ټیټې دي باید بله اونۍ د همدې تمرین په برخه کې مرسته ترلاسه کړي.

### ۲. د لومړي او دویم متن بیا لوستل (۱۰ دقیقې)

۱. ښوونکی زده کوونکو ته دوه دقیقې وخت ورکوي چې په دوه کسیزه توګه لومړی یا دوهم متن ژر ژر ولولي.
۲. ښوونکی د زده کوونکو له (۴) جوړو څخه غوښتنه کوي چې د ټولګي مخې ته راشي.
۳. ښوونکی هغوی ته وایي چې هره جوړه به د متن یوه برخه لولي. هغوی باید متن په روانه توګه او د مناسب لحن او حرکاتو په کارولو سره ولولي چې پای ټکی او د پوښتنې نښه منعکس کړي .
٤. ښوونکی ټولګیوالو ته وایي چې ورو ورو متن له لوستونکي سره ولولي او ښه غوږ ونیسي. کله چې (۸) زده کوونکي په لوستلو بوخت وي، ښوونکی د هغوی د لوستلو څرنګوالی مشاهده کوي او خپله مشاهده د پرله پسې ارزونې کتاب کې لیکي. له هغو زده کوونکو سره چې په ښه توګه دا فعالیت ترسره نه کړي، باید بله اونۍ کې مرسته وشي.



### ۳. املا (۱۵ دقیقې)

۱. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې هغوی به یو څو کلمې او جملې ولیکي.
۲. ښوونکی زده کوونکو ته د درسي کتابونو د ترلو او د تمرین کتابونو د پرانیستلو وایي. ښوونکی لومړۍ کلمه په کراره وایي او (۴) ځلې یې تکراروي. کلمه دا ده: **ظفر** زده کوونکي کلمه لیکي.
۳. ښوونکی همدغه کار د لاندې (۸) کلمو لپاره هم ترسره کوي.
**۱-محفوظ، ۱-ضیا، ۳-عریضه، ۴-عارض، ۵-ظرف، ٦-نظر، ۷-منظرې، ۸-ضرب.**
٤. ښوونکی لومړۍ جمله په کراره لولي او ۴ ځلې یې په کراره کراره تکراروي. جمله دا ده: **۱- مور وطن سره مینه لرو**
٥. زده کوونکي جمله د تمرین په کتاب کې لیکي.
٦. ښوونکی همدا کار د لاندې ۳ جملو لپاره هم ترسره کوي.
**۲. ملالۍ ملي اتله ده.**
**۳. زه عریضه لیکلای شم.**
**۴. محفوظ د ضیا ورور دی.**
۷. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې خپل د تمرین کتابچې د کتلو لپاره راوړي. ښوونکی د هغوی املا ګوري او نومرې ورکوي.
۸. ښوونکی د زده کوونکو نومرې د پرله پسې ارزونې کتاب کې ثبتوي.

### تکرار او کورنۍ دنده (۵ دقیقې)

۱. **تکرار:** هغه څه تکرارول چې زده کوونکو په دې اونۍ کې زده کړي دي.
۲. **کورنۍ دنده:** ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې په کورونو کې د درسونو هغو برخو بیا لیکل او لوستل دې ترسره کړي چې د اونۍ په جریان کې یې ورسره ستونزې لرلې.

د حسن خط فعالیت، ارزونه او کورنۍ دنده (۴۰ دقیقې)

**فرعي موضوع: د ځان پاک ساتل          توري: ز، ذ**

### د زده کړې موخې:

۱. د/ز/ او /ذ/ غږونو او تورو درلودونکو کلمو درست لیکل.
۲. د انځور، سرلیک، مهمو کلمو او د مخکینۍ پوهې څخه په ګټې اخیستلو سره دا وړاندوینه کول چې متن یا کیسه به د څه په اړه وي.
۳. د لوستلو پر مهال له تم کېدلو او فکر کولو څخه ګټه اخیستل.
۴. له کیسې څخه مفهوم اخیستل.

### ۱. توري او کلمې (۱۰ دقیقې)

۱. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې د(ز) او (ذ) توري سره ورته غږ لري. ځینې کلمې د(ز) توري او ځینې یې د (ذ) توري لري.
۲. ښوونکی، زده کوونکو ته وایي په دې اونۍ کې به هغوی د هغو کلمو تمرین کوي چې د (ز) او (ذ) توري پکې کارول کېږي.
۳. ښوونکی لاندینۍ کلمې پر تخته لیکي: **ذاکر، زرګه** .
۴. ښوونکی له زده کوونکو څخه غوښتنه کوي چې کلمه په لوړ غږ ولولي. پوښتنه کوي چې کوم توری د/z/غږ لري. څو زده کوونکو ته اجازه ورکوي چې توري په خپلو ګوتو سره وښیي.
۵. ښوونکی، زده کوونکي د درسي کتابونو لوستلو ته رابولي. ښوونکی کلمې په داسې حال کې زده کوونکو ته لولي چې هغوی خپلې ګوتې پر کلمو تېروي. بیا زده کوونکي هغه کلمې په دو کسیزه او انفرادي توګه لولي.
۶. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې هغوی باید د دغو کلمو لیکل هر ورځ په کور کې تمرین کړي.
۷. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې هغوی به د اونۍ په پای کې د دې کلمو په اړه املا ولري.

### ۲. لومړی متن لوستل (۲۵ دقیقې)

#### له لوستلو څخه مخکې

۱. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې سرلیک او انځور ته وګوري او وړاندوینه وکړي چې متن به د څه په اړه وي. ( په خپلو کې شریکول، له ټولګیوالو سره شریکول). زده کوونکي باید درسي کتابونو ته ځیر شي چې هغوی د موضوع په اړه مخکې له مخکې په څه پوهېدل.
۲. ښوونکی درې کلیدي کلمې له زده کوونکو سره معنا او په جملو کې یې استعمالوي.

#### د لوستلو پر مهال

۱. ښوونکی تمثیل کوي، ښوونکی او زده کوونکي یې په ګډه لولي، زده کوونکي یې په دوه کسیزه او انفرادي توګه لولي.
۲. ښوونکی زده کوونکو ته ښیي چې څرنګه کولای شي د متن د لوستلو پرمهال تم کېدلو او فکر کولو له ستراتیژۍ څخه ګټه واخلي.

#### له لوستلو څخه وروسته

۱. ښوونکی له زده کوونکو څخه پوښتنه کوي چې آیا د کیسې په اړه یې وړاندوینه سمه ده؟ هو یا نه.
۲. ښوونکی له زده کوونکو څخه لاندې پوښتنې کوي.


زیور اکا

**- پوښتنه: د روغتیا لپاره باید څه وکړو؟**
**ځواب: ځانونه، جامې، او شاوخوا پاک او صفا وساتو.**
**- پوښتنه: په ۹۰ کلنۍ کې د زیور اکا غاښونه ولې روغ رمټ وو؟**
**ځواب: ځکه چې تر خوراک وروسته یې غاښونه په برس یا مسواک پاک مینځل.**
**- پوښتنه: ولې ځانونه پاک ساتو؟**
**ځواب: چې ناروغه نه شو، جامې مو پاکې وي او خوشحاله و اوسو.**
**- پوښتنه: که ځان مو پاک ونه ساتو له کومو ستونزو سره به مخ شو؟**
**ځواب: بدن بدبوی کوي او په بېلا بېلو ناروغیو اخته کېږو.**

۳. ښوونکی زده کوونکو ته له متن څخه د مفهوم اخیستلو طریقه ښیي(د دېرو معلوماتو لپاره د برخې عمومي کتنه وګورئ).
۴. هغه څه چې زه پرې پوهېږم: **د ځان پاک ساتل دی.** هغه څه چې ما زده کړل: **د ځان، جامو او شاوخوا پاک ساتل او ورزش ګټور دي.**
پایله: **په پاکوالي او ورزش بدن روغ او غښتلی وي.**

### تکرار او کورنۍ دنده (۵ دقیقې)

۱. **تکرار**: ښوونکی له زده کوونکي سره د(ذ) او (ز) غږونه، توري او کلمې تکراروي.
۲. **کورنۍ دنده:** زده کوونکي توري او کلمې په کورونو کې په خپلو کتابچوکې لیکي او د لومړي متن بیا لوستل په کور کې تمرین کوي.

## فرعي موضوع: د ځان پاک ساتل

**د زده کړې موخې:**

۱. له فعل سره د اشاري ضمیرونو سم کارول.
۲. شارحه (:) او کامه (،) کارول.
۳. له جملو څخه د مترادفو کلمو پېژندل.
۴. د متن لوستل له ۹۵٪ سموالي سره.

### ۱. کلمې او جملې (۱۰ دقیقې)

۱. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې هغوی به د خلکو او شیانو د نومونو پر ځای د اشاري ضمیرونو کارول تمرین کړي.
۲. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې خپلو درسي کتابونو ته ځیر شي.پنځه( ۵) جملې او په یو بکس کې څو کلمې ورکړل شوې دي. ښوونکی له زده کوونکو سره له چوکاټ څخه د سم اشاري ضمیر په اخیستلو د لومړۍ جملې په ځیر د تش ځای په ډکولو کې مرسته کوي. بیا زده کوونکي په ګډه سره کار کولو ته ادامه ورکوي.
۳. کله چې زده کوونکي پر کار بوخت وي، ښوونکی په ټولګي کې ګرځي، له هغو زده کوونکو سره مرسته کوي چې ستونزې لري.
۴. ښوونکی له زده کوونکو څخه پوښتنه کوي چې هغوی په دې درس کې څه زده کړل. (ځواب: د اشاري ضمیر کارول).
۵. ښوونکی د شارحې (:) او کامې (،) نښې پر تخته لیکي او له زده کوونکو څخه پوښتنه کوي چې د دغو نښو نومونه یې په یاد پاتې دي؟ ځینې زده کوونکي ځواب ورکوي. بیا ښوونکی سم ځواب له زده کوونکو سره شریکوي. ښوونکی لاندې جمله پر تخته لیکي.( **زموږ هېواد ډېر لرغوني ځایونه لري، لکه د هرات جامع جومات منارونه، د غزني منارونه، بُست کلا، د رستم تخت**) ښوونکی له زده کوونکو غوښتنه کوي چې په جمله کې د شارحې او کامې نښو د ایښودلو د ځایونو په اړه فکر وکړي. یو څو زده کوونکي ځواب ورکوي، بیا ښوونکی سم ځواب له زده کوونکو سره شریکوي.
۶. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې خپلو کتابونو ته ځیر شي او لومړۍ دوه بېلګې له زده کوونکو سره تمرین کړي.
۷. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې په دوه کسیزه توګه کار وکړي.
۸. ښوونکی له هغو زده کوونکو سره مرسته کوي چې ستونزې لري.
۹. ښوونکی له زده کوونکو څخه دا پوښتنه کوي چې هغوی څه زده کړي دي. هغوی ته اجازه ورکوي چې خپل ځوابونه له ټولګیوالو سره شریک کړي (ځواب: هغوی د شارحې او کامې کارولو په اړه زده کړه ترلاسه کړې ده).

### ۳. د لغتونو زېرمه (۱۵ دقیقې)

۱. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې په ځیر سره دې جملې ولولي.
۲. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې خپلو درسي کتابونو او د تمرین کتابونو ته ځیر شي. هغوی شپږ(۶) جملې وویني. هغوی باید له هغې کلمې څخه دایره تاوه کړي چې په جمله کې له راغلې کلمې سره مطابقت لري چې لاندې ترې خط کښل شوی دی. ښوونکی لومړۍ جمله له زده کوونکو سره ترسره کوي.
۳. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې نورې جملې په دوه کسیزه توګه ترسره کړي.
٤. زده کوونکي همدې تمرین ته د تمرین په کتابونو کې ادامه ورکولای شي.
۵. کله چې زده کوونکي پر کار بوخت وي، ښوونکی په ټولګي کې ګرځي له هغو زده کوونکو سره مرسته کوي چې ستونزې لري.



### ۴. د لومړي متن بیا لوستل (۱۰دقیقې)

۱. د څلور پړاوونو (ښوونکی یې لولي ښوونکی او زده کوونکي یې په ګډه لولي، زده کوونکي یې په جوړه توګه لولي او زده کوونکي یې په انفرادي توګه لولي) په کارولو سره لومړی متن له زده کوونکو سره بیا لوستل.

### تکرار او کورنۍ دنده (۵ دقیقې)

۱. **تکرار:** د اشاري ضمیرونو او مترادفو کلمو تکرارول.
۲. **کورنۍ دنده:** ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې په کورونو کې د کلمې او جملې تمرین په خپلو کتابچو کې ترسره کړي. ښوونکی په زده کوونکو باندې ټینګار کوي چې متن بیا ولولي او د املا د تمرین لپاره د کلمو تمرین ترسره کړي.

**فرعي موضوع: موزیم**　　**توري: ظ، ض**

**د زده کړې موخې:**

۱. د(ظ) او (ض) د غږونو او تورو درلودونکو کلمو سم لیکل.
۲. د انځور، سرلیک، مهمو کلمو او د مخکینۍ پوهې څخه په ګټې اخیستنې سره دا وړاندوینه کول چې متن یا کیسه به د څه په اړه وي.
۳. د پوهې د وضاحت لپاره د یوه متن برخې بیا لوستل
۴. له یوه لوستل شوي متن څخه د مفهوم اخیستلو پایلې استنباط کول.

**۱. توري او کلمې (۱۰ دقیقې)**

۱. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې د(ظ) او (ض) توري سره ورته غږ لري. ځینې کلمې د( ظ) توری او ځینې نور یې بیا د (ض) توری لري.
۲. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې په دې اونۍ کې د هغو کلمو تمرین هم کوي چې د (ظ، ض) توري پکې کارول کېږي.
۳. ښوونکی زده کوونکي د درسي کتاب لوستلو ته رابولي. ښوونکی کلمې په داسې حال کې زده کوونکو ته لولي چې هغوی خپلې ګوتې پر کلمو تېروي. بیا زده کوونکي هغه کلمې په دوه کسیزه توګه لولي.
۴. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې د تمرین په کتابونو کې د کلمو لیکل تمرین کړي.
۵. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې هغوی باید د دغو کلمو لیکل هر ورځ په کور کې تمرین کړي.
۶. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې هغوی به د اونۍ په پای کې د دې کلمو په اړه املا ولري.

**۲. د دویم متن لوستل (۲۵ دقیقې)**

**له لوستلو څخه مخکې**

۱. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې سرلیک او انځور ته وګوري او وړاندوینه وکړي چې متن به د څه په اړه وي. (په خپلو کې شریکول، له ټولګیوالو سره شریکول). زده کوونکي باید درسي کتابونو ته ځیر شي چې هغوی د موضوع په اړه مخکې له مخکې په څه پوهېدل.
۲. ښوونکی درې مهمې کلمې له زده کوونکو سره معنا او په جملو کې کاروي.

**د لوستلو پر مهال**

۱. ښوونکی تمثیل کوي، ښوونکی او زده کوونکي یې په ګډه لولي، زده کوونکي یې په دوه کسیزه او انفرادي توګه لولي.
۲. ښوونکی زده کوونکو ته ښیي چې څنګه کولای شي د تم کېدلو او فکر کولو له ستراتیژۍ څخه د متن د لوستلو پرمهال ګټه واخلي.

**له لوستلو څخه وروسته**

۱. ښوونکی له زده کوونکو څخه پوښتنه کوي چې ایا د کیسې په اړه یې وړاندوینه سمه ده؟ هو/ نه.
۲. ښوونکی له زده کوونکو څخه لاندې پوښتنې کوي:
**- پوښتنه: ښوونکي، ظاهره او د هغې ټولګیوال چېرته بوولي وو؟**



**ځواب: موزیم ته یې بوولي وو.**
**- پوښتنه: ظاهرې او ټولګیوالو یې په موزیم کې کوم شیان ولیدل؟**
**ځواب: مجسمې، ډبرین او خاورین لوښي او بېلابېل انځورونه.**
**- پوښتنه: موزیم د څه لپاره جوړېږي؟**
**ځواب: د تاریخي او لرغونو آثارو د خوندیتوب لپاره.**
**- پوښتنه: که تاریخي آثار، موزیم ته ونه سپارل شي نو څه به پېښ شي؟**
**ځواب: ورک به شي، خراب به شي او تاریخ ته به موزیان ورسیږي.**
۳. ښوونکي زده کوونکو ته له متن څخه د مفهوم اخیستلو طریقه ښیي(د تفصیلي جزییاتو لپاره د دې برخې عمومي کتنه وګورئ).
۴. هغه څه چې زه پرې پوهېږم: **موزیم**
هغه څه چې ما زده کړل: **په موزیم کې تاریخي آثار، مجسمې او ډبرین لوښي شتون لري.**
پایله: **موږ باید خپل تاریخي آثار ښه وساتو.**

**تکرار او کورنۍ دنده (۵ دقیقې)**

۱. **تکرار:** ښوونکی له زده کوونکی سره (ظ) او (ض) تورو لرونکي ځینې کلمې تکراروي.
۲. **کورنۍ دنده:** زده کوونکي توري او کلمې په خپلو کورونو کې په کتابچو کې لیکي او دوهم متن تکراروي.

**فرعي موضوع: موزیم**

**د زده کړې موخې:**

۱- د اشارې ضمیرونو کارول.
۲- د راتلونکې زمانې د کارولو عملاً ښودل
۳- کلمې په دریو (۳) کټګوریو وېشل.
۴- په مناسب لحن، حرکاتو او ٪۹۵ سموالي سره متنونه لوستل.

## ۱. کلمې او جملې (۱۰ دقیقې)

۱. ښوونکی له زده کوونکوڅخه پوښتنه کوي چې آیا هغوی اوس هم په یاد لري چې د یوه شي ملکیت چې په همدوی یا بل چا پورې تړاو لري، څرنګه بیانېږي؟
۲. ښوونکی له زده کوونکو څخه د یو څو بېلګو د وړاندې کولو غوښتنه کوي.
۳. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې خپل درسي کتابونو ته ځیر شي او لومړۍ دوه بېلګې له زده کوونکو سره په ګډه ترسره کوي. کله چې زده کوونکي پر کار بوخت وي، ښوونکی په ټولګي کې ګرځي او له هغو زده کوونکو سره مرسته کوي چې ستونزې لري.
٤. ښوونکی د زده کوونکو ځوابونه ګوري.
۵. ښوونکی د ځینو زده کوونکو نومې د پرله پسې په ارزونې کتاب کې ثبتوي.
٦. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې هغوی به یوه جمله له حال زمانې څخه راتلونکې زمانې ته واړوي.
۷. ښوونکی زده کوونکي خپل درسي کتاب ته ځیر کوي او په ګډه سره د څو جملو تمرین کولو ته رابولي. هغه کلمه چې لاندې یې خط کښل شوی، د عمل کلمه (فعل) ده. دا هماغه کلمه ده چې بدلون مومي.
۸. ښوونکی لومړۍ دوه جملې له زده کوونکو سره تمرین کوي.
۹. ښوونکی زده کوونکي څخه په جوړه توګه د نورو جملو لوستلو او راتلونکې زمانې ته دهغوی بدلولو ته را بولي.
۱۰. ښوونکی له هغو زده کوونکو سره مرسته کوي چې ستونزې لري.

## ۳. د لغتونو زېرمه (۱۵ دقیقې)

۱. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې هغوی به نن یو ځل بیا ډلندي کول تمرین کړي.
۲. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې خپلو درسي کتابونو ته ځیر شي. هغوی(۱۲) کلمې ویني چې په( ۳ ) بېلابېلو کټګوریو پورې اړه لري.



۳. ښوونکی لومړۍ دوه کلمې له زده کوونکو سره ترسره کوي. بیا زده کوونکي په دوه کسیزه توګه خپل کار ته ادامه ورکوي.
٤. ښوونکی له هغو زده کوونکو سره مرسته کوي چې ستونزې لري.

## ۴. د دویم متن بیا لوستل (۱۰ دقیقې)

د څلورو پړاوونو (ښوونکی لولي، ښوونکی او زده کوونکي یې په ګډه لولي، زده کوونکي یې په جوړه توګه لولي او زده کوونکي یې په انفرادي توګه لولي) په کارولو سره دوهم متن له زده کوونکو سره بیا لوستل.

## تکرار او کورنۍ دنده (۵ دقیقې)

۱. **تکرار :** ښوونکی له زده کوونکو سره شخصي ضمیرونه او راتلونکې زمانې ته دجملو اړول تکراروي.
۲. **کورنۍ دنده:** ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې کلمې او جملې په کورونو کې په خپلو کتابچو کې ولیکي.
ښوونکی په زده کوونکو باندې ټینګار کوي چې متن بیا ولولي او د املا د تمرین لپاره د کلمو د لیکلو تمرین ترسره کړي.

د حسن خط فعالیت، ارزونه او کورنۍ دنده (۴۰ دقیقې )

**فرعي موضوعګانې: ځان پاک ساتل، موزیم**

**د زده کړې موخې:**

۱- له ملګرو سره د شخړو هوارول په عملي توګه وړاندې کول.
۲- د نوښتي لیکنې د کیسې بشپړول.
۳- له مناسب لحن او حرکاتو سره او ٪۹۵ سموالي سره د متن لوستل.

### ۱. غوږنیول او خبرې کول (۱۰ دقیقې)

۱. زده کوونکو ته و وایاست چې په دې درس کې به د ځورولو د مخنیوی په اړه خبرې وکړو. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې موږ باید د ځورولو د مخنیوي لپاره د سمو لارو چارو څخه کار واخلو.

۲. زده کوونکو ته و وایاست چې د درسي کتاب انځورونو ته وګوري. له هغوی څخه وپوښتئ چې په انځورونو کې څه شیویني؟ په انځورونو کې څه ډول احساس پېژندلی شي؟ (په لومړي انځور کې یو زده کوونکی بل زده کوونکی ځوروي). یو بل زده کوونکی له هغو زده کوونکو سره چې نور ځوروي خاندي. هلته یو بل زده کوونکی هغوی ته وایي چې ماشوم مه ځوروئ او ځورول مو بند کړئ، خو یو بل زده کوونکی بیا خپلو لوبو ته ادامه ورکوي.

۳. ښوونکی له زده کوونکو پوښتنه کوي چې چا ځورول کول؟ څوک ځورول کېږي؟ له نورو زده کوونکو څخه څوک د ځورولو په اړه عکس العمل ښیي؟ له زده کوونکو څخه پوښتنه وکړئ چې د ځورولو د مخنیوي په اړه د کوم زده کوونکي چلند ښه و؟ زده کوونکو ته اجازه وکړئ چې دې پوښتنو ته ځوابونه و وایي.

۴. زده کوونکو ته و وایاست چې د تمرین کتابونو ته وګوري. دوی د تمرین په کتابونو کې خالي ځای ویني چې د ځورولو د مخنیوي په اړه دې پکې معلومات ولیکي. له زده کوونکو وغواړئ چې په کوچنیو(۳-۴) کسیزه ډلو کې کار وکړي. هغوی ته اجازه ورکړئ چې د ځورولو د مخنیوي پر لارو چارو یو له بل سره خبرې وکړي. هغوی دې د ځورولو د مخنیوي د لارې چارو په اړه پوسترونه جوړ کړي او د تمرین په کتابونو کې یې دې ولیکي.

۵. له زده کوونکو وغواړئ چې خپل پوسترونه ټولګیوالو ته وښیي او ورته تشریح یې کړي.

۶. زده کوونکي دې څرګنده کړي چې موږ باید د ځورولو مخنیوی وکړو. موږ باید یو او بل و نه ځوروو.



### ۲. نوښتي لیکنه (۱۵ دقیقې)

۱. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې هغوی به اوس د ځورولو د مخنیوي په اړه یوه کیسه ولیکي.

۲. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې د درسي کتاب جملې او د چوکاټ کلمې په یوازې توګه ولولي.

۳. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې د تمرین په کتابونو کې د چوکاټ د کلمو په کارولو سره په تشو ځایونو کې په یوازې توګه جملې جوړې کړي او نیمګړې کیسه دې بشپړه کړي.

۴. ښوونکی په ټولګي کې ګرځي او هغو زده کوونکو ته چې ستونزې لري مرسته او لارښوونه کوي.

۵. ښوونکی له څو زده کوونکو غواړي چې خپلې بشپړې کړې کیسې ټولګیوالو ته و وایي.

### ۳. دلومړي اودویم متن بیالوستل (۱۰ دقیقې)

ښوونکی له دوو پړاوونو (زده کوونکي په دوه کسیزه توګه لولي، زده کوونکي یې په انفرادي توګه لولي) څخه په ګټې اخیستنې سره لومړی او دوهم متن له زده کوونکو سره بیا لولي.

### تکرار او کورنۍ دنده (۵ دقیقې)

۱. **تکرار:** له ملګرو سره شخړې هوارول

۲. **کورنۍ دنده:** د لومړي او دوهم متن بیا لوستل. د نوښتي کیسې بشپړول او په اړه یې یو انځور رسمول.

## موضوع: تکرار او دوامداره ارزونه

**د زده کړې موخې:**

۱- د اشارې ضمیرونو او فعل کارول.
۲- د راتلونکي زماني کارول.
۳- کلمې ډلبندي کول.
٤- له ٪۹۰ سموالي سره د متن لوستل.
٥- د کلمې او جملې په کچه له مناسب لحن او فشار څخه په ګټه اخیستنې سره د متن لوستل.
٦- له ٪۸۰ سموالي سره کلمې او جملې لیکل.

### ۱. کلمې او جملې (۱۰ دقیقې)

۱. ښوونکی اشاري ضمیرونه تکراروي.
۲. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې د درسي کتاب د (الف) تمرین دې ترسره کړي.
۳. ښوونکی له جملې څخه په ګټه اخیستلو سره د کلمې د معنا پیدا کول تکراروي.
٤. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې د درسي کتاب د (ب) تمرین ترسره کړي.
٥. ښوونکی راتلونکې زمانه تکراروي.
٦. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې د درسي کتاب د (ب) تمرین دې ترسره کړي.
٧. ښوونکی د زده کوونکو ځوابونه ګوري.
٨. ښوونکی د پرله پسې ارزونې په کتاب کې د ځینو زده کوونکو نومرې ثبتوي.

### ۲. د لومړي او دویم متن بیا لوستل (۱۰ دقیقې)

۱. ښوونکی زده کوونکو ته دوې دقیقې وخت ورکوي چې په دوه کسیزه توګه لومړی یا دوهم متن ژر ژر ولولي.
۲. ښوونکی د زده کوونکو له څلور (۴) جوړو څخه غوښتنه کوي چې د ټولګي مخې ته راشي.
۳. ښوونکی هغوی ته وایي چې هره جوړه به د متن یوه برخه لولي. هغوی باید متن په روانۍ سره او د مناسب لحن او حرکاتو په کارولو سره ولولي چې ټکی او د پوښتنې نښې منعکسې کړي.
٤. ښوونکی ټولګي ته وایي چې ورو ورو متن له لوستونکي سره ولولي او ورته ښه غوږ ونیسي.
٥. کله چې اته (۸) زده کوونکي په لوستلو بوخت وي، ښوونکی د هغوی د لوستلو څرنګوالی مشاهده کوي او خپله مشاهده د پرله پسې ارزونې په کتاب کې لیکي. له هغو زده کوونکو سره چې دا فعالیت په ښه توګه نه شي ترسره کولای باید په راتلونکې اونۍ کې مرسته ورسره وشي.



### ۳. املا (۱۵ دقیقې)

۱. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې اوس به یو څو کلمې او جملې ولیکي.
۲. ښوونکی زده کوونکو ته د درسي کتابونو د بندولو او د تمرین د کتابونو د پرانیستلو لارښونه کوي. ښوونکی لومړی کلمه په کراره وایي او څلور (۴) ځلې یې تکراروي. کلمه دا ده: **ذاکر** زده کوونکي کلمه لیکي.
۳. ښوونکي همدغه کار د لاندې اتو (۸) کلمو لپاره هم ترسره کوي.
**۱- میز ۲- کاغذ ۳- زبیر ۴- پیاز ۵- لفظ ٦- لحاظ ۷- بزګر ۸- قرض**
٤. ښوونکی لومړی جمله په کراره لولي او څلور ځله یې تکراروي جمله دا ده: **۱. زه ښکلی میز لرم.**
٥. زده کوونکي جمله د تمرین په کتاب کې لیکي.
٦. ښوونکي همدا کار د لاندې (۳) جملو لپاره هم ترسره کوي.
**۲. د حج کول فرض دي.**
**۳. ظاهر په حوض کې لامبي.**
**۴. د مسواک کارول غاښونه روغ ساتي.**
٧. ښوونکی، زده کوونکو ته وایي چې د تمرین کتابچې د کتلو لپاره راوړي. ښوونکي د هغوی املا ګوري او نومرې ورکوي.
٨. ښوونکی د زده کوونکو نومرې د پرله پسې ارزونې کتاب کې ثبتوي.

### تکرار او کورنۍ دنده (۵ دقیقې)

۱. **تکرار:** هغه څه تکرارول چې زده کوونکو په دې اونۍ کې زده کړي دي.
۲. **کورنۍ دنده:** ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې په کورونو کې د درسونو د هغو برخو بیا لیکل او لوستل دې ترسره کړي چې د اونۍ په جریان کې یې ورسره ستونزې لرلې.

د حسن خط فعالیت، ارزونه او کورنۍ دنده (۴۰ دقیقې)

## د اوومې برخې عمومي کتنه: اصلي موضوع: معیشت( ژوند کول)

### د زده کړې موخې:

زده کوونکي د دې برخې تر پایه به د دې وړتیا ولري چې:

١. په چټکۍ سره د کلمو د تجزیې لپاره د کلمو د جوړښت اړونده د مورفیمونو له پوهې څخه ګټه واخلي.
٢. مثبت او منفي فعلونه وکاروي.
٣. مرکبې جملې وکاروي.
٤. کلمې ډلبندي کړي.
٥. د متن د سیاق له سموالي نه په ګټې اخیستنې سره د کلمو معنا ترلاسه کړي.
٦. د مهمو کلمو پر معنا پوه شي او په خبرو یا لیکلو کې یې وکاروي.
٧. له انځور، سرلیک، مهمو کلمو او مخکینۍ پوهې څخه کار اخیستلو سره
٨. دا وړاندوینه کول چې یو متن به د څه په اړه وي، د لوستلو پر مهال د تم کېدلو او فکر کولو دستراتیژۍ څخه کار واخلي.
٩. له یوې جملې سره د واقعیتي پوښتنو پر وړاندې غبرګون وښیي.
١٠. د ټولګي له کچې سره برابر د یو متن درک کول وارزوي.
١١. له٪ ٨٠ سموالي سره د لوستلو پوښتنو ته ځواب و وايي.
١٢. له مناسب لحن. حرکاتو سره او ٪ ٩٥ سموالي سره متنونه ولولي.
١٣. په درست ډول د /ا/ او /ع/ غږونو او/ ا / /ع/ تورو درلودونکې کلمې ولیکي.
١٤. ٪٨٠ سموالي سره کلمې او جملې ولیکي.
١٥. یو پاراګراف ولیکي.
١٦. زده کوونکي به په نسخ خط سره کامه او شارحه لرونکې مثبتې او منفي جملې د کرسۍ خط پر مخ په صحیح او ښکلې بڼه ولیکلای شي.

### د حسن خط فعالیت (۳۵دقیقې)

ښوونکي دي د لاربنود د مقدمې د (٢٢- ٢٣) مخونو د لارښوونو سره سم کامه او شارحه لرونکې مثبتې او منفي جملې تدریس کړي.

### د حسن خط ارزونه او کورنۍ دنده(۵ دقیقې)

١- له خو زده کوونکو څخه د کلمو د ښایسته لیکلو په اړه پوښتنه وکړي.
٢- زده کوونکي دې له کرکې یا پنسل قلم سره کامه او شارحه لرونکې مثبتې او منفي جملې په کورونو کې تمرین کړي.

### د ټولنیزي عاطفي زده کړې موخې

١. د دې برخې تر پایه، زده کوونکي به د دې وړتیا ولري چې:
٢. بیان کړي چې د هغوی ټول کړه وړه/ عادتونه پر نورو اغېزه اچولای شي.
٣. د شخړو د مخنیوي لپاره د یوې پېښې پر وړاندې غبرګون وښیي.
٤. د ټولنې په مثبته فضا (چاپېریال) منځته راوړلو کې ونډه واخلي.

**د لوست پیل (۵دقیقې):** د لوست د پیل ټول مقدماتي فعالیتونه دې ترسره شي.

### د دې برخې ځانګړي فعالیتونه

١. کلمې او جملې (١٠ دقیقې)
٢. ښوونکی پر تخته  د لاندې جملې په لیکلو درس پیلوي **(اتل بانجان کري)** او بیانوي چې دا یوه ساده جمله ده. ښوونکی زده کوونکو ته تشریح کوي چې ساده جمله کې یو مفهوم نغښتی وي.
٣. ښوونکی پر تخته لاندې جمله **(اتل بانجان کري او خیبر یې اوبه کوي)** لیکي او وایي چې دا یوه مرکب جمله ده. ښوونکی زده کوونکو ته تشریح کوي چې یوه مرکبه جمله دوه بېل مفاهیم او فعلونه لري چې یو له بل سره تړاو لري.
٤. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې هغوی به د مرکبو جملو پېژندل او جوړول زده کوي.
٥. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې د ښوونکي په مرسته د لومړۍ دوه بېلګو د لوستلو او د ترسره کولو لپاره خپل درسي کتابونو ته ځیر شي.
٦. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې د تمرین په کتاب کې د تمرین د سرته رسولو لپاره په دوه کسیزه توګه کار وکړي.
٧. کله چې زده کوونکي د مرکبو جملو په تمرین باندې په کار بوخت وي، ښوونکی په ټولګي کې ګرځي ترڅو له هغو زده کوونکو سره مرسته وکړي چې ستونزې لري.
٨. دروېشتمه اونۍ: زده کوونکي د خپل ښوونکي په مرسته مرکبو جملې تمرین کوي.
٩. څلورېشتمه اونۍ: ښوونکی له زده کوونکو څخه د مرکبو جملو د فعالیتونو د ترسره کولو غوښتنه کوي.

١. **مثبت او منفي فعلونه**
٢. توري، کلمې او جملې (١٠ دقیقې)
٣. ښوونکی پر تخته  د لاندې جملې په لیکلو درس پیلوي **زه بادرنګ کرم**
٤. او بیانوي چې دا یوه مثبت فعل دی. ښوونکی زده کوونکو ته تشریح کوي چې فعل په مثبت حالت کې قرار لري.
٥. ښوونکی همدغه جمله له منفي فعل سره پر تخته لیکي: **زه بادرنګ نه کرم.** ښوونکی زده کوونکو ته تشریح کوي چې فعل اوس په منفي حالت کې قرار لري.
٦. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې هغوی به په مثبت اومنفي دواړو حالتونو کې د فعل کارول زده کړي.
٧. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې د ښوونکي په مرسته د لومړۍ دوه بېلګو د لوستلو او د ترسره کولو لپاره خپل درسي کتابونو ته ځیر شي.
٨. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې د تمرین په کتاب کې د تمرین د سرته رسولو لپاره په دوه کسیزه توګه  کار وکړي.
٩. کله چې زده کوونکي پر مثبت او منفي فعلونو په تمرین بوخت وي، ښوونکی په ټولګي کې ګرځي. ترڅو له هغو زده کوونکو سره مرسته وکړي چې ستونزې لري.
١٠. دروېشتمه اونۍ: زده کوونکي د خپل ښوونکي په مرسته مثبت او منفي فعلونه تمرین کوي.
١١. څلورېشتمه اونۍ: ښوونکی له زده کوونکو څخه د مثبت او منفي فعلونو د فعالیتونو د ترسره کولو غوښتنه کوي.

فرعي موضوع: شنه خونه — توری: ح

**د زده کړې موخې:**

۱. د /ح/ غږ او تورو درلودونکو کلمو درست ليکل.
۲. د انځور، سرليک، مهمو کلمو او د مخکيني پوهې څخه په ګټې اخيستنې سره دا وړاندوينه کول چې متن يا کيسه به د څه په اړه وي.
۳. دلوستلوپرمهال دتم کېدلواوفکرکولوله ستراتيژۍ څخه کاراخيستل
۴. د متن لنډيز بيانول.

**۱. توری او کلمې (۱۰ دقيقې)**

۱. ښوونکی زده کوونکو ته وايي چې د /ا/ او /ح/ غږونه سره نږدې دي. ځينې کلمې د (ا) توری او ځينې نورې کلمې بيا د (ح) توری لري.
۲. ښوونکی زده کوونکو ته وايي چې په دې اونۍ کې به هغه کلمې تمرين کړي چې د (ح) توري پکې کارول کېږي.
۳. ښوونکی لاندې کلمې پر تخته ليکي: (**حاجي، محمد، اصلاح**) ښوونکی له زده کوونکو څخه په لوړ غږ د کلمو د لوستلو غوښتنه کوي. ښوونکی له زده کوونکو څخه پوښتنه کوي چې کومې کلمې د /ا/ او /ح/ غږونه لري. ښوونکی څو زده کوونکو ته اجازه ورکوي چې توري ته ګوته ونيسي.
۴. ښوونکی د زده کوونکو پام درسي کتاب ته راواړوي. ښوونکی، زده کوونکو ته کلمې په داسې حال کې لولي چې هغوی خپلې ګوتې پر کلمو تېروي. بيا زده کوونکي کلمې په دوه کسيزه توګه لولي.
۵. ښوونکی زده کوونکو ته وايي چې د تمرين په کتابونو کې د کلمو ليکل تمرين کړي.
۶. ښوونکی زده کوونکو ته وايي چې هغوی بايد په کور کې هره ورځ د دغو کلمو تمرين وکړي.

**۲. د لومړي متن لوستل (۲۵ دقيقې)**

**له لوستلو څخه مخکې**

۱. ښوونکی زده کوونکو ته وايي چې سرليک او انځور ته وګوري او وړاندوينه وکړي چې متن به د څه په باره کې وي. (په خپلو کې شريکول، له ټولګيوالو سره شريکول).
زده کوونکي بايد درسي کتابونو ته ځير شي چې هغوی د موضوع په اړه مخکې له مخکې په څه پوهېدل.
۲. ښوونکی درې مهمې کلمې له زده کوونکو سره معنا او په جملو کې يې کاروي.

**د لوستلو پر مهال**

۱. ښوونکی يې لولي، ښوونکی او زده کوونکي يې په ګډه لولي، زده کوونکي يې په دوه کسيزه توګه لولي.
۲. ښوونکی زده کوونکو ته ښيي چې څرنګه کولای شي د تم کېدلو او فکر کولو له ستراتيژۍ څخه متن د لوستلو پرمهال ګټه واخلي.

**له لوستلو څخه وروسته**

۱. ښوونکی له زده کوونکو څخه پوښتنه کوي چې ايا د کيسې په اړه يې وړاندوينه سمه ده؟ هو يا نه.
۲. ښوونکی له زده کوونکو څخه لاندې پوښتنې کوي.


۲۲
توری او کلمې

| | | | |
|---|---|---|---|
| حاجي | محمد | اصلاح | ح |
| حامد | محمود | نصيحت | |
| نکاح | صلح | صالح | |

شنه خونه — اقلیم — واګ

شنه خونه

**- پوښتنه: چا د ترکاريو فارم جوړ کړ؟**
**ځواب: حکيم خان.**
**- پوښتنه: د ترکاريو په پيسو د څه شي لګښتونه پوره کېدل؟**
**ځواب: د کور او مکتب.**
**- پوښتنه: د شنو خونو جوړول کومې ګټې لري؟**
**ځواب: په شنو خونو کې ترکارۍ ژر وده کوي او زيات حاصل ورکوي.**
**-پوښتنه: په شنو خونو کې کوم شيان کرل کېږي؟**
**ځواب: بادرنګ، بينډۍ، روميان، بانجان او نور.**

۳.ښوونکي، زده کوونکو ته له متن څخه د پايلو د استنباط کولو طريقه ښيي(د تفصيلي جزياتو لپاره د دې برخې عمومي کتنه وګورئ. هغه څه چې زه پرې پوهېږم:
**په شنو خونو کې ډول ډول ترکاري کرل کېږي.**
۴. هغه څه چې ما زده کړل. **د شنو خونو له لارې موږ کولای شو پيسې لاسته راوړو، د کور او مکتب لګښتونه پرې پوره کړو.**

**تکرار او کورنۍ دنده (۵ دقيقې)**

**تکرار:** ښوونکی له زده کوونکو سره څو هغه کلمې چې د /ا/ او /ح/ حرف غږ لري، تکراروي.
**کورنۍ دنده:** زده کوونکي توري او کلمې په کورونو کې په خپلو کتابچو کې ليکي. هغوی د لومړي متن بيا لوستل په کور کې تمرين کوي.

**فرعي موضوع: شنه خونه**

## د زده کړې موخې:

۱. دمثبت او منفي فعلونو پېژندل او کارول.
۲. کلمې په ۴ کټګوریو کې وېشل.
۳. له مناسب لحن، حرکاتو سره او ۹۵٪ سموالي سره متن لوستل.

### ۱. کلمې او جملې (۱۰ دقیقې)

۱. ښوونکی پر تخته د لاندې جملې په لیکلوسره درس پیلوي (**زه بادرنګ کرم**) او وايي چې دا یو مثبت فعل دی. ښوونکی زده کوونکو ته تشریح کوي چې فعل په مثبت حالت کې قرار لري.
۲. ښوونکی همدغه جمله له منفي فعل سره پر تخته لیکي: (**زه بادرنګ نه کرم**) ښوونکی، زده کوونکو ته تشریح کوي چې فعل اوس په منفي حالت کې قرار لري.
۳. ښوونکی زده کوونکو ته وايي چې هغوی به په مثبت او منفي دواړو حالتونو کې د فعل پېژندل یا کارول زده کړي.
٤. ښوونکی زده کوونکو ته وايي چې د ښوونکي په مرسته د لومړیو دوه بېلګو د لوستلو او د ترسره کولو لپاره خپل درسي کتاب ته ځير شي.
٥. ښوونکی زده کوونکو ته وايي چې د تمرین په کتاب کې د تمرین د سرته رسولو لپاره په دوه کسيزه توګه کار وکړي.
٦. کله چې زده کوونکي پر مثبت او منفي فعلونو باندې په تمرین بوخت وي، ښوونکی په ټولګي کې ګرځي تر څو له هغو زده کوونکو سره مرسته وکړي چې ستونزې لري.
٧. ښوونکی له زده کوونکو څخه پوښتنه کوي چې و وايي هغوی په دې اونۍ کې څه زده کړي دي. (ځواب: مثبت او منفي فعلونه.)

### ۲. د لغتونو زېرمه (۱۵ دقیقې)

۱. ښوونکی، زده کوونکو ته وايي چې هغوی به نن یو ځل بیا د کلمو ډلبندي کول تمرین کوي.
۲. ښوونکی زده کوونکو ته وايي چې کلمې له دوه یا درې څخه په ډېرو ډلو کې وېشل کېدای شي. هغوی به نن همدا کار تمرین کوي.
۳. ښوونکی زده کوونکي د خپل درسي کتاب لوستلو ته رابولي. هغوی دولس(۱۲) کلمې ویني چې څلور(۴) بېلابېلو ډلو (کټګوریو) سره تړاو لري. ښوونکی له یوه زده کوونکي څخه د څلور(۴) کټګوریو د لوستلو غوښتنه کوي.
٤. ښوونکی زده کوونکو ته خپل د تمرین کتاب کې د تمرین د ترسره کولو وايي.


کلمې او جملې
۱ زه بادرنګ کرم — زه بادرنګ نه کرم
د لغتونو زېرمه
د لومړي متن بیا لوستل

٥. ښوونکی لومړۍ دوه کلمې له زده کوونکو سره ترسره کوي. بیا زده کوونکي په دوه کسيزه توګه کار کولو ته ادامه ورکوي. کله چې زده کوونکي په کار بوخت وي، ښوونکی په ټولګي کې ګرځي تر څو له هغو زده کوونکو سره مرسته وکړي چې ستونزې لري.
٦. لږ وخت وروسته، ښوونکی د زده کوونکو ځوابونه ګوري او له زده کوونکو څخه پوښتنه کوي چې و وايي هغوی په دې اونۍ کې څه زده کړي دي. (ځواب: له بېلابېلو کټګوریو سره د کلمو تړاو درلودل).

### ۳. د لومړي متن بیا لوستل (۱۰دقیقې)

۱. د څلور پړاوونو (ښوونکی لولي ښوونکی او زده کوونکي په ګډه لولي، زده کوونکي په دوه کسيزه توګه لولي او زده کوونکي یې انفرادي ډول لولي) په کارولو سره لومړی متن له زده کوونکو سره بیا لولي.

### تکرار او کورنۍ دنده (۵ دقیقې)

۱. **تکرار:** د مثبت او منفي فعلونو مفهوم او مثالونو تکرارول.
۲. **کورنۍ دنده:** ښوونکی زده کوونکو ته وايي چې د کلمو او جملو تمرین په کورونو کې په خپلو کتابچو کې ترسره کړي او دوهم متن لوستل تکراروي.

## فرعي موضوع: زعفران

**د زده کړې موخې:**

۱. په چټکۍ سره د کلمو د تجزیه کولو لپاره د مورفیمونو په اړه د کلمو د جوړښت د پوهې کارول.
۲. له انځور، سرلیک، مهمو کلمو او مخکینۍ پوهې څخه ګټې اخیستلو سره دا وړاندوینه کول چې یوه کیسه یا متن به د څه په اړه وي
۳. د پوهې د وضاحت لپاره د یوه متن د برخو بیا لوستل.
٤. له یوه لوستل شوي متن څخه د مفهوم اخیستل.

### ۱. کلمې (۱۰ دقیقې)

۱. ښوونکی د لومړۍ کلمې جوړښت کټ مټ هغسې پر تخته لیکي لکه په درسي کتاب کې چې لیکل شوی دی.
۲. ښوونکی بېلګه په لوړ غږ زده کوونکو ته لولي. بیا ښوونکی بېلګه له زده کوونکو سره یوځای لولي.
۳. ښوونکی تشریح کوي که چېرې له یوې کلمې سره یو یا څو توري زیات شي. د کلمې معنا بدلېږي.
٤. ښوونکی زده کونکو ته وایي چې خپل درسي کتاب ته ځیر شي او لومړۍ دوه بېلګې له زده کوونکو سره لولي.
٥. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې په درسي کتابونو کې په دوه کسیزه توګه کار وکړي.
٦. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې د تمرین په کتابونو کې د کلمو لیکل تمرین کړي.
۷. کله چې زده کوونکي د کلمو په لوستلو کې بوخت وي، ښوونکی په ټولګي کې ګرځي له هغو زده کوونکو سره مرسته کوي. چې ستونزې لري.

### ۲. د دویم متن لوستل (۲۵ دقیقې)

**له لوستلو څخه مخکې**

۱. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې سرلیک او انځور ته وګوري او وړاندوینه وکړي چې متن به د څه په اړه وي. (په خپلو کې شریکول، له ټولګیوالو سره شریکول). زده کوونکي باید درسي کتابونو ته ځیر شي.
۲. ښوونکی درې مهمې کلمې له زده کوونکو سره معنا او په جملو کې یې کاروي.

**د لوستلو پر مهال**

۱. ښوونکی متن لولي، ښوونکی او زده کوونکي یې په ګډه لولي، زده کوونکي یې په دوه کسیزه توګه لولي.
۲. ښوونکی زده کوونکو ته ښیي چې څنګه کولای شي د تم کېدلو او فکر کولو له ستراتیژۍ څخه د لوستلو پرمهال ګټه واخلي.

**له لوستل څخه وروسته**

۳. ښوونکی له زده کوونکو څخه پوښتنه کوي چې ایا د کیسې په اړه یې وړاندوینه سمه ده؟ هو یا نه.



کلمې او جملې

| څښم | نه + څښم | نه څښم |
|---|---|---|
| خوړم | نه + خوړم | نه خوړم |
| کړم | نه + کړم | نه کړم |
| خاندم | نه + خاندم | نه خاندم |

زعفران — ترې — پلورل

زعفران

په ننګرهار کې د زعفرانو د کښت په اړه غونډه جوړه شوه. په غونډه کې د کرنې مسؤولینو او بزګرانو ګډون کړی و. غونډه د قرآن کریم د څو مبارکو آیتونو په تلاوت پیل شوه. بیا د کرنې رییس د زعفرانو په ارزښت خبرې وکړې. هغه وویل زموږ د هېواد زعفران د نړۍ په بازارونو کې ښه پلورل کېږي. زعفران د خوړو، درملو، عطرو او رنګونو په جوړولو کې کارول کېږي.
وروسته یوه بزګر وویل: موږ غواړو چې د کوکنارو پر ځای د زعفرانو کښت پیل کړو. موږ ته باید د زعفرانو د کښت په برخه کې لارښوونې وشي.
په پای کې د زعفرانو د راټولولو په اړه یو فلم وښودل شو.

۱۲۹

٤. ښوونکی له زده کوونکو څخه لاندې پوښتنې کوي.
**-پوښتنه: په ننګرهار کې د څه په اړه غونډه جوړه شوه؟**
**ځواب: د زعفرانو د کښت په اړه.**
**-پوښتنه: له زعفرانو څخه څه شی جوړیږي؟**
**ځواب: عطر، درمل، او رنګونه.**
**- پوښتنه: د زعفرانو کرل څه ګټې لري؟**
**ځواب: زعفران په ښه بیه پلورل کېږي.**
**- پوښتنه: زعفران د هېواد په کوم ولایت کې ډېر کرل کېږي؟**
**ځواب: هرات، بادغیس، غور.**
۳. ښوونکي زده کوونکو ته له متن څخه مفهوم اخیستنې طریقه ښیي(د تفصیلي جزیاتو لپاره د برخې عمومي کتنه وګورئ).

### تکرار او کورنۍ دنده (۵ دقیقې)

۱. **تکرار:** ښوونکی له زده کوونکو سره د منفي راو مثبت فعلونه تکراروي.
۲. **کورنۍ دنده:** زده کوونکي کلمې په کورونو کې په خپلو کتابچو کې لیکي. زده کوونکي د دوهم متن بیا لوستل په کور کې تمرین کوي.

## فرعي موضوع: زعفران

**د زده کړې موخې:**

۱- د ساده او مرکبو جملو پېژندل او کارول.
۲- کلمې په څلورو کټګوریو وېشل
۳- له مناسب لحن، حرکاتو سره او٪ ۹۵ سموالي سره د متن لوستل.

### ۱. توري او جملې (۱۰ دقیقې)

۱. ښوونکی پر توره تخته د لاندې جملې په لیکلو سره درس پیلوي (**اتل بانجان کري**) او وایي چې دا یوه ساده جمله ده. ښوونکی زده کوونکو ته تشریح کوي چې په ساده جمله کې یو مفهوم نغښتی وي.
۲. ښوونکی پر تخته لاندې جمله ( **اتل بانجان کري او خیبر یې اوبه کوي**) لیکي او بیانوي چې دا یوه مرکبه جمله ده. ښوونکی زده کوونکو ته تشریح کوي چې یوه مرکبه جمله دوه بېل مفاهیم او فعلونه لري چې یوه له بل سره تړاو لري.
۳. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې هغوی به د ساده او مرکبو جملو پېژندل زده کړي. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې د ښوونکي په مرسته د لومړي تمرین دوه بېلګو د لوستلو او د ترسره کولو لپاره خپل درسي کتاب ته ځیر شي.
٤. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې د تمرین په کتاب کې د تمرین د سرته رسولو لپاره په دوه کسیزه توګه کار وکړي. کله چې زده کوونکي د مرکبو جملو په تمرین باندې په کار بوخت وي، ښوونکی په ټولګي کې ګرځي تر څو له هغو زده کوونکو سره مرسته وکړي چې ستونزې لري.
۵. ښوونکی له زده کوونکو څخه غوښتنه کوي چې و وایي هغوی په دې درس کې څه زده کړي دي. (ځواب: ساده او مرکبې جملې.)

### ۲. د لغتونو زېرمه (۱۵ دقیقې)

۱. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې هغوی به نن یو ځل بیا د کلمو ډلبندۍ کول تمرین کوي.
۲. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې کلمې له دوه(۲) یا درې(۳) څخه په زیاتو ډلو کې وېشل کېدای شي. هغوی به نن همدا کار تمرین کوي.
۳. ښوونکی زده کوونکي دخپل درسي کتاب لوستلو ته رابولي. هغوی دولس(۱۲) کلمې ویني چې په څلورو (۴) بېلابېلو ډلو (کټګوریو) سره تړاو لري. ښوونکی له یوه زده کوونکي څخه د څلور(۴) کټګوریو د لوستلو غوښتنه کوي.
٤. ښوونکی زده کوونکو ته د تمرین کتاب کې د تمرین د ترسره کولو وایي. ښوونکی لومړۍ دوه کلمې له زده کوونکو سره ترسره کوي. بیا زده کوونکي په دوه کسیزه توګه تمرین ته ادامه ورکوي.
۵. کله چې زده کوونکي په کار بوخت وي، ښوونکی په ټولګي کې ګرځي ترڅو له هغو زده کوونکو سره مرسته وکړي چې ستونزې لري.
٦. لږ وخت وروسته، ښوونکی د زده کوونکو ځوابونه ګوري.
۷. ښوونکی له زده کوونکو څخه پوښتنه کوي چې و وایي هغوی څه زده کړي دي. (ځواب: له بېلابېلو کټګوریو سره د کلمو تړاو درلودل).



### ۳. د دویم متن بیا لوستل (۱۰دقیقې)

د څلور پړاوونو (ښوونکی لولي، ښوونکی او زده کوونکي یې په ګډه لولي، زده کوونکي یې په دوه کسیزه توګه لولي او زده کوونکي یې په انفرادي ډول لولي) په کارولو سره دوهم متن له زده کوونکو سره بیا لولي.

### تکرار او کورنۍ دنده (۵ دقیقې)

۱. **تکرار:** د ساده او مرکبو جملو د کارولو تکرار.
۲. **کورنۍ دنده:** ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې د کلمو لیکل دې په کورونو کې په خپلو کتابچو کې ترسره کړي.
ښوونکی په زده کوونکو باندې ټینګار کوي چې متن بیا ولولي او د املا د تمرین لپاره د کلمو تمرین ترسره کړي.

د حسن خط فعالیت، ارزونه او کورنۍ دنده (۴۰ دقیقې )

## فرعي موضوعګانې شنه خونه او زعفران

### د زده کړې موخې:

۱- د خلکو سره ښه چلند او رویه کول.
۲- د نوښتي لیکنې د متن بشپړول.
۳- له مناسب لحن، حرکتونو سره او٪ ۹۵ سموالي سره د متن لوستل.

### ۱. غوږنیول او خبرې کول (۱۰ دقیقې)

۱. زده کوونکو ته و وایاست چې د نن ورځې په درس کې به له خلکو سره د ښه چلند او رویې په اړه بحث وکړو. تاسو له خلکو سره څه ډول چلند کوئ؟ خلک د تاسو د چلند په اړه څه ډول عکس العمل ښیي؟
۲. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې د درسي کتاب انځورونو ته وګورئ او په اړه یې بحث وکړئ. په انځور کې بزګر څه کوي؟ په انځور کې هغه بل بزګر ولې خوشحاله دی؟ کوم ډول کار د څه ډول عکس العمل سبب کېږي؟
۳. ښوونکو له زده کوونکو غواړي د پورتنیو پوښتنو په اړه د خپل څنګ له ملګرو سره بحث وکړي. څو زده کوونکي دې خپل نظرونه له ټولګیوالو سره شریک کړي.
۴. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې مونږ څه شي ترسره کوو او په څه ډول یې چې ترسره کوو، زمونږ کړه وړه د نورو خلکو عکس العمل اغیزمن کوي. د مثال په توګه، کله چې بزګر غواړي خپله ځمکه او بوټي اوبه کړي، نو کولی شي له ګاونډي څخه اجازه وغواړي. که بزګر دا کار وکړي، نو خامخا به د ګاونډي له خوا مثبت عکس العمل یا ځواب تر لاسه کوي، خو که دا کار ونه کړي، کیدای شي د ګاونډي له خوا منفي عکس العمل یا ځواب تر لاسه کړي.
۵. زده کوونکو ته و وایاست چې د تمرین کتابونو ته وګورئ. د تمرین په کتابونو کې یو فعالیت‌ترسره کوئ چې له دوی سره مرسته کوي چې د خلکو د کړو وړو او عکس العملونو په اړه فکر وکړي. دا فعالیت له زده کوونکو سره مرسته کوي چې پر خلکو باندې د هغوی د چلند د اغیز په اړه پوه شي.
٦. ښوونکی د زده کوونکو ځوابونه اوري: ( یو او بل په غېږ کې نیول ـــــ دوست لري، وهل ـــ په غوسه کیدل، داسې ویل: ښه غواړم ـــ بخښش، د لوبو شیان شریکول ـــ ملګرتیا، ښوونځي ته تلل ـــ د لویانو په خیر کار ترسره کول، ملګری ته غوږ نیول ـــ نږدې ملګرتیا).
۷. زده کوونکو ته و وایاست کله چې تاسو هر کار ترسره کوئ، نو ستاسو کړوه وړه پر نورو اغیز کوي او د هغوی د عکس العمل سبب ګرځي.



### ۲. نوښتي لیکنه (۱۵ دقیقې)

۱. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې هغوی به اوس له خلکو سره د چلندد په اړه یوه متن ولیکي.
۲. ښوونکی د درسي کتاب جملې او د چوکاټ کلمې له زده کوونکو سره یو ځای لولي.
۳. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې د تمرین په کتابونو کې د چوکاټ د کلمو په کارولو سره په تشو ځایونو کې په دوه کسیزه توګه جملې جوړې کړي او نیمګړی متن دې بشپړ کړي.
۴. ښوونکی په ټولګي کې ګرځي او هغو زده کوونکو ته چې ستونزې لري مرسته او لارښوونه کوي.
۵. ښوونکی له څو زده کوونکو غواړي چې خپل بشپړ کړي متنونه ټولګیوالو ته و وایي.

### ۳. د لومړي او دویم متن بیا لوستل (۱۰ دقیقې)

ښوونکی له دوو پراوونو (زده کوونکي یې په دوه کسیزه توګه لولي، زده کوونکي یې انفرادي توګه لولي)، څخه په ګټه اخیستنې سره لومړی او دوهم متن له زده کوونکو سره بیا لولي.

### تکرار او کورنۍ دنده (۵ دقیقې)

۱. **تکرار:** زده کوونکي د هغو فعالیتونو او کړو وړو تکرار کوي چې د نورو د عکس العمل سبب ګرځي.
۲. **کورنۍ دنده:** د لومړي او دوهم متن بیا لوستل. د نوښتي کیسې بشپړول او په اړه یې یو انځور رسمول.

**فرعي موضوع: تکرار او دوامداره ارزونه**

**د زده کړې موخې:**

۱- د مثبت او منفي فعلونو پېژندل او کارول.

۲- د ساده او مرکبو جملو پېژندل او کارول.

۳- کلمې په څلور( ۴ )کټګوريو کې وېشل.

٤- له مناسب لحن،حرکتونو سره او ٪ ۹۵سموالي سره د متن لوستل

۵- له٪ ۸۰ سموالي سره کلمې او جملې ليکل. د / ح/ غږ او د (ح) توري درلودونکو کلمو ليکل.

### ۱.توري،کلمې،جملې او دکلموزېرمه(۱۰ دقيقې)

۱. ښوونکی د مثبت او منفي فعلونو مفهوم تکراروي.

۲. ښوونکی زده کوونکو ته وايي چې د درسي کتاب (الف) تمرين ترسره کړي.

۳. ښوونکی ساده او مرکبې جملې تکراروي.

٤. ښوونکی زده کوونکو ته وايي چې د درسي کتاب (ب) تمرين ترسره کړي.

۵. ښوونکی په کټګوريو کې د کلمو وېشل تکراروي.

٦. ښوونکی زده کوونکو ته وايي چې د درسي کتاب (ج) تمرين ترسره کړي.

۷. ښوونکی د زده کوونکو ځوابونه ګوري.

۸. ښوونکی د پرله پسې ارزونې کتاب کې د زده کوونکو نومرې ثبتوی.

### ۲. د لومړي او دويم متن بيا لوستل (۱۰ دقيقې)

۱. ښوونکی زده کوونکو ته دوې دقيقې وخت ورکوي چې په دوه کسيزه توګه لومړی یا دوهم متن ژر ژر ولولي.

۲. ښوونکی له اته تنو زده کوونکو څخه غوښتنه کوي چې د ټولګي مخې ته راشي.

۳. ښوونکی هغوی ته وايي چې دوه تنه به د متن يوه برخه لولي. هغوی بايد متن په روانه توګه، د مناسب لحن او حرکاتو په کارولو سره ولولي چې په جملو کې د پای ټکي او د پوښتنې نښې منعکسې کړي .

٤. ښوونکی زده کوونکو ته وايي چې متن له لوستونکي سره په کراره ولولي او ښه غوږ ونيسي. کله چې زده کوونکي په لوستلو بوخت وي، ښوونکی د هغوی د لوستلو څرنګوالی مشاهده کوي او خپله مشاهده د پرله پسې ارزونې په کتاب کې ليکي. له هغو زده کوونکو سره چې په ښه توګه دا فعاليت ترسره نه کړي، بايد په بله اونۍ کې مرسته وشي.



### ۳. املا (۱۵ دقيقې)

۱. ښوونکی زده کوونکو ته وايي چې هغوی به يو څو کلمې او جملې وليکي.

۲. ښوونکی زده کوونکو ته د درسي کتابونو بندولو او د تمرين کتابونو د پرانيستلو لارښونه کوي. ښوونکی لومړی کلمه په کراره وايي او ۴ ځلې يې تکراروي. کلمه دا ده: **حاجي** زده کوونکي کلمه ليکي.

۳. ښوونکي همدغه کار د لاندي اتو(۸) کلمو لپاره هم ترسره.

**۱-حامد۲ صالح ۳- محمد ۴- محمود ۵- نصحيت ٦- اصلاح، ۷- صلح، ۸- نکاح.**

٤. ښوونکي لومړی جمله په کراره لولي او څلور ځله يې تکراروي. جمله دا ده. ۱. **د حامد پلار حاجي دی.**

۵. زده کوونکي جمله د تمرين په کتاب کې ليکي.

٦. ښوونکي همدا کار د لاندې (۳) جملو لپاره هم ترسره کوي.

**۲. محمود په خپله ځمکه کې شنه خونه جوړه کړه.**

**۳. مور او پلار مور ته نصحيت کوي.**

**۴. محمد په دوکان کې زعفران خرڅوي.**

۷. ښوونکي زده کوونکو ته وايي چې خپلې د تمرين کتابچې د کتلو لپاره چمتو کړي. ښوونکي د هغوی املا ګوري او نومرې ورکوي.

۸. ښوونکي د زده کوونکو نومرې د پرله پسې ارزونې په کتاب کې ثبتوی.

### تکرار او کورنۍ دنده (۵ دقيقې)

۱. **تکرار:** هغه څه تکرارول چې زده کوونکو په دې اونۍ کې زده کړي دي.

۲. **کورنۍ دنده:** ښوونکی زده کوونکو ته وايي چې په کورونو کې د درسونو د هغو برخو بيا ليکل او لوستل دي ترسره کړي چې د اونۍ په جريان کې يې ورسره ستونزې لرلې.

د حسن خط فعاليت، ارزونه او کورنۍ دنده (۴۰ دقيقې )

**فرعي موضوع: لاسي صنايع**

## د زده کړې موخې

١. د/ه/ او /هـ/ غږد توررو لرونکو کلمو سم ليکل.
٢. د انځور، سرليک، مهمو کلمو او د مخکينۍ پوهې څخه په ګټې اخيستنې سره دا وړاندوينه کول چې کيسه يا متن به د څه په اړه وي.
٣. دلوستلو پرمهال دتم کېدلو او فکر کولو لستراتيژۍ څخه کار اخيستل.
٤. له مناسب لحن، حرکاتو او ٪۹۵ سموالي سره د متنونو لوستل.

### ١. توري او کلمې (١٠ دقيقې)

١. ښوونکی زده کوونکو ته وايي چې د(ه) او (هـ) توري يو ډول آواز لري او بڼه يې بيله ده ځينې کلمې د(ه) توررو او ځينې نورې کلمې بيا د (هـ) توری لري.
٢. ښوونکی زده کوونکو ته وايي چې په دې اونۍ کې به هغه کلمې تمرين کړي چې د (هـ)توري پکې کارول کېږي.
٣. ښوونکی لاندې کلمې پر تخته ليکي: **(هوا، شهرت، هېواد)**
٤. ښوونکی له زده کوونکو څخه په لوړ غږ د کلمې د لوستلو غوښتنه کوي. ښوونکی له زده کوونکو څخه پوښتنه کوي چې کوم توری د /هـ/ غږ لري. ښوونکی يو څو زده کوونکو ته اجازه ورکوي چې توري ته ګوته ونيسي.
٥. ښوونکی د زده کوونکو پام درسي کتاب ته را اړوي. ښوونکی کلمې زده کوونکو ته په داسې حال کې لولي چې هغوی خپلې ګوتې پر کلمو تېروي. بيا زده کوونکي کلمې په دوه کسيزه توګه لولي.
٦. ښوونکی زده کوونکو ته وايي چې د تمرين په کتابونو کې د کلمو ليکل او تمرين کړي.
٧. ښوونکی زده کوونکو ته وايي چې هغوی بايد په کور کې هره ورځ د دغو کلمو د ليکلو تمرين وکړي.
٨. ښوونکی زده کوونکو ته وايي چې د اونۍ په پای کې به د همدغو کلمو په اړه املا ولري.

### ٢. د لومړي متن لوستل (٢٥ دقيقې)

**له لوستلو څخه مخکې**

١. ښوونکی زده کوونکو ته وايي چې سرليک او انځور ته وګوري او وړاندوينه وکړي چې متن به د څه په اړه وي. (په خپلو کې شريکول، له ټولګيوالو سره شريکول). زده کوونکي بايد درسي کتابونو ته ځير شي چې هغوی د موضوع په اړه مخکې له مخکې په څه پوهېدل.
٢. ښوونکی درې مهمې کلمې له زده کوونکو سره معنا او په جملو کې يې کاروي.

**٣. د لوستلو پر مهال**

٤. ښوونکی يې لولي، ښوونکی او زده کوونکي په ګډه يې لولي، زده کوونکي په دوه کسيزه توګه لولي.
٥. ښوونکی زده کوونکو ته ښيي چې څنګه کولای شي د تم کېدلو او فکر کولو ستراتيژۍ څخه د متن د لوستلو پرمهال ګټه واخلي.

**له لوستلو څخه وروسته**

١. ښوونکی له زده کوونکو نه پوښتنه کوي چې آيا د کيسې په اړه يې وړاندوينه سمه ده؟ هو يا نه.
٢. ښوونکی له زده کوونکو څخه لاندې پوښتنې کوي.



- **پوښتنه: د لاسي صنايعو نندارتون چېرته پرانېستل شو؟**
**ځواب: د پکتيا په مرکز کې.**
- **پوښتنه: د نندارتون مشر څه وويل؟**
**ځواب: زموږ لاسي صنايع شړۍ، ليمڅي، د مريو خولۍ او نور دي.**
- **پوښتنه: د څو لاسي صنايعو نومونه واخلئ؟**
**ځواب: په لاس جوړ شوي کارونه لکه: خامک، قالينې، ټغر، شړۍ، لمڅي او نور.**
- **پوښتنه: ولې زموږ لاسي صنايع په سيمه او نړيواله کچه ډېر شهرت لري؟**
**ځواب: ځکه چې ښه کيفيت لري، زر نه خرابېږي او ښايسته دي.**

٣. ښوونکي زده کوونکو ته له متن څخه د پايلو د استنباط کولو طريقه ښيي(د تفصيلي جزياتو لپاره د برخې عمومي کتنه وګورئ.
٤. هغه څه چې زه پرې پوهېږم. **زموږد هېواد لاسي صنايع لکه: شړۍ، ليمڅي، د مريو خولۍ او داسې نور**

### تکرار او کورنۍ دنده (٥ دقيقې)

١. **تکرار:** ښوونکی له زده کوونکو سره يو څو هغه کلمې چې د /ه/ او/هـ/ غږ او توري لري، تکراروي.
٢. **کورنۍ دنده:** زده کوونکي توري او کلمې په خپلو کورونو کې په کتابچو کې ليکي. هغوی د لومړي متن بيا لوستل په کور کې تمرين کوي.

## فرعي موضوع: لاسي صنايع

**د زده کړې موخې:**

۱. د مثبتو او منفي فعلونو پېژندل او کارول.
۲. کلمې په څلورو (۴) کټګوریو وېشل.
۳. د مناسب لحن، حرکاتو سره او له ٪۹۵ سموالي سره د متن لوستل.

### ۱. کلمې او جملې (۱۰ دقیقې)

۱. ښوونکی پر تخته د لاندې جملې په لیکلو سره درس پیلوي( **زه پکتیا ته ځم**) او له زده کوونکو څخه د دې خبرې د معلومولو غوښتنه کوي چې آیا دا فعل مثبت دی او که منفي.
۲. ښوونکی یوه بله جمله لیکي: ( **زه پکتیا ته نه ځم**) او له زده کوونکو څخه په دې جمله کې هم د فعل د حالت د پېژندنې غوښتنه کوي.
۳. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې هغوی به په مثبت او منفي دواړو حالتونو کې د فعل پېژندل او کارول زده کړي.
٤. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې د ښوونکي په مرسته د لومړیو دوه بېلګو د لوستلو او د ترسره کولو لپاره خپل درسي کتاب ته ځیر شي.
٥. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې د تمرین په کتابونو کې د تمرین د سرته رسولو لپاره په دوه کسیزه توګه کار وکړي.
٦. کله چې زده کوونکي په مثبت او منفي فعلونو په کار بوخت وي، ښوونکی په ټولګي کې ګرځي، ترڅو له هغو زده کوونکو سره مرسته وکړي چې ستونزې لري.

### ۲. د لغتونو زېرمه (۱۵ دقیقې)

۱. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې هغوی به نن یو ځل بیا د کلمو دلبندۍ کول تمرین کوي.
۲. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې کلمې له دوو یا درېیو څخه په زیاتو ډلو وېشل کېدای شي. هغوی به نن د همدې کار تمرین کوي.
۳. ښوونکی زده کوونکي د خپل درسي کتاب لوستلو ته رابولي. هغوی دولس(۱۲) کلمېویني چې په څلورو (۴) بېلابېلو ډلو (کټګوریو) سره تړاو لري. ښوونکی له یوه زده کوونکي څخه د څلورو( ۴ )کټګوریو د لوستلو غوښتنه کوي.
٤. ښوونکی زده کوونکو ته د تمرین په کتابونو کې د تمرین د ترسره کولو په هکله وایي. ښوونکی لومړی دوه کلمې


کلمې او جملې
د لغتونو زېرمه
د لومړي متن بیا لوستل

له زده کوونکو سره ترسره کوي. بیا زده کوونکي په دوه کسیزه توګه کار کولو ته ادامه ورکوي.
٥. کله چې زده کوونکي په کار بوخت وي، ښوونکی په ټولګي کې ګرځي، ترڅو له هغو زده کوونکو سره مرسته وکړي چې ستونزې لري.
٦. لږ وخت وروسته، ښوونکی د زده کوونکو ځوابونه ګوري.

### ۳. د لومړي متن بیا لوستل (۱۰دقیقې)

۱. د څلورو پړاوونو (ښوونکی لولي، ښوونکی او زده کوونکي په ګډه لولي، زده کوونکي یې په دوه کسیزه توګه لولي او زده کوونکي یې په انفرادي توګه لولي) په کارولو سره لومړی متن له زده کوونکو سره بیا لولي.

### تکرار او کورنۍ دنده (۵ دقیقې)

۱. **تکرار:** د مثبت او منفي فعلونو کارول تکرارول.
۲. **کورنۍ دنده:** ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې د کلمې او جملې تمرین په کورونو کې په خپلو کتابچو کې ترسره کړي.
ښوونکی په زده کوونکو باندې ټینګار کوي چې متن بیا ولولي او د املا د تمرین لپاره د کلمو تمرین ترسره کړي.

## فرعي موضوع: آهنګري

### د زده کړې موخې:

۱. د مثبتو او منفي فعلونو پېژندل او کارول.
۲. کلمو او مخکینۍ پوهې څخه په ګټې اخیستنې سره دا وړاندوینه کول چې کیسه یا متن به د څه په اړه وي.
۳. دلوستلوپرمهال دتم کېدلواوفکر کولوله ستراتیژۍ څخه کاراخیستل.

### ۱. کلمې (۱۰ دقیقې)

۱. ښوونکی د لومړي فعل جوړښت کټ مټ هغسې چې په درسي کتاب کې ورکړل شوی، پر تخته لیکي.
۲. ښوونکی یې بېلګه په لوړ غږ زده کوونکو ته لولي. بیا یې ښوونکی بېلګه له زده کوونکو سره په ګډه لولي.
۳. ښوونکی تشریح کوي چې یوه کوچنۍ برخه فعل ته ور زیاتېږي او فعل له مثبت څخه منفي ته بدلېږي.
٤. ښوونکی د لومړیو دوه(۲) بېلګو د لوستلو لپاره زده کوونکو ته وايي چې درسي کتاب ته ځیر شي.
٥. ښوونکی زده کوونکو ته وايي چې په درسي کتابونو کې په دوه کسیزه توګه کلمې ولولي.
٦. ښوونکی زده کوونکو ته وايي چې د تمرین په کتابونو کې د کلمو لیکل تمرین کړي.
۷. کله چې زده کوونکي کلمې لولي، ښوونکی په ټولګي کې ګرځي، څو له هغو زده کوونکو سره مرسته وکړي چې ستونزې لري.

### ۲.د دویم متن لوستل (۲۵ دقیقې)

#### له لوستلو څخه مخکې

۱. ښوونکی زده کوونکو ته وايي چې سرلیک او انځور ته وګوري او وړاندوینه وکړي چې متن به د څه په اړه وي. ( په خپلو کې شریکول، له ټولګیوالو سره شریکول). زده کوونکي باید د خپلو درسي کتابونو ته ځیر شي چې هغوی د موضوع په اړه مخکې له مخکې په څه پوهېدل.
۲. ښوونکی درې مهمې کلمې له زده کوونکو سره معنا او په جملو کې یې کاروي.

#### د لوستلو پر مهال

۱. ښوونکی متن لولي ښوونکی او زده کوونکي په ګډه لولي زده کوونکي یې په دوه کسیزه توګه لولي.
۲. ښوونکی زده کوونکو ته ښيي چې څنګه کولای شي د تم کېدلو او فکر کولو له ستراتیژۍ څخه د متن د لوستلو پرمهال ګټه واخلي.

#### له لوستلو څخه وروسته

۱. ښوونکی له زده کوونکو څخه پوښتنه کوي چې ایا د کیسې په اړه یې وړاندوینه سمه ده؟ هو یا نه.



کلمې او جملې

| ځم | نه + ځم | نه ځم |
|---|---|---|
| ګرځم | نه + ګرځم | نه ګرځم |
| کوم | نه + کوم | نه کوم |
| وړم | نه + وړم | نه وړم |

کسبګر

آهنګر

۲. ښوونکی له زده کوونکو څخه لاندې پوښتنې کوي:
- پوښتنه:د آهنګرۍ ننداړتون چېرته جوړ شو؟
**ځواب: په کابل کې.**
- **پوښتنه: په ننداړتون کې کسبګرو څه ژمنه وکړه؟**
**ځواب: کسبګرو وویل چې نور به هم ښه ښه شیان جوړ کړي.**
- **پوښتنه: آهنګر کوم شیان جوړوي؟**
**ځواب: تبر،یوم، بېلچه، ترېنځ او نور شیان جوړوي.**
- **پوښتنه: له اوسپنو څخه څه جوړولای شو؟**
**ځواب: میخونه، ګاډر، کړکۍ، دروازې، موټر، الوتکې...**
۳. ښوونکي زده کوونکو ته له متن څخه د پایلو د استنباط کولو طریقه ښیي(د تفصیلي جزیاتو لپاره د برخې عمومي کتنه وګورئ).
٤. هغه څه چې زه پرې پوهېږم: **آهنګري د اوسپنې د بڼې بدلول او له هغه څخه د اړتیاوړ شیان جوړول دي.**

### تکرار او کورنۍ دنده (۵ دقیقې)

۱. **تکرار:** ښوونکی له زده کوونکو سره د پایلې استنباط کولو مفهوم تکراروي.
۲. **کورنۍ دنده:** زده کوونکي کلمې په کورونو کې په خپلو کتابچو کې لیکي او د دوهم متن بیا لوستل په کور کې تمرین کوي.

## فرعي موضوع: آهنګري

**د زده کړې موخې:**
۱- د مرکبو جملو پېژندل او کارول.
۲- کلمې په څلورو( ۴ )کټګوریو وېشل.
۳- په مناسب لحن، حرکاتو او٪ ۹۵ سموالي سره متنونه لوستل.

### ۱. جملې (۱۰ دقیقې)

۱. ښوونکی پر تخته د لاندې ساده جملې په لیکلو سره درس پیلوي(**تورپالی درس لولي**) او له زده کوونکو څخه پوښتنه کوي چې آیا دا یوه ساده جمله ده که مرکبه. ښوونکی زده کوونکو ته تشریح کوي چې په ساده جمله کې یو فعل او یو مفهوم نغښتی وي.
۲. ښوونکی پر تخته دا جمله (**تورپالي درس وايي او بريالی ورسره مرسته کوي**) ښوونکی زده کوونکو ته تشریح کوي چې یوه مرکبه جمله دوه بشپړ مفاهیم او فعلونه لري چې یوه له بل سره تړاو لري.
۳. ښوونکی زده کوونکو ته وايي چې هغوی به د مرکبو جملو جوړول زده کوي.
٤. ښوونکی زده کوونکو ته وايي چې د لومړیو دوو بېلګو د لوستلو او د ترسره کولو لپاره خپل درسي کتابونو ته ځیر شي.
٥. ښوونکی زده کوونکو ته وايي چې د تمرین په کتابونو کې د تمرین د سرته رسولو لپاره په دوه کسیزه توګه کار وکړي.

### ۲. د لغتونو زېرمه (۱۵ دقیقې)

۱. ښوونکی زده کوونکو ته وايي چې هغوی به نن یو ځل بیا د کلمو ډلبندۍ کول تمرین کوي.
۲. ښوونکی زده کوونکو ته وايي چې کلمې له دوو یا دریو څخه په زیاتو ډلو وېشل کېدای شي. هغوی به نن دهمدې کار تمرین ترسره کړي.
۳. ښوونکی زده کوونکي د خپلو درسي کتابونو لوستلو ته رابولي. هغوی دولس(۱۲) کلمې ویني چې څلور(۴) بېلابېلو ډلو (کټګوریو) سره تړاو لري. ښوونکی له یوه زده کوونکي څخه د څلورو (۴) کټګوریو د لوستلو غوښتنه کوي.
٤. ښوونکی زده کوونکو ته د تمرین په خپلو کتابونو کې د تمرین د ترسره کولو په اړه وايي. ښوونکی لومړۍ دوه کلمې له زده کوونکو سره تمرین کوي.



٥. کله چې زده کوونکي په کار بوخت وي، ښوونکی په ټولګي کې ګرځي، څو له هغو زده کوونکو سره مرسته وکړي چې ستونزې لري.
٦. له لږ وخت وروسته، ښوونکی د زده کوونکو ځوابونه ګوري.

### ۳. د دویم متن بیا لوستل (۱۰دقیقې)

د څلور پړاوونو ښوونکی لولي، (ښوونکی او زده کوونکي يې په ګډه لولي، زده کوونکي يې په دوه کسیزه توګه لولي او زده کوونکي يې انفرادي توګه لولي) په کارولو سره دوهم متن له زده کوونکو سره بیا لولي.

### تکرار او کورنۍ دنده (۵ دقیقې)

۱. **تکرار:** د ساده او مرکبې جملې تکرارول.
۲. **کورنۍ دنده:** ښوونکی زده کوونکو ته وايي چې د جملو تمرین په کورونو کې په خپلو کتابچو کې ترسره کړي.
ښوونکی په زده کوونکو باندې ټینګار کوي چې دوهم متن بیا ولولي او د املا د تمرین لپاره د کلمو تمرین ترسره کړي.

د حسن خط فعالیت، ارزونه او کورنۍ دنده (۴۰ دقیقې )

## فرعي موضوعګانې لاسي صنايع او آهنګري

**د زده کړې موخې:**

۱- بښنه غوښتل.

۲- د نوښتي لیکنې د متن بشپړول.

۳- په مناسب لحن، حرکتونو سره او٪ ۹۵سموالي سره د متن لوستل.

### ۱. غوږنیول او خبري کول (۱۰ دقیقې)

۱. زده کوونکو ته و وایاست چې په نننې درس کې به د بښنې غوښتلو په اړه بحث وکړو. ځینې وخت له تاسو څخه ځینې کارونه په غلطۍ سره ترسره کېږي، نو په دې صورت کې تاسو باید بښنه وغواړئ. که تاسو د خپل ناسم کار د کړلو مسؤلیت پر غاړ وا نخلئ او په اړه یې له نورو څخه بښنه و نه غواړئ، نو کېدای شي ستاسو دا کار د ستونزو او شخړو لامل وګرځي.

۲. زده کوونکو ته و وایاست چې د دې اونۍ په درسونو کې تاسو د آهنګر متن ولوست. آهنګر هم ځینې وخت اشتباه کوي. ځینې وخت د یو چا کار پر خپل وخت نه شي تر سره کولای. ځینې وخت د کار کولو پر مهال د خپل ملګری لاس یا پښه په غلطۍ سره خوږوي.

۳. زده کوونکو ته و وایاست چې په درسي کتاب کې انځورونو ته وګوري او په اړه یې بحث وکړي. له زده کوونکو څخه پوښتنې وکړئ چې دوی په انځور کې څه ویني؟ څه پېښه رامنځ ته شوې ده؟ څوک خوږ شوی دی؟ څه فکر کوئ د هغه کس په قصدي توګه خوږ شوی یا په غلطۍ سره؟ زده کوونکو ته اجازه ورکړئ چې یو له بل سره د دې پوښتنو په اړه بحث وکړي او خو زده کوونکي دې خپل ځوابونه ټولګیوالو ته و وایي.

۴. له زده کوونکو څخه وغواړئ چې آیا دوی کوم وخت غلطي کړې ده یا کومه پېښه ترې شوې ده چې دوی له نورو بښنه غوښتې وي. څو زده کوونکو ته وخت ورکړئ چې خپل ځوابونه ټولګیوالو ته و وایي.

۵. زده کوونکو ته و وایاست چې زموږ او ستاسو هر یو په ژوند کې د کارونو د ترسره کولو پر مهال غلطۍ او اشتباوې کوو، خو مهمه دا ده چې د خپلې اشتباه او غلطۍ په اړه له نورو بأید بښنه وغواړو.

۶. زده کوونکو ته و وایاست چې د تمرین کتابونو ته وګوري. د تمرین په کتابونو کې تاسو یو تمرین ترسره کوئ او په دې تمرین کې لیکئ چې د دې اونۍ په جریان کې یا په دې نژدې وختونو کې تاسو کومې غلطۍ کړې دي. زده کوونکو ته وخت ورکړئ چې په دوه کسیزه توګه بحث وکړي او وواېي چې د اونۍ په جریان کې یا په دې نژدې وختونو کې دوی کومې غلطۍ کړې دي؟ زده کوونکو ته و وایاست چې خپل ځوابونه د جملو په خالي ځایونو کې ولیکي.

۷. زده کوونکو ته و وایاست چې د خپل ټګر له املهٔ له نورو خلکو بښنه وغواړي او و وایي: (بښنه غواړم).

۸. زده کوونکو ته و وایاست چې دغه فعالیت له زده کوونکو سره مرسته کوي چې د پېښو پر مهال باید څه ډول چلند وکړي. کله چې له موږ‌څخه یو کار په غلطۍ سره شي، نو باید بښنه وغواړو که داڅ دکار ونه کړو کېدای شي د ستونزو او شخړو سبب وګرځي.

۹. د وخت د شتون په صورت کې له څو زده کوونکو څخه وغواړئ چې د ټولګي په مخ کې د بښنې غوښتلو تمثیل ترسره کړي. زده کوونکي کولی شي د آهنګر د متن په اړه یا د بلې پېښې په اړه تمثیل وکړي. له زده کوونکو وغواړئ چې کله دوی د خپلو کړو په اړه د بښنې غوښتل تمثیلوی، نو څه احساس کوي او ولې دا کار کوي؟ څو زده کوونکو ته وخت ورکړئ چې خپل نظرونه ټولګیوالو ته و وایي.



### ۲. نوښتي لیکنه (۱۵ دقیقې)

۱. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې هغوی به اوس د بښنې غوښتلو په اړه یو متن ولیکي.

۲. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې د درسي کتاب جملې او د چوکاټ کلمې یو له بل سره په ګډه ولولي.

۳. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې د تمرین په کتابونو کې د چوکاټ د کلمو په کارولو سره په تشو ځایونو کې په دوه کسیزه توګه جملې جوړې کړي او نیمګړی متن دې بشپړ کړي.

۴. ښوونکی په ټولګي کې ګرځي او هغو زده کوونکو ته چې ستونزې لري مرسته او لارښوونه کوي.

۵. ښوونکی له څو زده کوونکو غواړي چې خپل بشپړ کړي متنونه ټولګیوالو ته و وایي.

### ۳. د لومړي او دوهم متن لوستل (۱۰ دقیقې)

ښوونکی له دوو پړاوونو (لکه زده کوونکي په دوه کسیزه توګه لولي، زده کوونکي یې په انفرادي توګه لولي)، څخه په ګټه اخیستنې سره لومړی او دوهم متن له زده کوونکو سره بیا لولي.

### تکرار او کورنۍ دنده (۵ دقیقې)

۱. **تکرار:** د خپلو کړنو په اړه د بښنې غوښتل تکرار کړي.

۲. **کورنۍ دنده:** لومړی او دوهم متن بیا لوستل. د نوښتي کیسې بشپړول او په اړه یې یو انځور رسمول.

**فرعي موضوع: تکرار او دوامداره ارزونه**

### د زده کړې موخې:

۱- د مثبت او منفي فعلونو پېژندل او کارول.
۲- د مرکبو جملو پېژندل او کارول.
۳- کلمې په څلورو(۴)کټګوریو وېشل.
٤- له مناسب لحن، حرکتونو سره او له٪ ۹۵ سموالي سره د متن لوستل.
٥- له٪ ۸۰ درستوالي سره کلمې او جملې لیکل.
٦- د /ه/ غږ او د / هـ/ توري درلودونکو کلمو درست لیکل.

### ۱. توري، کلمې، جملې (۱۰ دقیقې)

۱. ښوونکی د مثبت او منفي فعلونو مفهوم تکراروي.
۲. ښوونکی زده کوونکو ته وايي چې د درسي کتاب (الف) تمرین ترسره کړي.
۳. ښوونکی ساده او مرکبې جملې تکراروي.
٤. ښوونکی زده کوونکو ته وايي چې د درسي کتاب (ب) تمرین ترسره کړي.
٥. ښوونکی په کټګوریو کې د کلمو وېشل تکراروي.
٦. ښوونکی زده کوونکو ته وايي چې د درسي کتاب (ج) تمرین ترسره کړي.
۷. ښوونکی د زده کوونکو ځوابونه ګوري.
۸. ښوونکی د پرله پسې ارزونې په کتاب کې د زده کوونکو نومرې ثبتوي.

### ۲. د لومړي او دویم متن بیا لوستل (۱۰ دقیقې)

۱. ښوونکی زده کوونکو ته دوې دقیقې وخت ورکوي چې په دوه کسیزه توګه لومړی یا دوهم متن ولولي.
۲. ښوونکی د زده کوونکو له څلورو( ۴)جوړو غوښتنه کوي چې د ټولګي مخې ته راشي.
۳. ښوونکی زده کوونکو ته وايي چې هره جوړه به د متن یوه برخه لولي. هغوی باید متن په روانۍ سره، د مناسب لحن او حرکاتو په کارولو سره ولولي چې د ټکي او د پوښتنې نښې منعکسې کړي .
٤. ښوونکی زده کوونکو ته وايي چې ورو ورو متن له ټولګیوالو سره ولولي او ښه غوږ ورته ونیسي. کله چې اته (۸) زده کوونکي په لوستلو بوخت وي، ښوونکی د هغوی د لوستلو ځرنګوالی مشاهده کوي او خپله مشاهده د پرله پسې ارزونې کتاب کې لیکي. له هغه زده کوونکو سره چې په ښه توګه دا فعالیت ترسره نه کړي، باید بله اونۍ ورسره مرسته وشي.



### ۳. املا (۱۵ دقیقې)

۱. ښوونکی زده کوونکو ته وايي چې اوس به یو څو کلمې او جملې ولیکئ.
۲. ښوونکی زده کوونکو ته د درسي کتابونو د ټرلو او د تمرین کتابونو د پرانیستلو لارښونه کوي.
۳. ښوونکی لومړی کلمه په کراره وايي او څلورو(۴) ځلې یې تکراروي. کلمه دا ده: **هوا**
زده کوونکي کلمه د تمرین په کتاب کې لیکي.
٤. ښوونکی همدغه کار د لاندې اتو(۸) کلمو لپاره هم ترسره کوي.
**۱- شهرت، ۲- منه، ۳- هیلی، ۴- جوهر، ۵- نبته، ۶- هېواد ۷- مهربان، ۸- اره.**
٥. ښوونکی لومړی جمله په کراره لولي او څلور ځله یې تکراروي.
جمله دا ده. **۱. په ژمي کې هوا سړه وي.**
زده کوونکي جمله د تمرین په کتاب کې لیکي.
٦. ښوونکی همدا کار د لاندې دري جملو لپاره هم ترسره کوي.
**۲. زموږ د هېواد لاسي صنایع نړیوال شهرت لري.**
**۳. ښوونکی مهربان وي.**
**۴. زموږ هېواد ښکلی دی.**
۷. ښوونکی زده کوونکو ته وايي چې خپلې د تمرین کتابچې د کتلو لپاره راوړي. ښوونکی د هغوی املا ګوري او نومرې ورکوي.
۸. ښوونکی د زده کوونکو نومرې د پرله پسې ارزونې کتاب کې ثبتوي.

### تکرار او کورنی دنده (۵ دقیقې)

**۱. تکرار:** هغه څه تکرارول چې زده کوونکو په دې اونۍ کې زده کړي دي.
**۲. کورنی دنده:** ښوونکی زده کوونکو ته وايي چې په کورونو کې د درسونو د هغو برخو بیا لیکل او لوستل دي ترسره کړي چې د اونۍ په جریان کې یې ورسره ستونزې لرلې.

د حسن خط فعالیت، ارزونه او کورنی دنده (۴۰ دقیقې )

فرعي موضوع: دنده اړتیا ده        توري: ه، هـ، ح


۲۴ اونۍ
توري او کلمې
| | | | |
|---|---|---|---|
| فریده | ګوره | لیشه | ه |
| هرات | هګۍ | مهال | هـ |
| حج | محمود | اصلاح | ح |

دنده - مبارک - تولنه

دنده اړتیا ده

### د زده کړې موخې:

۱. د /ه/ /هـ/ او /ح/ غږونو او تورو لرونکو کلمو سم لیکل.
۲. له انځور، سرلیک، مهمو کلمو او مخکینۍ پوهې څخه په ګټې اخیستنې سره د دې وړاندوینه کول چې کیسه متن به د څه په اړه وي.
۳. د لوستلو پر مهال د تم کېدلو او فکر کولو ستراتیژۍ څخه کار اخیستل.
٤. په مناسب لحن، حرکاتو او له ٪۹۵ سموالي سره د متن لوستل.

### ۱. توري او کلمې (۱۰ دقیقې)

۱. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې د /ه/ /هـ/ او /ح/ غږونه سره ډېر ورته دي. څینې کلمې د (ه) توري او ځینې نورې بیا د (هـ) او (ح) توري لري.
۲. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې په دې اونۍ کې به د هغو کلمو تمرین ترسره کړي چې د /ه/ /هـ/ او /ح/ توري پکې کارول کېږي.
۳. ښوونکی لاندې کلمې پر تخته لیکي: (**فریده، هرات، محمود، اصلاح**) ښوونکی له زده کوونکو څخه په لوړ غږ د کلمې د لوستلو غوښتنه کوي. ښوونکی له زده کوونکو څخه پوښتنه کوي چې کوم توری د /ه/ /هـ/ او /ح/ غږ لري. ښوونکی څو زده کوونکو ته اجازه ورکوي چې توري ته ګوته ونیسي.
٤. ښوونکی د زده کوونکو پام درسي کتاب ته را اړوي. ښوونکی کلمې لولي او زده کوونکي خپلې ګوتې پر کلمو تېروي. بیا زده کوونکي کلمې په دوه کسیزه توګه لولي.
٥. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې د تمرین په کتابونو کې د کلمو لیکل تمرین کړي.
٦. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې هغوی باید په کور کې هره ورځ د دغو کلمو د لیکلو تمرین وکړي.
۷. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې د اونۍ په پای کې به هغوی د همدغو کلمو په باره کې املا ولري.

### ۲. د لومړي متن لوستل (۲۵ دقیقې)

#### له لوستلو څخه مخکې

۱. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې سرلیک او انځور ته وګوري او وړاندوینه وکړي چې متن به د څه شي په هکله وي. ( په خپلومنځوکې شریکول، له ټولګیوالو سره شریکول). زده کوونکي باید درسي کتابونو ته ځیر شي چې هغوی د موضوع په اړه مخکې له مخکې څه پوهېدل.
۲. ښوونکی درې مهمې کلمې له زده کوونکو سره معنا او په جملو کې یې کاروي.

#### د لوستلو پر مهال

۱. ښوونکی یې لولي،ښوونکی او زده کوونکي په ګډه لولي، زده کوونکي په دوه کسیزه توګه لولي.
۲. ښوونکی زده کوونکو ته ښیي چې څنګه کولای شي د تم کېدلو او فکر کولو ستراتیژۍ څخه د متن د لوستلو پر مهال ګټه واخلي.

#### له لوستلو څخه وروسته

۱. ښوونکی له زده کوونکو څخه پوښتنه کوي چې ایا د کیسې په اړه یې وړاندوینه سمه ده؟ هو/ نه.
۲. ښوونکی له زده کوونکو څخه لاندې پوښتنې کوي.

- **پوښتنه: د دندې د اړتیا په اړه غونډه چېرته جوړه شوه؟**
**ځواب: د کابل په نوي ښارکې.**
- **پوښتنه: د کار او ټولنیزو چارو رئیس څه وویل؟**
**ځواب: دنده مهمه او ټولنیزه اړتیا ده.**
- **پوښتنه: که خپلې دندې ته په ټاکلي وخت حاضر نشو څه به وشي؟**
**ځواب: کارونه به مو وروسته پاتې شي.**
- **پوښتنه: څوک ویلی شي چې دنده څه ته ویل کېږي؟**
**ځواب: دایمي کار او وظیفې ته دنده ویل کېږي.**

۳.ښوونکي زده کوونکو ته له متن څخه د پایلو د استنباط کولو طریقه ښیي(د تفصیلي جزییاتو لپاره د دې برخې عمومي کتنه وګورئ).
۴.هغه څه چې زه پرې پوهېږم: **دنده یوه ټولنیزه اړتیا ده.**
هغه څه چې ما زده کړل: **موږباید خپلې دندې په صداقت سره ترسره کړو.**
پایله: **راځئ چې په خپل وخت دندې ته لاړشو.**

### تکرار او کورنۍ دنده (۵ دقیقې)

۱. **تکرار:** ښوونکی له زده کوونکو سره څو هغه کلمې چې د /ه/ /هـ/ او /ح/ غږونه او توري لري، تکراروي.
۲. **کورنۍ دنده:** زده کوونکي توري او کلمې په کورونو کې په خپلو کتابچو کې او د متن لوستل تکراروي.

## فرعي موضوع: دنده اړتیا ده

**د زده کړې موخې:**

۱. د مثبت او منفي فعلونو پېژندل او کارول.
۲. کلمې په څلورو (۴) کټګوریو کې وېشل.
۳. له مناسب لحن، حرکاتو او له ۹۵٪ سموالي سره د متن لوستل.

### ۱. کلمې او جملې (۱۰ دقیقې)

۱. ښوونکی پر تخته د لاندې جملې په لیکلو درس پیلوي (**زه ټلویزیون ته ګورم**) او له زده کوونکو څخه د دې خبرې د معلوملو پوښتنه کوي چې آیا دا یو مثبت فعل یا منفي فعل دی.
۲. ښوونکی یوه بله جمله لیکي: (**زه ټلویزیون ته نه ګورم**) او له زده کوونکو څخه په دې جمله کې هم د فعل د حالت د پېژندنې غوښتنه کوي.
۳. ښوونکی زده کوونکو ته وايي چې هغوی به په مثبت او منفي دواړو حالتونو کې د فعل پېژندل/ کارول زده کړي.
٤. ښوونکی زده کوونکو ته وايي چې د ښوونکي په مرسته د لومړیو دوو بېلګو د لوستلو او د ترسره کولو لپاره خپل درسي کتاب ته ځیر شي.
٥. ښوونکی زده کوونکو ته وايي چې د تمرین په کتاب کې د تمرین د سرته رسولو لپاره په دوه کسیزه توګه کار وکړي.
٦. کله چې زده کوونکي په په کار بوخت وي، ښوونکی په ټولګي کې ګرځي چې له هغو زده کوونکو سره مرسته وکړي چې ستونزې لري.

### ۲. د لغتونو زېرمه (۱۵ دقیقې)

۱. ښوونکی زده کوونکو ته وايي چې هغوی به نن یو ځل بیا ډلبندۍ د کلمو تمرین کوي.
۲. ښوونکی زده کوونکو ته وايي چې کلمې له دوه یا دریو څخه په زیاتو ډلو کې وېشل کېدای شي. هغوی به نن همدا کار تمرین کوي.
۳. ښوونکی زده کوونکي خپل درسي کتاب لوستلو ته رابولي. هغوی دولس(۱۲) کلمې ویني چې څلورو (۴) بېلابېلو ډلو (کټګوریو) سره تړاو لري. ښوونکی له یوه زده کوونکي څخه د څلورو (۴) کټګوریو د لوستلو غوښتنه کوي.
٤. ښوونکی زده کوونکو ته په خپلو د تمرین په کتابونو کې د تمرین د ترسره کولو وايي. ښوونکی لومړۍ دوه



کلمې له زده کوونکو سره ترسره کوي. بیا زده کوونکي په دوه کسیزه توګه تمرین ترسره کوي.
٥. کله چې زده کوونکي په کار بوخت وي، ښوونکی په ټولګي کې ګرځي او له هغو زده کوونکو سره مرسته کوي چې ستونزې لري.
٦. لږ وخت وروسته، ښوونکی د زده کوونکو ځوابونه ګوري.

### ۳. د لومړي متن بیا لوستل (۱۰دقیقې)

۱. د څلور پړاوونو (ښوونکی لولي، ښوونکی او زده کوونکي په ګډه لولي، یعنې زده کوونکي په دوه کسیزه توګه لولي او زده کوونکي یې په انفرادي توګه لولي) په کارولو سره لومړی متن له زده کوونکو سره بیا لولي.

### تکرار او کورنۍ دنده (۵ دقیقې)

۱. **تکرار:** د مثبت او منفي فعلونو تکرارول.
۲. **کورنۍ دنده:** ښوونکی زده کوونکو ته وايي چې د کلمو او د جملو تمرین به کورونو کې په خپلو کتابچو کې ترسره کړي.
ښوونکی زده کوونکو باندې ټینګار کوي چې متن بیا ولولي او د املا د تمرین لپاره د کلمو تمرین ترسره کړي.

## فرعي موضوع: د ښوونکي ترانه

**د زده کړې موخې:**

۱. په چټکۍ سره د کلمو تجزيه کول په مورفيمونو پوهه کارول.
۲. دا وړاندوينه کول چې يوه کيسه يا متن به د څه په اړه وي له يو انځور، سرليک، مهمو کلمو او مخکيني پوهې څخه ګټه اخيستل.
۳. د لوستلو پر مهال د تم کېدلو او فکر کولو له ستراتيژۍ څخه کار اخيستل
۴. له مناسب لحن، حرکاتو او ٪۹۵ سموالي سره د متن لوستل.

### ۱. کلمې او جملې (۵ دقيقې)

۱. ښوونکی د لومړي فعل جوړښت کټ مټ هغسې په تخته ليکي لکه څنګه چې په درسي کتاب کې ليکل شوي دي.
۲. ښوونکی بېلګه په لوړ غږ زده کوونکو ته لولي. بيا ښوونکی بېلګه له زده کوونکو سره په ګډه لولي.
۳. ښوونکی تشريح کوي چې يوه کوچنۍ برخه (نه) فعل ته ور زياتېږي او فعل له مثبت څخه په منفي بدلېږي.
۴. ښوونکی د لومړيو دوو بېلګو د لوستلو لپاره زده کوونکو ته وايي چې درسي کتاب ته ځير شي.
۵. ښوونکی زده کوونکو ته وايي چې په درسي کتابونو کې په دوه کسيزه توګه کلمې ولولي.
۶. ښوونکی زده کوونکو ته وايي چې د تمرين په کتابونو کې د کلمو ليکل تمرين کړي.
۷. کله چې زده کوونکي کلمې لولي، ښوونکی په ټولګي کې ګرځي څو له هغو زده کوونکو سره مرسته وکړي چې ستونزې لري.

### ۲. د دويم متن لوستل (۲۵دقيقې)

**له لوستلو څخه مخکې**

۱. ښوونکی زده کوونکو ته وايي چې سرليک او انځور ته وګوري او وړاندوينه وکړي چې متن به د څه په اړه وي. (په خپلو کې شريکول او له ټولګيوالو سره شريکول). زده کوونکي بايد خپلو درسي کتابونو ته ځير شي او و وايي چې هغوی د موضوع په اړه مخکې له مخکې په څه پوهېدل.
۲. ښوونکی درې مهمې کلمې له زده کوونکو سره معنا او په جملو کې يې کاروي.

**د لوستلو پر مهال**

۱. ښوونکی تمثيل کوي، ښوونکی او زده کوونکي په ګډه لولي، زده کوونکي په دوه کسيزه توګه لولي.
۲. ښوونکی زده کوونکو ته ښيي چې څنګه کولای شي د تم کېدلو او فکر کولو ستراتيژۍ څخه د متن د لوستلو پرمهال ګټه واخلي.

**له لوستلو څخه وروسته**

۱. ښوونکی له زده کوونکو څخه پوښتنه کوي چې ايا د کيسې په اړه يې وړاندوينه سمه ده؟ هو يا نه.
۲. ښوونکی له زده کوونکو څخه لاندې پوښتنې کوي.


۲ ۲۴

کلمې او جملې

| ویښم | نه + ویښم | نه ویښم |
|---|---|---|
| ګرم | نه + ګرم | نه ګرم |
| اورم | نه + اورم | نه اورم |
| مېنځم | نه + مېنځم | نه مېنځم |

شور — حکمت — برکت

د ښوونکي ترانه

هغوی ودان دي / پر مخ روان دي
ښوونکي، ښوونکي / چې پر موږ ګران دي
چې شته يې شور وي / چې شته يې خوږ وي
چې د ښوونکو / سبق ته غوږ وي
دا ټول يې شکه / پښه شاګردان دي
که علم، پوهه / او که حکمت دي
بس د ښوونکو / پښه برکت دي

- **پوښتنه: پوهه د چا له برکته ده؟**
**ځواب: پوهه د ښوونکي له برکته ده.**
- **پوښتنه: ښوونکي موږ ته څه را زده کوي؟**
**ځواب: ښوونه او روزنه .**
- **پوښتنه: که پوهه ترلاسه نکړو له کومو ستونزو سره به مخامخ شو؟**
**ځواب: نوروته به احتياج وو.**
- **پوښتنه: ولې ښوونکي پر موږ ګران دي؟**
**ځواب: درس را کوي د مور او پلار په شان نصحيت راته کوي، تل مو ښه کارونو ته هڅوي.**

۳. ښوونکي زده کوونکو ته له متن څخه د پايلو د استنباط کولو طريقه ښيي(د تفصيلي جزيات لپاره د برخې عمومي کتنه وګورئ).
۴. هغه څه چې زه پرې پوهېږم: **د ښوونکي ترانه** ده.
هغه څه چې ما زده کړل: **ښوونکي موږ ته پوهه او ليک او لوست را زده کوي.**

### تکرار او کورنۍ دنده (۵ دقيقې)

۱. **تکرار:** ښوونکی له زده کوونکي سره د پايلې استنباط کولو مفهوم تکراروي.
۲. **کورنۍ دنده:** زده کوونکي د کلمې او جملې په کورونو کې په خپلو کتابچو کې ليکي او د دوهم متن بيا لوستل تکراروي.

## فرعي موضوع: د ښوونکي ترانه

**د زده کړې موخې:**
۱- د مرکب جملو پېژندل او کارول.
۲- کلمې په (۴) کټګوریو کې وېشل.
۳- له مناسب لحن، حرکاتو او٪ ۹۵ سموالي سره د متن لوستل.

### ۱. کلمې او جملې (۱۰ دقیقې)

۱. ښوونکی پر تخته د لاندې ساده جملې په لیکلو سره درس پیلوي (**مشر شفقت کوي**) او له زده کوونکو څخه پوښتنه کوي چې آیا دا یوه ساده جمله ده که مرکبه.
۲. ښوونکی زده کوونکو ته تشریح کوي چې ساده جمله کې یو فعل او یو مفهوم نغښتی وي.
۳. ښوونکی پر توره تخته لاندې مرکبه جمله (**مشر شفقت کوي او کشر درناوی کوي**) لیکي او له زده کوونکو څخه پوښتنه کوي چې آیا دا یوه ساده جمله ده که مرکبه جمله ده. ښوونکی زده کوونکو ته تشریح کوي چې یوه مرکبه جمله دوه بشپړ مفاهیم او فعلونه لري چې یو له بل سره تړاو لري.
٤. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې هغوی به د مرکبو جملو جوړول تمرین کړي.
٥. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې د ښوونکي په مرسته د لومړیو دوه بېلګو د لوستلو او د ترسره کولو لپاره خپل درسي کتاب ته ځیر شي.
٦. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې د تمرین کتاب کې د تمرین د سرته رسولو لپاره په دوه کسیزه توګه کار وکړي.

### ۲. د لغتونو زېرمه (۱۵ دقیقې)

۱. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې هغوی به نن یو ځل بیا د کلمو ډلبندي کولو تمرین کوي.
۲. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې کلمې له دوه یا درېو څخه په زیاتو ډلو کې وېشلای شو. هغوی به نن همدا کار تمرین کوي.
۳. ښوونکی زده کوونکي د خپل درسي کتاب لوستلو ته رابولي. هغوی ۱۲ کلمې ویني چې په څلورو (۴) بېلابېلو ډلو (کټګوریو) سره تړاو لري. ښوونکی له یوه زده کوونکي څخه د څلورو (۴) کټګوریو د لوستلو غوښتنه کوي.
٤. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې د تمرین په کتابونو



کې تمرین د ترسره کړي. ښوونکی لومړی دوه کلمې له زده کوونکو سره ترسره کوي. بیا زده کوونکي په دوه کسیزه توګه کار کولو ته ادامه ورکوي.
۵. کله چې زده کوونکي په کار بوخت وي، ښوونکی په ټولګي کې ګرځي تر څو له هغو زده کوونکو سره مرسته وکړي چې ستونزې لري.
٦. لږ وخت وروسته، ښوونکی د زده کوونکو ځوابونه ګوري.

### ۳. دویم متن بیا لوستل (۱۰دقیقې)

۱. د څلور پړاوونو (ښوونکی لولي، ښوونکی او زده کوونکي یې په ګډه لولي، یعنې زده کوونکي یې په دوه کسیزه توګه لولي او زده کوونکي یې په انفرادي توګه لولي) په کارولو سره لومړی او دوهم متن له زده کوونکو سره بیا لولي.

### تکرار او کورنۍ دنده (۵ دقیقې)

**۱. تکرار:** د ساده او مرکبو جملو تکرارول.
**۲.کورنۍ دنده:** ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې د کلمو او جملو تمرین په کورونو کې په خپلو کتابچو کې ترسره کړي.
ښوونکی زده کوونکو باندې ټینګار کوي چې متن بیا ولولي او د املا د تمرین لپاره د کلمو تمرین ترسره کړي.

د حسن خط فعالیت، ارزونه او کورنۍ دنده (۴۰ دقیقې)

## فرعي موضوعګانې دنده اړتیا ده او د ښوونکي ترانه

**د زده کړې موخې:**

۱- دیوې ښې ټولنې جوړل.
۲- د نوښتي لیکنې د متن بشپړول.
۳- په مناسب لحن، حرکتونو او٪ ۹۵ سموالي سره د متن لوستل.

### ۱. غوږنیول او خبرې کول (۱۰ دقیقې)

۱. زده کوونکو ته و وایاست چې د نن ورځې په درس کې به د یوې ښې ټولنې د جوړولو په اړه بحث وکړو. (ټولنه د خلکو یوې ډلې ته ویل کېږي چې یو له بل سره ګډې اړیکې لري او په ګډه ژوند کوي. ښه ټولنه یو له بل سره په ګډه کارونه ترسره کوي او یو له بل سره مرسته کوي.)

۲. زده کوونکو ته و وایاست چې په درسي کتابونو کې د مارکیټ انځور ته وګوري. مارکیټ هم یوه کوچنۍ ټولنه ده. له زده کوونکو وپوښتئ چې په انځور کې څه شیویني؟ خلک یو له بل سره څه ډول اړیکې لري؟ کوم شیان کولی شي په مارکیټ کې یوه ښه ټولنه جوړه کړي؟ کوم شیان کولی شي له مارکیټ څخه یوه بده ټولنه جوړه کړي؟

۳. زده کوونکو ته و وایاست چې په ښه ټولنه کې خلک تل یو ځای کار کوي او کوښښ کوي چې یو او بل ښه وپېژني او په کارونکې یو له بل سره مرسته وکړي.

۴. زده کوونکو ته و وایاست چې د تمرین کتابونو ته وګوري او پکې یو فعالیت دی چې له دوی سره مرسته کوي ترڅو خپله ټولنه په سمه توګه وپېژني.
زده کوونکو ته ووایاست چې د تمرین په کتابونو په پوکانو کې ستاسو د ټولګې یا د ښوونځي د ټولنې د مختلفو غړو نومونه ولیکئ. د مثال په توګه: "ښوونکی".

۵. زده کوونکو ته و وایاست چې د خپل مور او پلار سره د دې په اړه بحث وکړي چې د دوی په ټولنه کې خلک یو له بل سره څه ډول یو ځای کار کوي؟ څو زده کوونکو ته و وایاست چې ټولګیوالو ته خپل ځوابونه و وایي.

۶. زده کوونکو ته و وایاست چې د خپل مور او پلار سره په دې اړه بحث وکړي چې څنګه کولی شي په ښوونځي کې یوه ښه ټولنه را منځ ته کړي.

۷. له څو زده کوونکو څخه وغواړئ چې خپل ځوابونه ټولګیوالو ته و وایي.

۸. زده کوونکو ته و وایاست چې موږ باید یو ځای کار وکړو او د یو او بل په اړه پوره معلومات ولرو، تر څو یوه ښه ټولنه را منځ ته کړو. زده کوونکو ته و وایاست چې همدا کار باید په کور، کلي، ښوونځي او د دندې په ځای کې هم تر سره کړي.



### ۲. نوښتي لیکنه (۱۵ دقیقې)

۱. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې هغوی به اوس د یوې ښې ټولنې دجوړولو په اړه یوه متن ولیکي.

۲. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې د درسي کتاب جملې او د چوکاټ کلمې په یوازې توګه ولولي.

۳. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې د تمرین په کتابونو کې د چوکاټ د کلمو په کارولو سره په تشو ځایونو کې په یوازې توګه جملې جوړې کړي او نیمګړی متن دې بشپړ کړي.

۴. ښوونکی په ټولګي کې ګرځي او هغو زده کوونکو ته چې ستونزې لري مرسته او لارښوونه کوي.

۵. ښوونکی له څو زده کوونکو غواړي چې خپل بشپړ کړي متنونه ټولګیوالو ته و وایي.

### ۳. د لومړي او دویم متن بیا لوستل (۱۰ دقیقې)

ښوونکی له دوو پړاوونو (زده کوونکي په دوه کسیزه توګه لولي، زده کوونکي یې انفرادي توګه لولي)، څخه په ګټې اخیستنې سره لومړی او دوهم متن له زده کوونکو سره بیا لولي.

### تکرار او کورنۍ دنده (۵ دقیقې)

۱. **تکرار:** د ټولنیزو پیاوړتیاوو یا غښتلتیاوو د په ګوته کولو تکرار.
۲. **کورنۍ دنده:** لومړی او دوهم متن بیا لوستل. د نوښتي کیسې بشپړول او په اړه یې یو انځور رسمول.

## فرعي موضوع: تکرار او دوامداره ارزونه

**د زده کړې موخې:**

۱- د مثبت او منفي فعلونو پېژندل او کارول.
۲- د مرکبو جملو پېژندل او کارول.
۳- کلمې په (۴) کټګوریو وېشل او له٪ ۹۵ سموالي سره د متنونو لوستل
٤- له٪ ۸۰ سموالي سره کلمې او جملې لیکل.
٥- د ه/ هـ/ ح/ تورو لرونکو کلمو سم لیکل.

### ۱. کلمې او جملې (۱۰ دقیقې)

۱. ښوونکی د مثبت او منفي فعلونو مفهوم تکراروي.
۲. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې د درسي کتاب (الف) تمرین ترسره کړي.
۳. ښوونکی ساده او مرکبې جملې تکراروي.
٤. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې د درسي کتاب (ب) تمرین ترسره کړي.
٥. ښوونکی په کټګوریو کې د کلمو وېشل تکراروي.
٦. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې د درسي کتاب (ج) تمرین ترسره کړي.
۷. ښوونکی د زده کوونکو ځوابونه ګوري.
۸. ښوونکی د پرله پسې ارزونې په کتاب کې د زده کوونکو نومرې ثبتوي.

### ۲. د لومړي او دویم متن بیا لوستل (۱۰ دقیقې)

۱. ښوونکی زده کوونکو ته دوه دقیقې وخت ورکوي چې په دوه کسیزه توګه لومړی یا دوهم متن ژر ژر ولولي.
۲. ښوونکی د زده کوونکو له ځلورو (۴) جوړو ځخه غوښتنه کوي چې د ټولګي مخې ته راشي.
۳. ښوونکی هغوی ته وایي چې هره جوړه به د متن یوه برخه لولي. هغوی باید متن په روانه توګه او د مناسب لحن او حرکاتو په کارولو سره ولولي چې د پای ټکی او د پوښتنې نښې منعکسې کړي.
٤. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې متن ورو ورو له ټولګیوالو سره ولولي او ښه غوږورته ونیسي.
٥. کله چې اته(۸) زده کوونکي په لوستلو بوخت وي، ښوونکی د هغوی د لوست د ځرنګوالي کتنه کوي او خپله دا کتنه د پرله پسې ارزونې په کتاب کې لیکي.
٦. له هغو زده کوونکو سره چې په ښه توګه دا فعالیت ترسره نه کړي، راتلونکې اونۍ باید مرسته ورسره وشي.



### ۳. املا (۱۵ دقیقې)

۱. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې هغوی به اوس یو څو کلمې او جملې ولیکي.
۲. ښوونکی زده کوونکي د درسي کتابونو تړلو او د تمرین دکتابونو پرانیستلوته رابولي. ښوونکی لومړی کلمه په کراره وایي او ځلور(۴) ځله یې تکراروي. کلمه دا ده: **فریده** زده کوونکي کلمه د تمرین په کتاب کې لیکي.
۳. ښوونکی همدغه کار د لاندې ۸ کلمو لپاره هم ترسره کوي.
**۱- ګوره، ۲- لښته، ۳- هرات، ۴- هګۍ، ۵- مهال، ٦- محمود، ۷- اصلاح، ۸- حج.**
٤. ښوونکی لومړی جمله په کراره لولي او ځلور ځله یې تکراروي. جمله دا ده: ۱. **فریده زما ټولګیواله ده.**
٥. ښوونکی همدا کار د لاندې دریو جملو لپاره هم ترسره کوي. زده کوونکي جمله د تمرین په کتاب کې لیکي.
**۲. زما مور او پلار حج ته ځي.**
**۳. زه کورنۍ دنده لیکم.**
**۴. محمود هرات ته ځي.**
٦. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې خپل د تمرین کتابچې د کتلو لپاره راوړي. ښوونکی د هغوی املا ګوري او نومرې ورکوي.
۷. ښوونکی د زده کوونکو نومرې د پرله پسې ارزونې په کتاب کې ثبتوي.

### تکرار او کورنۍ دنده (۵ دقیقې)

۱. **تکرار:** هغه څه تکرارول چې زده کوونکو په دې اونۍ کې زده کړي دي.
۲. **کورنۍ دنده:** ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې په کورونو کې د درسونو د هغو برخو بیا لیکل او لوستل دې ترسره کړي چې د اونۍ په جریان کې یې ورسره ستونزې لرلې.

د حسن خط فعالیت، ارزونه او کورنۍ دنده (۴۰ دقیقې)

## د اتمې برخې عمومي کتنه: اصلي موضوع: معیشت( ژوند کول)

**د لیک او لوست موخې:**

۱. زده کوونکي به د دې برخې تر پایه، وتوانیږي چې:
۲. په چټکۍ سره د کلمو د تجزیې لپاره د کلمو د جوړښت اړونده (مورفیمونو) د پوهې څخه ګټه واخلي.
۳. مرکبې جملې وکاروي.
٤. عادي یا عامې مترادفې او متضادې کلمې وکاروي
٥. د مهمو کلمو په معنا پوه او په خبرو یا لیکلو کې یې وکاروي.
٦. داوړاندوینه کول چې متن به د څه په اړه وي، له انځور، سرلیک، مهمو کلمو او مخکینی پوهې څخه کار واخلي.
٧. د لوستلو پر مهال د تکراري لوستلو د ستراتیژۍ څخه کار واخلي.
٨. له یوې جملې سره د واقعیتي پوښتنو پر وړاندې غبرګون وښیې.
٩. د ټولګي له کچې سره برابر د یو متن پوهېدنه ارزیابي کړي.
١٠. له٪ ٨٠ درستوالي سره د لوستلو پوښتنو ته ځواب و وایي.
١١. له مناسب لحن، حرکاتو او له٪ ٩٥ سموالي سره متن ولولي.
١٢. په سم ډول د ( ی)، (ي) تورو درلودونکې کلمې ولیکي.
١٣. ٪٨٠سموالي سره کلمې او جملې ولیکي.
١٤. له دوو لنډو پاراګرافونو سره یو مسلسل متن ولیکي.
١٥. زده کوونکي به په نسخ خط سره مرکبې جملې د کرسي خط پر مخ په صحیح او ښکلې بڼه ولیکلای شي.

**د حسن خط فعالیت (۳۵دقیقې)**

ښوونکی دې د لاربنود د مقدمې (۲۲- ۲۳) مخونو له لاربښوونو سره سم مرکبې جملې تدریس کړي.

**د حسن خط ارزونه او کورنی دنده(۵ دقیقې)**

۱- له څو زده کوونکو څخه د کلمو د ښایسته لیکلو په اړه پوښتنه وکړي.
۲- زده کوونکي دې د کړکي یا پنسل قلم په وسیله مرکبې جملې په کورونو کې تمرین کړي.

**د ټولنیزي عاطفي زده کړې موخې:**

۱. د ځان پېژندنې او پر خپل ځان (نفس) د باور درکولو مثبت حس منځته راوړل.
۲. د شخصي او اکاډېمیکو موخو ټاکل.
۳. دموخو لاسته راوړل او پر خنډونو برلاسي کېدل.

**د لوست پیل (٥دقیقې):** د لوست د پیل ټول مقدماتي فعالیتونه دې ترسره شي.

### د دې برخې ځانګړې فعالیتونه

**توري، کلمې او جملې (۱۰ دقیقې)**

۱. ښوونکی پر تخته د دوو جملو او په لیندیو کې د یوه نښلوونکي ________ او ________ ________ (________) په لیکلو سره درس پیلوي.
۲. ښوونکی زده کوونکو ته تشریح کوي چې هغوی د نښلوونکې کلمې په کارولو سره له دوو جملو څخه یوه جمله جوړولای شي.
۳. ښوونکی له زده کوونکو څخه غوښتنه کوي چې خپلو تولګیوالو ته و وایي چې هغوی د نښلوونکي کلمې په کارولو سره څنګه دوې جملې سره یوځای کولای شي.
٤. ښوونکی له یو یا دوه زده کوونکو څخه د جملې د لوستلو غوښتنه کوي.
٥. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې خپل درسي کتابونو ته ځیر شي. ښوونکی لومړی دوه جملې له زده کوونکو سره ترسره کوي.
٦. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې د تمرین کتاب کې د تمرین د بشپړولو لپاره په دوه کسیزه توګه کار وکړي.
٧. کله چې زده کوونکي د مرکبو جملو په تمرین په کار بوخت وي، ښوونکی په ټولګي کې ګرځي تر څو له هغو زده کوونکو سره مرسته وکړي چې ستونزې لري.
٨. درویشتمه اونۍ: زده کوونکي د ښوونکي په مرسته د مرکبو جملو تمرین ترسره کوي.
٩. څلورویشتمه اونۍ: ښوونکی له زده کوونکو څخه د مرکبو جملو د فعالیتونو د ترسره کولو غوښتنه کوي.

**مثبت او منفي فعلونه**

توري، کلمې او جملې (۱۰ دقیقې)

۱. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې هغوی به د مناسبو ګرامري نښو په کارولو سره د دوو پاراګرافونو لرونکی یو متن ولیکي. متن یوه (لړۍ) چې د چارو د منځته راتګ د ترتیب څخه عبارت ده، تشریح کوي.
۲. ښوونکی له زده کوونکو څخه د تسلسل د یو څو بېلګو د وړاندې کولو غوښتنه کوي (لکه ښوونځي ته د چمتو کېدو لپاره تاسې څه کوئ؟ همداسې له پاڅېدو څخه تر ښوونځي ته تر رسېدو پورې په ترتیب سره بیان کړئ. تاسې په ټولګي کې څه کوئ؟
۳. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې په دې اونۍ کې به هغوی یو متن ولیکي چې د چارو یا شیانو ترتیب توضیح کوي. متن به د ________ اړه وي.
٤. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې د متن لومړی جمله به موضوعي یا عنواني جمله وي. چې ډیره بریده د متن اصلي مفهوم ته ورته ده.
٥. ښوونکی تشریح کوي چې جزیات تر ډیره بریده د هغو چارویا شیانو لنډیز ته ورته دي چې هغوی په دې اونۍ کې زده کړي دي.
٦. ښوونکی تشریح کوي چې د متن په پای کې به هغوی د پای جمله لیکي چې تر ډیره د پایلې د استنباط مهارت ته ورته وي چې هغوی یې تمرین ترسره کړی دی.
٧. ښوونکی پر زده کوونکو ټینګار کوي چې هغه ګرامري نښې وکاروي چې هغوی دمخه زده کړې دي.
٨. زده کوونکي جملې د خپل تمرین کتاب ته نقلوي.
٩. ښوونکی له ۲ یا ۳ زده کوونکو څخه ټولګي ته د پاراګرافونو د لوستلو غوښتنه کوي.
١٠. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې متن په کور کې بشپړ کړي.

فرعي موضوع: ملي شتمني    توري: ی، ي

**د زده کړې موخې:**

۱. د(ی) او (ي) توري لرونکو کلمو سم لیکل.
۲. انځور، سرلیک، مهمو کلمو او مخکینۍ پوهې څخه ګټې اخیستلو سره دا وړاندوینه کول لپاره چې یوه کیسه یا متن به د څه په اړه وي.
۳. دلوستلو پرمهال دمفهوم اخیستنې لپاره دبیا لوستلو څخه کار اخیستل.
۴. د مناسب لحن، حرکاتو او ٪۹۵ سموالي سره د متن لوستل.

**۱. توري او کلمې (۱۰ دقیقې)**

۱. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې څرګنده(ی) او نرمه(ي) سره نژدې غږونه لري. ځینې کلمې (ی) توری او ځینې نورې کلمې بیا د (ي) توری لري.
۲. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې په دې اونۍ کې به د هغو کلمو تمرین وکړي چې د(ی) او د (ي) پکې کارول کېږي.
۳. ښوونکی لاندې کلمې پر تخته لیکي:**کلی احمدزی ملي، عایدات،** ښوونکی له زده کوونکو څخه په لوړ غږ د کلمو د لوستلو غوښتنه کوي. ښوونکی له زده کوونکو څخه پوښتنه کوي چې کوم توري د(ی) او د (ي)غږونه لري. ښوونکی یو څو زده کوونکو ته اجازه ورکوي چې توروته ګوته ونیسي.
۴. ښوونکی د زده کوونکو پام درسي کتاب ته را اړوي. ښوونکی کلمې زده کوونکو ته په داسې حال کې لولي چې هغوی خپلې ګوتې پر کلمو تېروي. بیا زده کوونکي کلمې په دوه کسیزه توګه لولي.
۵. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې د تمرین په کتابونو کې د کلمو لیکل تمرین کړي.
۶. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې هغوی باید په کور کې هره ورځ د دغو کلمود لیکلو تمرین وکړي.
۷. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې د اونۍ په پای کې به هغوی د همدغو کلمو په اړه املا ولري.

**۲. د لومړي متن لوستل (۲۵ دقیقې)**

**له لوستلو څخه مخکې**

۱. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې سرلیک او انځور ته وګوري او وړاندوینه وکړي چې متن به د څه په اړه وي. (په خپلو کې شریکول او له ټولګیوالو سره شریکول). زده کوونکي باید درسي کتابونو ته ځیر شي چې هغوی د موضوع په اړه مخکې له مخکې په څه پوهېدل.
۲. ښوونکی درې مهمې کلمې له زده کوونکو سره معنا او په جملو کې یې کاروي.

**د لوستلو پرمهال**

۱. ښوونکی یې لولي، ښوونکی او زده کوونکي یې په ګډه لولي، زده کوونکي په دوه کسیزه توګه لولي.
۲. ښوونکی زده کوونکو ته ښيي چې څنګه کولای شي د تم کېدلو او فکر کولو ستراتیژۍ څخه د متن د لوستلو پرمهال ګټه واخلي.

**له لوستلو څخه وروسته**

۱. ښوونکی له زده کوونکو څخه پوښتنه کوي چې ایا د کیسې په اړه یې وړاندوینه سمه ده؟ هو یا نه.
۲. ښوونکی له زده کوونکو څخه لاندې پوښتنې کوي:




- **پوښتنه: زموږ هېواد کومې ملي شتمنۍ لري؟**
**ځواب: ښوونځي، سیندونه، بربښنا، ځنګلونه، غرونه او داسې نور.**
- **پوښتنه: د ناروغ درملنه چېرته کېږي؟**
**ځواب: د ناروغ درملنه په روغتون کې کېږي.**
- **پوښتنه: ملي شتمنۍ ولې باید ښه وساتو؟**
- **ځواب: ځکه چې د ټولو وطنوالو شریک مال دی او ګټه یې ټولو ته رسېږي.**
- **پوښتنه: که ملي شتمنیو ته پاملرنه ونکړو څه به پېښ شي؟**
**ځواب: ټول هېوادوال به موتاوان کړي.**

۳. ښوونکی له زده کوونکو پوښتنه کوي چې د متن اصلي مفهوم څه شی دی:
ځواب: د متن اصلي مفهوم دا دی: **موږ د ملي شتمنۍ په اړه فکر کوو، موږ ته دا ښيي چې څنګ وکولای شو خپله سرمایه ښه وساتو او پوره ګټه ترې واخلو.**

**تکرار او کورنۍ دنده (۵ دقیقې)**

۱. **تکرار:** ښوونکی له زده کوونکو سره یو څو هغه کلمې چې د(ی) او (ي) غږونه لري، تکراروي.
۲. **کورنۍ دنده:** زده کوونکي توري او کلمې په کورونو کې په خپلو کتابچو کې لیکي. او د لومړي متن بیا لوستل تکراروي.

## فرعي موضوع: ملي شتمني

**د زده کړې موخې:**

۱. له(بې) مختاړي سره د کلمو پېژندل.
۲. متضادې کلمې پرتله کول.
۳. له مناسب لحن، حرکاتو او ٪۹۵ سموالي سره د متن لوستل.

### ۱. کلمې او جملې (۱۰ دقیقې)

۱. ښوونکی دې(گټې) کلمه د(بې) مختاړي پر تخته لیکي.
۲. ښوونکی له زده کوونکو څخه پوښتنه کوي چې آیا هغوی د دې کلمې او مختاړي پر معنا پوهېږي. ښوونکی څو زده کوونکو ته د ځواب ویلو لپاره وخت ورکوي.
۳. ښوونکی تشریح کوي چې د(بې) مختاړی کلمو ته متضادې معنا وي ورکوي.
٤. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې خپلو درسي کتابونو ته وگوري. هغوی په چوکاټ کې اته (۸) کلمېویني چې (بې) د مختاړي په یو ځای کېدلو سره د کلمو معنا وي تغییر کړې.
۵. ښوونکی لومړی دوه بېلگې له زده کوونکو سره ترسره کوي.
٦. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې د تمرین کتابونو کې د دې تمرین د سرته رسولو لپاره په دوه کسیزه توگه کار وکړي.
۷. کله چې زده کوونکي پر کار بوخت وي، ښوونکی په ټولگي کې گرځي تر څو له هغو زده کوونکو سره مرسته وکړي چې ستونزې لري.
۸. ښوونکی له زده کوونکو څخه پوښتنه کوي چې هغوی په دې لوست کې څه زده کړل. ځواب: د (بې) د مختاړي په یو ځای کولو سره د کلمو معنا وي تغییر کوي.

### ۲. د لغتونو زېرمه (۱۵ دقیقې)

۱. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې هغوی به د متضادو کلمو په اړه لازیات تمرین وکړي.
۲. ښوونکی له زده کوونکو څخه پوښتنه کوي چې آیا د هغوی اوس هم په یاد دي چې متضادې کلمې څه ته وایي. او د متضادو کلمو یو څو بېلگې ورانديې کولای شي؟
۳. ښوونکی زده کوونکي د خپلو درسي کتابونو لوستلو ته رابولي. هغوی د(الف) او (ب) دوه چوکاټونه ویني چې کلمې لري. هغوی باید د (الف) د چوکاټ متضادې کلمې د (ب) په چوکاټ کې ونښيي.
٤. ښوونکی لومړی دوه کلمې له زده کوونکو سره ترسره کوي.
۵. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې په دوه کسیزه توگه د خپل تمرین په کتابونو کې تمرین کړي.



٦. کله چې زده کوونکي په کار بوخت وي، ښوونکی په ټولگي کې گرځي تر څو له هغو زده کوونکو سره مرسته وکړي چې ستونزې لري.
۷. لږ وخت وروسته، ښوونکی د زده کوونکو ځوابونه گوري.
۸. ښوونکی له زده کوونکو څخه پوښتنه کوي چې و وایي هغوی په دې لوست کې څه زده کړي دي. (ځواب: موږ د متضادو کلمو په اړه زده کړه وکړه).

### ۳. د لومړي متن بیا لوستل (۱۰دقیقې)

۱. د څلور پړاوونو ( ښوونکی یې لولي، ښوونکی او زده کوونکي یې په گډه لولي، زده کوونکي یې په دوه کسیزه توگه لولي او زده کوونکي یې په انفرادي توگه لولي) په کارولو سره لومړی متن له زده کوونکو سره بیا لولي

### تکرار او کورنۍ دنده (۵ دقیقې)

۱. **تکرار:** د (بې) له مختاړي سره د متضادو کلمو تکرارول.
۲. **کورنۍ دنده:** ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې د کلمو او جملو تمرین په کورونو کې په خپلو کتابچو کې ترسره کړي او لومړی متن دې تکرار کړي.

## فرعي موضوع: حاجي ګک کان

**د زده کړې موخې:**

۱. په چټکۍ سره د کلمو د تجزیه کولو لپاره د مورفیمونو د پوهې کارول.
۲. د انځور، سرلیک، مهمو کلمو او د مخکینۍ پوهې څخه په ګټې اخیستنې سره دا وړاندوینه کول چې کیسه یا متن به د څه په اړه وي.
۳. د لوستلو پر مهال د مفهوم اخیستنې لپاره د بیا لوستلو څخه کار اخیستل.
۴. د مناسب لحن، حرکاتو او ٪۹۵ سموالي سره د متن لوستل.

### ۱. کلمې (۱۰ دقیقې)

۱. ښوونکی د لومړۍ کلمې جوړښت کټ مټ پر تخته هغسې لیکي، لکه چې په درسي کتاب کې لیکل شوی دی.
۲. ښوونکی کلمه په لوړ غږ زده کوونکو ته لولي. بیا ښوونکی کلمه له زده کوونکو سره په ګډه لولي.
۳. ښوونکی تشریح کوي چې کلمې ته یوه کوچنۍ برخه ورزیاتېږي او د نوم معنا بدلوي.
۴. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې د لومړنیو دوو بېلګو د لوستلو لپاره خپل درسي کتابونو ته وګوري.
۵. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې په درسي کتابونو کې په دوه کسیزه توګه کلمې ولولي.
۶. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې د تمرین په کتابونو کې د کلمو لیکل تمرین کړي.
۷. کله چې زده کوونکي کلمې لولي، ښوونکی په ټولګي کې ګرځي ترڅو له هغو زده کوونکو سره مرسته وکړي چې ستونزې لري.

### ۲. دویم متن لوستل (۲۵ دقیقې)

**له لوستلو څخه مخکې**

۱. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې سرلیک او انځور ته وګوري او وړاندوینه وکړي چې متن به د څه په اړه وي. ( په خپلو کې شریکول، له ټولګیوالو سره شریکول). زده کوونکي باید درسي کتابونو ته ځیر شي چې هغوی د موضوع په اړه مخکې له مخکې په څه پوهېدل.
۲. ښوونکی درې مهمې کلمې له زده کوونکو سره معنا او په جملو کې یې کاروي.

**د لوستلو پر مهال**

۱. ښوونکی یې لولي، ښوونکی او زده کوونکي یې په ګډه لولي، زده کوونکي په دوه کسیزه توګه لولي.
۲. ښوونکی زده کوونکو ته ښیي چې څنګه کولای شي د تم کېدلو او فکر کولو ستراتیژۍ څخه د متن د لوستلو پرمهال ګټه واخلي.

**له لوستلو څخه وروسته**

۱. ښوونکی له زده کوونکو څخه پوښتنه کوي چې ایا د کیسې په اړه یې وړاندوینه سمه ده؟ هو یا نه.



کلمې

| کار | بې + کاره | بې کاره |
|---|---|---|
| لار | بې + لارې | بې لارې |
| مینه | بې + مینې | بې مینې |
| کور | بې + کوره | بې کوره |

اوسپنه - کان - بې

د حاجیګک کان

بېل، څټک، تبر، کولنګ، موټر او بایسکل خو مو لیدلي دي. څه فکر کوئ، دا شیان له څه شي څخه جوړېږي؟ دا او ډېر نور شیان له اوسپنې څخه جوړېږي. پوهېږئ چې اوسپنه چېرته پیدا کېږي؟ اوسپنه په کان کې وي. د حاجیګک د اوسپنې کان د بامیان په ولایت کې دی. دغه کان ډېره اوسپنه لري. اوسپنه په ډبرو کې ګډه وي. انجنیران له کان څخه د اوسپنې ډبرې راباسي. وروسته یې په بټیو کې اچوي. په بټیو کې ډبرې ویلې کېږي چې اوسپنه له نورو توکو بېله شي. وروسته له اوسپنې څخه بېلا بېل شیان جوړېږي. که دولت کانونه راوباسي، د وطن اقتصاد به مو پرې پیاوړی شي.

۲. ښوونکی له زده کوونکو څخه لاندې پوښتنې کوي:

- **پوښتنه: د حاجي ګک د اوسپنې کان په کوم ولایت کې دی؟**
**ځواب: د بامیان په ولایت کې.**
- **پوښتنه: که د حاجي ګک کان راوېستل شي څه به وشي؟**
**ځواب: د وطن اقتصاد به مو پرې پیاوړی شي.**
- **پوښتنه: څه فکر کوئ له کانونو څخه کوم شیان لاس ته راځي؟**
**ځواب: تېل، ګاز، طلا، اوسپنه، او داسې نور.**
- **پوښتنه: که کانونه، استخرج نه شي څه به وشي؟**
**ځواب: هېواد مو پرمختګ نشي کولای.**

۳. ښوونکی له زده کوونکو پوښتنه کوي چې د متن اصلي مفهوم څه شی دی:
۴. ځواب: د متن اصلي مفهوم دا دی: **د خپل هېواد کانونه راښیي، له دې کانونو څخه د ګټې اخیستنې لارې راښیي او دا راښیي چې د حاجي ګک کان د اوسپنې کان دی.**

### تکرار او کورنۍ دنده (۵ دقیقې)

**۱. تکرار:** ښوونکی د کلمو تمرین له زده کوونکو سره تکراروي.
**۲. کورنۍ دنده:** زده کوونکي د کلمو لیکل او د دوهم متن بیا لوستل په کور کې تمرین کوي.

## فرعي موضوع: حاجي گک کان

**د زده کړې موخې:**

۱- د مرکبو جملو پېژندل او کارول.
۲- په یوه جمله کې د متضادو کلمو بدلول.
۳- له مناسب لحن، حرکاتو سره او ٪ ۹۵ سموالي سره د متن لوستل.

### ۱. کلمې او جملې (۱۰ دقیقې)

۱. ښوونکی پر تخته د دوه جملو او په لیندیو کې د یوه نښلوونکي په لیکلو سره درس پیلوی. لکه: (**مور ملي شتمني ساتو(څکه) چې چاته اړ نشو**)
۲. ښوونکی زده کوونکو ته تشریح کوي چې هغوی د نښلوونکي کلمې په کارولو سره له دوو جملو څخه یوه جمله جوړولای شي.
۳. ښوونکی له زده کوونکو څخه غوښتنه کوي چې خپلو تولګیوالو ته و وایي چې هغوی د نښلوونکي کلمې په کارولو سره څنګه دوه جملې سره یوځای کولای شي.
٤. ښوونکی له یو یا دوو زده کوونکو څخه د جملې د لوستلو غوښتنه کوي.
٥. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې خپل درسي کتابونو ته ځیر شي. ښوونکی لومړی دوو جملې له زده کوونکو سره ترسره کوي.
٦. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې د تمرین کتاب کې د تمرین بشپړولو لپاره په دوه کسیزه توګه کار وکړي.
٧. کله چې زده کوونکي د مرکبو جملو پر تمرین بوخت وي، ښوونکی په ټولګي کې ګرځي ترڅو له هغو زده کوونکو سره مرسته وکړي چې ستونزې لري.
٨. ښوونکی له زده کوونکو څخه غوښتنه کوي چې و وایي هغوی په دې درس کې څه زده کړي دي. (ځواب: د مرکبو جملو جوړول.)

### ۲. د لغتونو زېرمه (۱۵ دقیقې)

۱. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې هغوی به د متضادو کلمو په اړه لازیات تمرین وکړي.
۲. ښوونکی له زده کوونکو څخه پوښتنه کوي چې آیا د هغوی اوس هم په یاد دي چې متضادې کلمې څه ته وایي. آیا هغوی د متضاد کلمو یو څو بېلګې وړاندې کولای شي؟
۳. ښوونکی زده کوونکي دخپلو درسي کتابونو لوستلو ته رابولي. هغوی څو جملې ویني. په هره جمله کې د یوې کلمې لاندې کرښه ایستل شوې ده ترڅو په چوکاټ کې د هماغه کلمې متضاده کلمه پیدا کړي. ښوونکی لومړی دوه جملې له زده کوونکو سره ترسره کوي.
٤. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې په دوه کسیزه توګه




خپل د تمرین کتابونو کې تمرین ترسره کړي.
٥. کله چې زده کوونکي په کار بوخت وي، ښوونکی په ټولګي کې ګرځي تر څو له هغو زده کوونکو سره مرسته وکړي چې ستونزې لري.
٦. لږ وخت وروسته، ښوونکي د زده کوونکو ځوابونه ګوري.
٧. ښوونکی له زده کوونکو څخه پوښتنه کوي چې و وایي هغوی په دې لوست کې څه زده کړي دي. (ځواب: مور د متضادو کلمو په اړه زده کړه وکړه).

### ۳. د دویم متن بیا لوستل (۱۰ دقیقې)

۱. د څلور پړاوونو ( ښوونکی لولي، ښوونکی او زده کوونکي یې په ګډه لولي، زده کوونکي یې په دوه کسیزه توګه لولي او زده کوونکي یې په انفرادي توګه لولي) په کارولو سره لومړی متن له زده کوونکو سره بیا لولي

### تکرار او کورنۍ دنده (۵ دقیقې)

۱. **تکرار:** دساده او مرکبو جملو تکرارول.
۲. **کورنۍ دنده:** ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې کلمو او جملو تمرین په کورونو کې په خپلو کتابچو کې ترسره کړي او لومړی او دوهم متن تکرارکړي.

د حسن خط فعالیت، ارزونه او کورنۍ دنده (۴۰ دقیقې)

**فرعي موضوعګانې: ملي شتمني او د جاجي ګک کان**

**د زده کړې موخې:**

۱- په مثبته توګه د ځان پېژندل او پر خپل ځان ویاړل.
۲- د نوښتي لیکنې د متن بشپړول.
۳- له مناسب لحن، حرکاتو سره او٪ ۹۵ سموالي سره د متن لوستل.

### ۱. غوږنیول او خبرې کول (۱۰ دقیقې)

۱. زده کوونکو ته و وایاست چې نن به موږ په مثبته توګه د خپل ځان د پېژندلو په اړه خبرې کوو. زیار او زحمت او پر ځان باور هغه وخت ډېر مهم دی چې کله موږ غواړو ستونزمن کارونه ترسره کړو. د ستونزمنو کارونو د ترسره کولو پر مهال باید په دې پوه شو چې موږ څوک یو؟ څه ډول ورتیاوې لرو؟ ښوونکی تشریح کوي چې موږ باید په خپلو ملي شتمنیو او ځانونو وویاړو. ویاړ په دې معنا دې چې موږ د یوه شي یا د یو چا د لاسته راوړنو او ځانګړتیاوو په اړه د خوشحالۍ احساس کوو او افتخار پرې کوو.

۲. زده کوونکو ته و وایاست چې په درسي کتابونو کې د دوو زده کوونکو انځور ته وګوري. له زده کوونکو څخه وغواړئ چې د انځور په اړه بحث وکړي او د زده کوونکو احساسات پکې وپېژني. له زده کوونکو دغه پوښتنه وکړئ: ستاسو په نظر زده کوونکي ولې دا ډول احساس کوي؟ زده کوونکو ته و وایاست موږ الله (ج) پیدا کړي یو چې د هغه عبادت وکړو، له بېوزلو سره مرسته وکړو، د مشرانو درناوی وکړو، له خلکو سره زړه سوی او خواخوږي ونښیو او داسې نور. دا ټول هغه ښه کارونه دي چې په ترسره کولو سره یې موږ ویاړو او خوشحاله کېږو. کله چې موږ دا ډول ښه کارونه ترسره کړو، نو الله (ج) هم له موږ خوشحاله کېږي.

۳. زده کوونکو ته و وایاست چې د تمرین کتابونو ته وګورئ. د تمرین په کتابونو کې به تاسو یو فعالیت ترسره کوئ. په دې فعالیت کې به تاسو د خپل ځان په اړه یو انځور او شپږ غوره ځانګړتیاوې یا صفتونه ولیکئ.

۴. زده کوونکو ته و وایاست چې هر یو خپل انځور ټولګیوالو ته وښیي.

۵. زده کوونکو ته څرګنده کړئ چې موږ ټولو ته الله (ج) ډېرې غوره ځانګړتیاوې او مسؤلیتونه را کړي دي چې باید پرې وویاړو. موږ ټول باید د یوې غوره ټولنې او پیاوړي افغانستان په را منځ ته کولو کې برخه واخلو.



### ۲. نوښتي لیکنه (۱۵ دقیقې)

۱. ښوونکی زده کوونکو ته وايي چې هغوی به اوس په مثبته توګه د ځان پېژندلو په اړه یو متن ولیکي.
۲. ښوونکی د درسي کتاب جملې او د چوکاټ کلمې له زده کوونکو سره یو ځای لولي.
۳. ښوونکی زده کوونکو ته وايي چې د تمرین په کتابونو کې د چوکاټ د کلمو په کارولو سره په تشو ځایونو کې په دوه کسیزه توګه جملې جوړې کړي او نیمګړی متن دې بشپړ کړي.
۴. ښوونکی په ټولګي کې ګرځي او هغو زده کوونکو ته چې ستونزې لري مرسته او لارښوونه کوي.
۵. ښوونکی له څو زده کوونکو غواړي چې خپل بشپړ کړي متنونه ټولګیوالو ته و وایي.

### ۳. د لومړي او دویم متن بیا لوستل (۱۰ دقیقې)

ښوونکی له دوو پراوونو (لکه زده کوونکي په دوه کسیزه توګه لولي، زده کوونکي یې په انفرادي توګه لولي)، څخه په ګټه اخیستنې سره لومړی او دوهم متن له زده کوونکو سره بیا لولي.

### تکرار او کورنۍ دنده (۵ دقیقې)

۱. **تکرار:** زده کوونکي هغه کارونه تکراروي چې پر ترسره کولو یې ویاړي.
۲. **کورنۍ دنده:** لومړی او دوهم متن بیا لوستل. د نوښتي کیسې بشپړول او په اړه یې یو انځور رسمول.

## فرعي موضوع: تکرار او دوامداره ارزونه

**د زده کړې موخې:**

۱- د (بې) مورفیم لرونکو نومونو پېژندل او کارول.
۲- د مرکبو جملو پېژندل او کارول.
۳- متضادو کلمو ته مطابقت ورکول.
۴- له مناسب لحن،حرکاتو او ٪۹۵ سموالي سره د متنونو لوستل.
۵- له ٪ ۸۰ سموالي سره کلمې او جملې لیکل.
۶- د ي/ او ی/ غږونو او د ي/ تورو لرونکو کلمو سم لیکل.

### ۱. کلمې اوجملې (۱۰ دقیقې)

۱. ښوونکی د (بې) مورفیم لرونکو نومونو مفهوم تکراروي.
۲. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې د درسي کتاب (الف) تمرین ترسره کړي.
۳. ښوونکی متضادې کلمې تکراروي.
۴. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې د درسي کتاب (ب) تمرین ترسره کړي.
۵. ښوونکی ساده او مرکبې جملې تکراروي.
۶. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې د درسي کتاب (ج) تمرین ترسره کړي.
۷. ښوونکی د زده کوونکو ځوابونه ګوري.
۸. ښوونکی د پرله پسې ارزونې په کتاب کې د زده کوونکو نومرې ثبتوي.

### ۲. د لومړي او دویم متن بیا لوستل (۱۰ دقیقې)

۱. ښوونکی زده کوونکو ته دوه دقیقې وخت ورکوي چې په دوه کسیزه توګه لومړی یا دوهم متن ژر ژر ولولي.
۲. ښوونکی د زده کوونکو له (۴) جوړو نه غوښتنه کوي چې د ټولګي مخې ته راشي.
۳. ښوونکی هغوی ته وایي چې هره جوړه به د متن یوه برخه لولي. هغوی باید متن په روانۍ سره او د مناسب لحن او حرکاتو په کارولو سره ولولي چې د ټکي او د پوښتنې نښې منعکسې کړي.
۴. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې متن ورو ورو له ښوونکي سره ولولي او ښه غوږ ورته ونیسي. کله چې اته( ۸ ) زده کوونکي په لوستلو بوخت وي، ښوونکی د هغوی د لوستلو ځرنګوالي مشاهده کوي او خپله مشاهده د پرله پسې ارزونې کتاب کې لیکي. له هغه زده کوونکو سره چې په ښه توګه دا فعالیت ترسره نه کړي، راتلونکې اونۍ باید مرسته ورسره وشي.

### ۳. املا (۱۵ دقیقې)

۱. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې هغوی به څو کلمې او جملې ولیکي.
۲. ښوونکی زده کوونکو ته د درسي کتابونو ترلو او د تمرین د کتابونو پرانیستلو ته رابولي ښوونکی لومړی کلمه په کراره وایي او (۴) ځلې یې تکراروي. کلمه دا ده: **ملي** زده کوونکي کلمه لیکي.
۳. ښوونکی همدغه کار د لاندې (۸) کلمو لپاره هم ترسره کوي.
**۱- عایدات ۲- دولتي ۳- لرګی ۴- کلی ۵- احمدزی ۶- سړی ۷- درناوی ۸- یرغل.**
۴. ښوونکی لومړی جمله په کراره لولي او څلور ځله یې تکراروي. جمله دا ده: ۱. **موږ د خپلو ملي شتمنیو ساتنه کوو.**
۵. زده کوونکي جمله د تمرین په کتاب کې لیکي.
۶. ښوونکی همدا کار د لاندې درې، جملو لپاره ترسره کوي.
**۲. افغانستان ډېر کانونه لري. ۳. میزونه او څوکۍ له لرګي څخه جوړیږي.۴. احمدزی پرون کلي ته لاړ.**
۷. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې خپل د تمرین کتابچې د کتلو لپاره راوړي. ښوونکی د هغوی د املا ګوري او نومرې ورکوي.
۸. ښوونکی د زده کوونکو نومرې د پرله پسې ارزونې کتاب کې ثبتوي.



### تکرار او کورنۍ دنده (۵ دقیقې)

۱. **تکرار:** هغه څه تکرارول چې زده کوونکو په دې اونۍ کې زده کړي دي.
۲. **کورنۍ دنده:** ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې په کورونو کې د درسونو د هغو برخو بیا لیکل او لوستل دې ترسره کړي چې د اونۍ په جریان کې یې ورسره ستونزې لرلې.

د حسن خط فعالیت، ارزونه او کورنۍ دنده (۴۰ دقیقې)

## فرعي موضوع: د پستې ځنګل

**د زده کړې موخې:**

١. د ي، ئ،ی توري لرونکو کلمو سم لیکل.
٢. له انځور سرلیک، مهمو کلمو او مخکینی پوهې څخه په ګټې اخیستنې دا وړاندوینه کول چې کیسه یا متن به د څه په اړه وي.
٣. دلوستلوپرمهال دمفهوم اخیستنې لپاره دبیا لوستلو څخه کاراخیستل.
٤. د متن ارزول.

### ١. کلمې او جملې (١٠ دقیقې)

١. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې د اوږدې(ي)، امریه(ئ) او لکۍ لرونکې (ی) سره نژدې غږونه لري. ښوونکی واضح کوي چې ځینې کلمې د (ي) توري ځینې کلمې د (ئ) توري او ځینې نوري بیا د(ی) توري لري.
٢. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې په دې لوست کې به د هغو کلمو تمرین ترسره کړي چې د (ي)، (ئ)او (ی) توري پکې کارول کېږي.
٣. ښوونکی لاندې کلمې پر تخته لیکي: (ببل، کورئ اوښتمنی)
٤. ښوونکی له زده کوونکو څخه په لوړ غږ د کلمې د لوستلو غوښتنه کوي. ښوونکی له زده کوونکو څخه پوښتنه کوي چې کوم توری دا ي/ ا ئ/ ی/ غږ ونه لري. ښوونکی یو څو زده کوونکو ته اجازه ورکوي چې توري ته ګوته ونیسي.
٥. ښوونکی د زده کوونکو پام درسي کتاب ته را اړوي. ښوونکی کلمې زده کوونکو ته په داسې حال کې لولي چې هغوی خپلې ګوتې پر کلمو تېروي. بیا زده کوونکې کلمې په دوه کسیزه توګه لولي.
٦. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې د کلمو د لیکلو تمرین دې د تمرین په کتابونو کې ترسره کړي.
٧. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې هغوی باید په کور کې هره ورځ د دغو کلمو د لیکلو تمرین وکړي.
٨. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې د اونۍ په پای کې به هغوی د همدغو کلمو باره کې املاء ولري.

### ٢. د لومړي متن لوستل (٢٥ دقیقې)

**له لوستلو څخه مخکې**

١. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې سرلیک او انځور ته وګوري او وړاندوینه وکړي چې متن به د څه په اړه وي. (خپلومنځونو کې شریکول، له ټولګیوالو سره شریکول).
زده کوونکې باید درسي کتابونو ته ځیر شي. چې هغوی د موضوع په اړه مخکې له مخکې په څه پوهیدل.

٢.ښوونکی درې کلیدي کلمې له زده کوونکو سره معنا او په جملو کې یې استعمالوي.

**د لوستلو پر مهال**

١. ښوونکی تمثیل کوي، ښوونکی او زده کوونکې په ګډه لوستل کوي، زده کوونکې په دوه کسیزه توګه لوستل کوي.
٢. ښوونکی زده کوونکو ته ښیي چې څنګه کولای شي د تم کېدلو او فکر کولو له ستراتیژۍ څخه ګټه واخلي.

**له لوستلو څخه وروسته**

١. ښوونکی له زده کوونکو نه پوښتنه کوي چې ایا د کیسې په اړه یې وړاندوینه سمه ده؟ هو یا نه.
٢. ښوونکی له زده کوونکو څخه لاندې پوښتنې کوي:


٢٦ اونۍ ١
توري او کلمې

| ي | ببل | ډېرې | اوسېږي |
|---|---|---|---|
| ئ | ګورئ | وساتئ | پوهېږئ |
| ی | ګلالی | ښایسته | هیلی |

د پستې ځنګل

**- پوښتنه: دافغانستان کوم ولایتونه د پستې ځنګلونه لري؟**
**ځواب: بدخشان،تخار، بغلان، سمنګان، فاریاب، بادغیس او هرات.**
**- پوښتنه: څه باید وکړو چې د پستې تنکي نیالګي مو خراب نشي؟**
**ځواب: هلته باید مېږې او وزې ونه څروو.**
**- پوښتنه: که د پستې ځنګلونو ته پاملرنه ونه کړو څه به رامنځ ته شي؟**
**ځواب: ځنګلونه به مو له منځه لاړ شي. د هېواد اقتصاد او ښکلا به مو زیانمنه شي.**
**- پوښتنه: ولې د افغانستان پسته په نړۍ کې ښه نوم لري؟**
**ځواب:ځکه چې ښه کیفیت لري او ډېره خوندوره ده.**

٣. ښوونکی له زده کوونکو پوښتنه کوي چې د متن اصلي مفهوم څه شی دی:
٤. ځواب: د متن اصلي مفهوم دا دی: **دپستې د ارزښت په اړه درس په زړه پورې و، د افغانستان پسته په دنیا کې ښه نوم لري.**

### تکرار او کورنۍ دنده (٥ دقیقې)

١. **تکرار:** ښوونکی له زده کوونکو سره یو څو هغه کلمې چې دا ي/ ای/ ا ئ/ غږونو لري، تکراروي.
٢. **کورنۍ دنده:** زده کوونکې کلمې او جملې تمرین په کورونو کې په خپلو کتابچو کې ترسره کوي او لومړی لوست تکراروي.

## فرعي موضوع: د پستې ځنګل

**د زده کړې موخې:**

۱. له (بې) مختاړي مورفيم سره نومونه پېژندل.
۲. مترادفې (هم معنا) کلمې پرتله کول.
۳. له مناسب لحن او حرکاتو سره او له ۹۵٪ سموالي سره متن لوستل.

### ۱. کلمې (۱۰ دقيقې)

۱. ښوونکی لاندينی دوه کلمې پر تخته ليکي: **جوړه** او **بې جوړه**
۲. ښوونکی له زده کوونکو څخه پوښتنه کوي چې آيا هغوی د دغو ددو کلمو پر معنا پوهېږي. ښوونکی یو څو زده کوونکو ته د ځواب ورکولو فرصت ورکوي. ښوونکی تشريح کوي چې د (بې) مختاړی کلمو ته نوري او متضادي معناوې ورکوي.
۳. ښوونکی زده کوونکو ته وايي چې خپل درسي کتاب ته وګوري. هغوی يو شمېر کلمې ويني چې د (بې) مختاړی لري. خو دغه ټولې کلمې حقيقي کلمې نه دي. ښوونکی زده کوونکو ته وايي چې هغوی بايد د هرې کلمې لپاره و وايي چې آيا دا يوه سمه کلمه ده او که نا سمه؟
٤. ښوونکی لومړی دوه بېلګې له زده کوونکو سره ترسره کوي.
٥. ښوونکی زده کوونکو ته وايي چې د تمرين کتاب کې د تمرين د سرته رسولو لپاره په دوه کسيزه توګه کار وکړي.
٦. کله چې زده کوونکي په کار بوخت وي، ښوونکی په ټولګي کې ګرځي ترڅو له هغو زده کوونکو سره مرسته وکړي چې ستونزې لري.
٧. ښوونکی له زده کوونکو څخه پوښتنه کوي چې و وايي هغوی به په دې لوست کې څه زده کړي دي. (ځواب: برخه (بې) مختاړی کلمې ته بله معنا ورکوي).

### ۲. د لغتونو زېرمه (۱۵ دقيقې)

۱. ښوونکی زده کوونکو ته وايي چې هغوی به د مترادفو کلمو باره کې لازيات تمرين وکړي.
۲. ښوونکی له زده کوونکو څخه پوښتنه کوي چې اوس هم په ياد لري چې مترادفې کلمې څه ته وايي. آيا هغوی د مترادفو کلمو يو څو بېلګې وړاندې کولای شي؟
۳. ښوونکی زده کوونکي خپلو درسي کتابونو لوستلو ته رابولي. هغوی د(الف) او (ب) دوه چوکاټونه ويني چې کلمې لري. هغوی بايد مترادفو کلمو ته په دواړو چوکاټونو کې مطابقت ورکړي. ښوونکی لومړی دوه کلمې له زده کوونکو سره ترسره کوي.
٤. ښوونکی زده کوونکو ته وايي چې په دوه کسيزه توګه خپلو د تمرين په کتابونو کې تمرين ترسره کړي.
٥. کله چې زده کوونکي په کار بوخت وي، ښوونکی په ټولګي کې ګرځي تر څو له هغو زده کوونکو سره مرسته وکړي چې ستونزې لري.
٦. لږ وخت وروسته، ښوونکی د زده کوونکو ځوابونه ګوري.
٧. ښوونکی له زده کوونکو څخه پوښتنه کوي چې و وايي هغوی په دې لوست کې څه زده کړي دي. (ځواب: موږ د مترادفو کلمو باره کې زده کړه وکړه).




### ۳. د لومړي متن بيا لوستل (۱۰ دقيقې)

۱. د ځلور پړاوونو ( ښوونکی لولي، ښوونکی او زده کوونکي يې په ګډه لولي، زده کوونکي يې په دوه کسيزه توګه لولي او زده کوونکي يې په انفرادي توګه لولي) په کارولو سره لومړی متن له زده کوونکو سره بيا لولي

### تکرار او کورنۍ دنده (۵ دقيقې)

۱. **تکرار:** له (بې) مختاړي سره نومونه تکرارول.
۲. **کورنۍ دنده:** ښوونکی زده کوونکو ته وايي چې د کلمو په کورونو کې په خپلو کتابچو کې ترسره کړي او د لومړی متن لوستل بيا تکرار کړي.

**فرعي موضوع: زمرد**

**د زده کړې موخې:**

۱. په مورفیمونو د کلمو تجزیه کول او د جملو د جوړښت د پوهې کارول.
۲. له انځور، سرلیک، مهمو کلمو او مخکینۍ پوهې څخه په ګټه اخیستنې سره دا وړاندوینه کول چې کیسه یا متن به د څه په اړه وي.
۳. د لوستلو پر مهال د مفهوم اخیستنې لپاره له بیا لوستلو نه کار اخیستل.
۴. د متن ارزول.

**۱. کلمې (۱۰ دقیقې)**

۱. ښوونکی د لومړي نوم جوړښت کټ مټ پر توره تخته هغسې لیکي لکه چې په درسي کتاب کې لیکل شوی دی.
۲. ښوونکی نمونه په لوړ غږ زده کوونکو ته لولي، بیا ښوونکی نمونه له زده کوونکو سره په ګډه لولي.
۳. ښوونکی تشریح کوي چې کلمې ته یوه کوچنۍ برخه ورزیاتېږي او د نوم معنا بدلوي.
٤. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې د لومړنیو دوو بېلګو د لوستلو د پاره خپل درسي کتاب ته وګوري.
٥. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې په درسي کتابونو کې په دوه کسیزه توګه کلمې ولولي.
٦. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې د تمرین په کتابونو کې د کلمو لیکل تمرین کړي.
۷. کله چې زده کوونکي کلمې لولي، ښوونکی په ټولګي کې ګرځي تر څو له هغو زده کوونکو سره مرسته وکړي چې ستونزې لري.

**۲. د دویم متن لوستل (۲۵ دقیقې)**

**له لوستلو څخه مخکې**

۱. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې سرلیک او انځور ته وګوري او وړاندوینه وکړي چې متن به د څه په اړه وي. (په خپلو کې شریکول، له ټولګیوالو سره شریکول). زده کوونکي باید درسي کتابونو ته ځیر شي چې هغوی د موضوع په اړه مخکې له مخکې په څه پوهېدل.
۲. ښوونکی درې مهمې کلمې له زده کوونکو سره معنا او په جملو کې یې کاروي.

**د لوستلو پر مهال**

۱. ښوونکی یې لولي، ښوونکی او زده کوونکي په ګډه یې لولي، زده کوونکي په دوه کسیزه توګه لولي.
۲. ښوونکی زده کوونکو ته ښیي چې څنګه کولای شي د تم کېدلو او فکر کولو ستراتیژۍ څخه د متن د لوستلو پرمهال ګټه واخلي.

**له لوستلو څخه وروسته**

۱. ښوونکی له زده کوونکو څخه پوښتنه کوي چې ایا د کیسې په اړه یې وړاندوینه سمه ده؟ هو یا نه.
۲. ښوونکی له زده کوونکو څخه لاندې پوښتنې کوي:

**- پوښتنه: د هېواد په کومو غرونو کې د زمرد کانونه شته؟**



| کلمه | بې + کلمه | کلمه |
|---|---|---|
| بې وعدې | بې + وعدې | وعده |
| بې کاره | بې + کاره | کار |
| بې وفا | بې + وفا | وفا |

زمرد

زمرد یوه قیمتي او ارزښتناکه ډبره ده. زمرد په ګاڼو کې کارول کېږي. همدا رنګه د فضايي بېړيو په جوړولو کې ورته کار اخیستل کېږي. زموږ د هېواد د پنجشیر او بدخشان په غرونو کې د زمردو کانونه شته. دا زمرد د نورو هېوادونو د زمردو په پرتله شفاف او رڼه دي. زمرد چې کله له کان څخه را وایستل شي، بیا ډلبندي کېږي. له ډلبندۍ وروسته د خرڅلاو لپاره کورنیو او بهرنیو بازارونو ته استول کېږي. د افغانستان زمرد په نړیوالو بازارونو کې لوړه بیه لري. کانونه د افغانانو ملي شتمني دي، په کار ده چې ټول کانونه په قانوني او مسلکي توګه را وایستل شي، له دې سره به هېواد آباد او د خلکو اقتصاد به پیاوړی شي.

**ځواب: د پنجشیر او بدخشان په غرونو کې.**
**- پوښتنه: کله چې زمرد له کان څخه راوایستل شي بیا پرې څه کوي؟**
**ځواب: ډلبندي کېږي او د خرڅلاو لپاره کورنیو او بهرنیو بازارونو ته استول کېږي.**
**- پوښتنه: ستاسو په فکر قیمتي کاڼي څه ته ویل کېږي؟**
**ځواب: زمرد، یاقوت، لعل، جواهر او فیروزه.**
**- پوښتنه: که چېرته د زمردو کانونه په خپل سري توګه راویستل شي څه به پېښ شي؟**
**ځواب: ملي شتمني به مو له منځه لاړه شي او اقتصاد ته به مو لوی زیان ورسیږي.**

۳. ښوونکی له زده کوونکو پوښتنه کوي چې د متن اصلي مفهوم څه شی دی:
٤. ځواب: د متن اصلي مفهوم دا دی: **د زمرد متن په زړه پورې و، زمرد ملي شتمني ده د پنجشیر او هندوکش په غرونو کې د زمردو کانونه شته چې باید سم یې وساتو.**

**تکرار او کورنۍ دنده (۵ دقیقې)**

۱. **تکرار:** ښوونکی د کلمو تمرین له زده کوونکو سره تکراروي.
۲. **کورنۍ دنده:** زده کوونکي د کلمې لیکل او د دوهم متن بیا لوستل په کور کې تمرین کوي.

**فرعي موضوع: زمرد**

**د زده کړې موخې:**

۱- د مرکبو جملو پېژندل او کارول.
۲- په یوه جمله کې د مترادفو کلمو تبدیلول.
۳- له مناسب لحن، حرکاتو او له ٪ سموالي سره د متنونو لوستل.

### ۱. کلمې او جملې (۱۰ دقیقې)

۱. ښوونکی پر تخته د دوو جملو او په لینډیو کې د یوه نښلوونکي(**خیبر پسته اخلي شمشاد زمرد خرڅوي.**) او (**خیبر پسته اخلي او شمشاد زمرد اخلي**) لیکلو سره درس پیلوي.
۲. ښوونکی زده کوونکو ته درس تشریح کوي چې هغوی د نښلوونکي کلمې په کارولو سره له دوو جملو څخه یوه جمله جوړولای شي.
۳. ښوونکی له زده کوونکو څخه غوښتنه کوي چې خپلو ټولګیوالو ته و وایي چې هغوی د نښلوونکي کلمې په کارولو سره څنګه دوه جملې سره یوځای کولای شي. ښوونکی له یوه یا دوو زده کوونکو څخه د جملې د لوستلو غوښتنه کوي. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې خپل درسي کتابونو ته ځیر شي. ښوونکی لومړی دوه جملې له زده کوونکو سره ترسره کوي.
٤. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې د تمرین کتاب کې د تمرین بشپړولو لپاره په دوه کسیزه توګه کار وکړي. کله چې زده کوونکي د مرکبو جملو په تمرین بوخت وي، ښوونکی په ټولګي کې ګرځي ترڅو له هغو زده کوونکو سره مرسته وکړي چې ستونزې لري. ښوونکی له زده کوونکو څخه غوښتنه کوي چې و وایي هغوی په دې درس کې څه زده کړي دي. (ځواب: د مرکبو جملو جوړول.)

### ۲. د لغتونو زېرمه (۱۵ دقیقې)

۱. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې هغوی به د مترادفو کلمو په اړه لازیات تمرین وکړي.
۲. ښوونکی له زده کوونکو څخه پوښتنه کوي چې اوس هم په یاد لري چې مترادفې کلمې څه ته وایي. آیا هغوی د مترادفو کلمو څو بېلګې وړاندې کولای شي؟
۳. ښوونکی زده کوونکي خپل درسي کتاب لوستلو ته رابولي. هغوی یو څو جملې ویني. په هره جمله کې د یوې کلمې لاندې خط ایستل شوی دی. هغوی باید جملې ته څېرمه چوکاټ کې د کلمو له جملې څخه د هماغه کلمې مترادفه کلمه پیدا کړي. ښوونکی لومړی دوه جملې له زده کوونکو سره ترسره کوي.




٤. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې په دوه کسیزه توګه خپلو د تمرین په کتابونو کې تمرین ترسره کړي.
٥. کله چې زده کوونکي په کار بوخت وي، ښوونکی په ټولګي کې ګرځي تر څو له هغو زده کوونکو سره مرسته وکړي چې ستونزې لري.
٦. لږ وخت وروسته، ښوونکی د زده کوونکو ځوابونه ګوري.
٧. ښوونکی له زده کوونکو څخه پوښتنه کوي چې په دې اونۍ کې څه زده کړي دي. (ځواب: موږ د مترادفو کلمو په اړه زده کړه وکړه).

### ۳. د دویم متن بیا لوستل (۱۰دقیقې)

۱. د څلور پړاوونو ( ښوونکی لولي، ښوونکی او زده کوونکي یې په ګډه لولي، زده کوونکي یې په دوه کسیزه توګه لولي او زده کوونکي یې په انفرادي توګه لولي) په کارولو سره لومړی متن له زده کوونکو سره بیا لولي.

### تکرار او کورنۍ دنده (۵ دقیقې)

۱. **تکرار:** د مرکبو جملو تکرارول.
۲. **کورنۍ دنده:** ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې د کلمو او جملو لیکل او د دوهم متن لوستل په کورونو کې په خپلو کتابچو کې ترسره کړي.

د حسن خط فعالیت، ارزونه او کورنۍ دنده (۴۰ دقیقې)

## فرعي موضوعګانې: د پستې ځنګل، زمرد

**د زده کړې موخې:**

۱- د موخو ټاکل.

۲- د نوښتي ليکنې د متن بشپړول.

۳- له مناسب لحن، حرکاتو او٪ ۹۵ سموالي سره د متنونو لوستل.

### ۱. غوږنيول او خبرې کول (۱۰ دقيقې)

۱. زده کوونکو ته ووایاست چې د نن ورځې په درس کې به د خپلو شخصي، علمي او مسلکي موخو پر ټاکلو باندې بحث وکړو. زده کوونکو ته ووایئ چې موږ باید په ژوند کې موخې ولرو او د موخو د لاسته راوړلو لپاره هغه اړین قدمونه یا کارونه چې باید ترسره شي وپېژنو.

۲. زده کوونکو ته ووایاست د درسي کتاب د هغه انځور په اړه چې نجلۍ پکې غواړي یوه ښه ډاکټره شي او هلک غواړي یو ښه ښوونکی شي یو له بل سره بحث وکړي. له زده کوونکوڅخه دغه پوښتنې وکړئ: نجلۍ غواړي څه شی شي؟ د هغې موخه څه ده؟ (غواړي ډاکټره شي)، د دې لپاره چې هغه یوه ښه ډاکټره شي، نو څه کارونه باید ترسره کړي؟ ( هره ورځ ښوونځي ته ولاړه شي، په درسونو کې کوښښ وکړي، کورنۍ دنده ترسره کړي، په هغو درسونو کې چې ستونزه لري له نورو مرسته وغواړي، په رخصتيو کې درسونه ووايي او داسې نور.)

۳. ښوونکی زده کوونکو ته وايي چې موږ باید پر خپلو موخو پوه شو او د موخو د لاسته راوړلو لپاره ټول اړين قدمونه او کارونه وپېژنو.

۴. زده کوونکو ته ووایاست چې د تمرين کتابونو ته وګوري. د تمرين په کتابونو کې دوی يو فعاليت تر سره کوي. زده کوونکو ته و وایاست چې پوښتنې ولولي او له خپلو ملګرو سره پرې بحث وکړي. له زده کوونکو بيا وغواړئ چې د دوی موخې څه شی دي او په راتلونکې کې غواړي څه شی شي؟ له زده کوونکو وغواړئ چې د دې پوښتنې ځوابونه د تمرين په کتابونو کې وليکي.

۵. له څو زده کوونکو څخه وغواړئ چې خپلې موخې او هغه کارونه چې د موخو لاسته راوړلو لپاره يې باید ترسره کړي ټولګيوالو ته و وايي.

۶. زده کوونکو ته و وایاست د دې لپاره چې موخې مو لاسته راوړو، نو باید ټول هغه کارونه او پړاونه چې د موخو د لاسته راوړلو لپاره اړين دي وپېژنو.



### ۲. نوښتي ليکنه (۱۵ دقيقې)

۱. ښوونکی زده کوونکو ته وايي چې هغوی به اوس د موخو د ټاکلو په اړه يوه متن وليکي.

۲. ښوونکی د درسي کتاب جملې او د چوکاټ کلمې له زده کوونکو سره يو ځای لولي.

۳. ښوونکی زده کوونکو ته وايي چې د تمرين په کتابونو کې د چوکاټ د کلمو په کارولو سره په تشو ځايونو کې په دوه کسيزه توګه جملې جوړې کړي او نيمګړی متن دې بشپړ کړي.

۴. ښوونکی په ټولګي کې ګرځي او هغو زده کوونکو ته چې ستونزې لري مرسته او لارښوونه کوي.

۵. ښوونکی له څو زده کوونکو غواړي چې خپل بشپړ کړي متنونه ټولګيوالو ته و وايي.

### ۳. د لومړي او دويم متن بيا لوستل (۱۰ دقيقې)

ښوونکی له دوو پړاوونو (لکه زده کوونکي په دوه کسيزه توګه لولي، زده کوونکي يې پخپله لولي)، څخه په ګټه اخيستنې سره لومړی او دوهم متن له زده کوونکو سره بيا لولي.

### تکرار او کورنۍ دنده (۵ دقيقې)

۱. **تکرار:** زده کوونکي خپلې موخې تکراروي.

۲. **کورنۍ دنده:** لومړی او دوهم متن بيا لوستل. د نوښتي کيسې بشپړول او يو انځور پکې ورزياتول.

## فرعي موضوع: تکرار او دوامداره ارزونه

**د زده کړې موخې:**

۱- د (بې) مورفیم درلودونکو نومونو پېژندل او کارول.
۲- د مرکبو جملو پېژندل او کارول.
۳- مترادفو کلمو ته مطابقت ورکول.
٤- له مناسب لحن، او حرکاتو او له٪ ۹۵سموالي سره د متنونو لوستل.
٥- له ۸۰٪ سموالي سره کلمې او جملې لیکل.
٦- د / ی، ې،ئ / غږ او د / ی،ې،ئ/ تورو لرونکو کلمو سم لیکل.

### ۱.کلمې اوجملې (۱۰ دقیقې)

۱. ښوونکی د(بې) مورفیم(مختاړی) درلودونکو نومونو مفهوم تکراروي.
۲. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې د درسي کتاب (الف) تمرین ترسره کړي.
۳. ښوونکی مترادفې کلمې تکراروي.
٤. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې د درسي کتاب (ب) تمرین ترسره کړي.
٥. ښوونکی ساده او مرکبې جملې تکراروي.
٦. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې د درسي کتاب (ج) تمرین ترسره کړي.
۷. ښوونکی د زده کوونکو ځوابونه ګوري.
۸. ښوونکی د پرله پسې ارزونې کتاب کې د زده کوونکو نومرې ثبتوي.

### ۲.د لومړي او دویم متن بیا لوستل (۱۰ دقیقې)

۱. ښوونکی زده کوونکو ته دوه دقیقې وخت ورکوي چې په دوه کسیزه توګه لومړی یا دوهم متن ژر ژر ولولي.
۲. ښوونکی د زده کوونکو له څلورو جوړو نه غوښتنه کوي چې د ټولګي مخې ته راشي.
۳. ښوونکی هغوی ته وایي چې هره دو کسیزه به د متن یوه برخه لولي. هغوی باید متن په روانه توګه او د مناسب لحن او حرکاتو په کارولو سره ولولي چې د پای ټکی او د پوښتنې نښه منعکس کړي .
٤. ښوونکی ټولګي ته وایي چې ورو ورو متن له لوستونکي سره ولولي او ښه غور ونیسي. کله چې اته(۸) زده کوونکي په لوستلو بوخت وي، ښوونکی د هغوی د لوستلو څرنګوالی مشاهده کوي او خپله مشاهده د پرله پسې ارزونې په کتاب کې لیکي. له هغه زده کوونکو سره چې په ښه توګه دا فعالیت ترسره نه کړي، باید بله اونۍ ورسره مرسته وشي.



### ۳.املا (۱۵ دقیقې)

۱. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې هغوی به څو کلمې او جملې ولیکي.
۲. ښوونکی زده کوونکو ته د درسي کتابونو د ترلو او د تمرین کتابونو د پرانیستلو وایي. ښوونکی لومړی کلمه په کراره وایي او (۴) ځلې یې تکراروي. کلمه دا ده: **(یو)**
۳. زده کوونکي کلمه د تمرین په کتابونو کې لیکي.
٤. ښوونکی همدغه کار د لاندې اتو(۸) کلمو لپاره هم ترسره کوي.
**۱- ګوړ ۲-شتمني ۳-ډېرې ۴-وساتئ ۵-ښاپېرې ۶-اوسپنې ۷-پوهېږئ ۸- هیلې**
۵.ښوونکی لومړی جمله په کراره لولي او څلور ځله یې تکراروي. جمله دا ده. **۱. ګلالۍ پسته خوري.**
زده کوونکي جمله د تمرین په کتاب کې لیکي.
٦. ښوونکی همدا کار د لاندې (۳) جملو لپاره هم ترسره کوي.
**۲. خپل کتابونه پاک وساتئ.**
**۳. د مرمرو ډېرې ښکلې وي.**
**۴. باید د ملي شتمنۍ ساتنه وکړئ.**
**۷.** ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې د تمرین کتابونو د کتلو لپاره راوړي. ښوونکی د هغوی املا ګوري او نومرې ورکوي
۸. ښوونکی د زده کوونکو نومرې د پرله پسې ارزونې په کتاب کې ثبتوي.

### تکرار او کورنۍ دنده (۵ دقیقې)

۱. **تکرار:** هغه څه تکرارول چې زده کوونکو په دې اونۍ کې زده کړي دي.
۲. **کورنۍ دنده:** زده کوونکي د کلمو او جملو تمرین په کورونو کې په خپلو کتابچو کې ترسره کوي او د لومړي او دوهم متن لوستل تکراروي.

د حسن خط فعالیت، ارزونه او کورنۍ دنده (۴۰ دقیقې )

فرعي موضوع: برېښنا      توري: ي، ئ،ی

### د زده کړې موخې

۱. د (ي، ئ، ی) غږ لرونکو کلمو سم لیکل.
۲. دسرلیک،انځور،مهمو کلمو اوله مخکینۍ پوهې څخه په ګټې اخیستنې سره دې دا وړاندینه وکړي چې کیسه یا متن به د څه په اړه وي.
۳. دلوستلو پر مهال د مفهوم اخیستلو پاره له بیا لوستلو څخه کار اخیستل.
۴. د متن ارزول.

### ۱. توري او کلمې (۱۰ دقیقې)

۱. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې د **(ی)** توري سره ورته غږ لري. ځینې کلمې د **(ي)** غږ او ځینې نوري کلمې بیا د **(ي)** غږونه لري.
۲. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې په دې اونۍ کې به هغوی د هغو کلمو تمرین وکړي چې دا غږونه پکې کارول کېږي.
۳. ښوونکی لاندې کلمې پر تخته لیکي: **سپوږمی، برقي.** ښوونکی له زده کوونکو څخه په لوړ غږ د کلمې د لوستلو غوښتنه کوي. درڅخه پوښتنه کوي چې کوم توری د ا ي ا غږ لري. ښوونکی یو څو زده کوونکو ته اجازه ورکوي چې تورو ته ګوته ونیسي.
۴. ښوونکی د زده کوونکو پام درسي کتاب ته را اړوي. کلمې زده کوونکو ته په داسې حال کې لولي چې هغوی خپلې ګوتې پر کلمو تېروي. بیا زده کوونکي کلمې په دوه کسیزه توګه لولي.
۵. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې د تمرین په کتابونو کې د کلمو لیکل تمرین کړي.
۶. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې هغوی باید په کور کې هره ورځ د غو کلمو د لیکلو تمرین وکړي.
۷. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې د اونۍ په پای کې به هغوی د همدغې کلمو په اړه املا ولري.

### ۲. د لومړي متن لوستل (۲۵ دقیقې)

#### له لوستلو څخه مخکې

۱. ښوونکی زده کوونکو ته وایي ي چې سرلیک او انځور ته وګوري او وړاندوینه وکړي چې متن به د څه په اړه وي. (په خپلو کې شریکول، له ټولګیوالو سره شریکول). زده کوونکي باید خپلو درسي کتابونو ته ځیر شي چې هغوی د موضوع په اړه مخکې له مخکې څه پوهېدل.
۲. ښوونکی درې کلیدي کلمې له زده کوونکو سره معنا او په جملو کې یې استعمالوي.

#### د لوستلو پر مهال

۲. ښوونکی تمثیل کوي، ښوونکی او زده کوونکي یې په ګډه لولي، زده کوونکي یې په دوه کسیزه توګه لولي.
۳. ښوونکی زده کوونکو ته ښیي چې څنګه کولای شي د تم کېدلو او فکر کولو له ستراتیژۍ څخه ګټه واخلي.

#### له لوستلو څخه وروسته

۱. ښوونکی له زده کوونکو څخه پوښتنه کوي چې ایا د کیسې په اړه یې وړاندوینه سمه ده؟ هو یا نه.
۲. ښوونکی له زده کوونکو څخه لاندې پوښتنې کوي:


۲۷

توري او کلمې

| | | | |
|---|---|---|---|
| ي | ښوونځي | مزي | برقي |
| ئ | | | |
| ی | چترۍ | سپوږمی | |

برېښنا

هغه ماشین چې برېښنا تولیدوي، توربین یا ډاینمو بلل کېږي. توربین په اوبو، باد، ګاز او بخار تاوېږي. که د لمر وړانګې په لمریزو ښیښو پرېوځي هم برېښنا تولیدېږي. برېښنا د مزو په وسیله کورونو، ښارونو، فابریکو او روغتونو ته لېږدول کېږي. برېښنا ماشینونه په حرکت راولي، څراغونه روښانه کوي. اوتو، بخاري، یخچال او د کور نور برقي وسایل په برېښنا چلېږي. په برقي وسایلو کارونه آسانېږي. د برېښنا په لګولو کې احتیاط په کار دی. که برېښنا بې ځایه ولګوو، ډېر لګښت رابانديږي، همدارنګه بیا نورو خلکو ته پوره برېښنا نه رسېږي. ګورئ! د برېښنا لوڅو مزو ته لاس وړل خطر لري. که برېښنا خرابه شي یا یې مزي پرې شي، برقي خبر کړئ.

**- پوښتنه: هغه ماشین چې برېښنا تولیدوي څه نومېږي؟**
**ځواب: هغه توربین یا ډاینمو نومېږي.**
**- پوښتنه: کوم شیان په برېښنا چلېږي؟**
**ځواب: د فابریکې ماشینونه، اوتو، بخارۍ او نور برقي شیان. همدارنګه څراغونه پرې روښانه کېږي.**
**- پوښتنه: که له برېښنا سره بې احتیاطي وشي کومې پېښې به رامنځته شي.**
**ځواب: زموږ سر او مال ته به پکې زیان ورسیږي.**
**- پوښتنه: ولې غواړو برېښنا ډېره مصرف نه کړو؟**
**ځواب: که چېرې ډېره برېښنا مصرف کړو له یوې خوا به مو لګښت ډېر وي او له بلې خوا به نورو خلکو ته پوره برېښنا ونه رسیږي.**

۳. ښوونکی له زده کوونکو پوښتنه کوي چې د متن اصلي مفهوم څه شی دی:
۴. ځواب: د متن اصلي مفهوم دا دی: **د برېښنا او د برېښنا د کیفیت په اړه فکر کوو برېښنا د باد، لمریزو ښیښو، اوبو، تیلو او ګازو په وسیله ترلاسه کېږي.**

### تکرار او کورنۍ دنده (۵ دقیقې)

۱. **تکرار:** ښوونکی له زده کوونکو سره یو څو هغه کلمې تکراروي چې د ای ا، ای ا، ئ ا غږونه لري.
۲. **کورنۍ دنده:** زده کوونکي د تورو او کلمو تمرین په کورونو کې په خپلو کتابچو کې ترسره کوي او د لومړي متن لوستل تکراروي.

**فرعي موضوع: برېښنا**

**د زده کړې موخې:**

۱. له (بې) مختاړې سره نومونه پېژندل او کارول.
۲. د مترادفو (هم معنا) کلمو سره متضادو کلمو پرتله کول.
۳. په مناسب لحن، حرکاتو او له ٪۹۵ سموالي سره د متنونو لوستل.

### ۱. کلمې (۱۰ دقیقې)

۱. ښوونکی لاندینۍ دوه کلمې پر توره تخته لیکي: **(حوصلې او بې حوصلې)**
۲. ښوونکی له زده کوونکو څخه پوښتنه کوي چې آیا هغوی د دغو دوو کلمو په معنا پوهېږي. ښوونکی یو څو زده کوونکو ته د ځواب ورکولو وخت ورکوي. ښوونکی تشریح کوي چې د (بې) مختاړې کلمې ته متضاده معنا ورکوي.
۳. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې خپلو درسي کتابونو ته وګوري. هغوی یو شمېر کلمې ویني چې د (بې) کوچنۍ برخه لري. خو دغه ټولې کلمې حقیقي کلمې نه دي. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې هغوی باید د هرې کلمې لپاره و وایي چې آیا دا یوه سمه کلمه ده او که څنګه؟
٤. ښوونکی لومړۍ دوه بېلګې له زده کوونکو سره ترسره کوي.
٥. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې د تمرین په کتابونو کې د تمرین د سرته رسولو لپاره په دوه کسیزه توګه کار وکړي.
٦. کله چې زده کوونکي په کار بوخت وي، ښوونکی په ټولګي کې ګرځي، ترڅو له هغو زده کوونکو سره مرسته وکړي چې ستونزې لري.
۷. ښوونکی له زده کوونکو څخه پوښتنه کوي چې و وایي هغوی په دې اونۍ کې څه زده کړي دي. (ځواب: دا چې یوه کوچنۍ برخه (بې) کلمې ته متضاده معنا ورکوي).

### ۲. د لغتونو زېرمه (۱۵ دقیقې)

۱. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې هغوی به د عامو مترادفو او متضادو کلمو په اړه لازیات تمرین وکړي.
۲. ښوونکی زده کوونکي خپلو درسي کتابونو لوستلو ته رابولي. هغوی د کلمو څلور (۴) کتارونه ویني. هغوی باید مترادفو او متضادو کلمو ته په خپلو کې مطابقت ورکړي. ښوونکی لومړۍ دوه کلمې له زده کوونکو سره ترسره کوي.
۳. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې په دوه کسیزه توګه د تمرین په کتابونو کې تمرین ترسره کړي.
٤. کله چې زده کوونکي په کار بوخت وي، ښوونکی په ټولګي کې ګرځي، خو له هغو زده کوونکو سره مرسته وکړي چې ستونزې لري.
٥. له لږ وخت وروسته، ښوونکی د زده کوونکو ځوابونه ګوري.
٦. ښوونکی له زده کوونکو څخه پوښتنه کوي چې په دې درس کې څه زده کړي دي. (ځواب: موږ د متضادو او مترادفو کلمو په اړه زده کړه کړې ده.)




### ۳. د لومړي متن بیا لوستل (۱۰ دقیقې)

۱. له څلورو پړاوونو څخه یعنې ښوونکی تمثیلوي، ښوونکی او زده کوونکي په ګډه لولي، زده کوونکي یې په دوه کسیزه توګه لولي او زده کوونکي یې یخپله لولي، په کارولو سره لومړی متن له زده کوونکو سره بیا لولي.

### تکرار او کورنۍ دنده (۵ دقیقې)

۱. **تکرار:** د مرکبو جملو مفهوم تکرارول.
۲. **کورنۍ دنده:** ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې د کلمو تمرین په کورونو کې په خپلو کتابچو کې ترسره کړي او د لومړي متن بیا لوستل تکرار کړي.

فرعي موضوع: ملي شتمني

**د زده کړې موخې:**
۱. د کلمو تجزیه کول په مورفیمونو د کلمو د جوړښت د پوهې کارول.
۲. له انځور، سرلیک، مهمو کلمو او له مخکینۍ پوهې څخه په ګټې اخیستنې سره دا وړاندوینه کوي چې کیسه یا متن به د څه په اړه وي.
۳. د لوستلو پر مهال د مفهوم اخیستنې لپاره له بیا لوستلو څخه کار اخیستل.
۴. د متن ارزول.

### ۱. کلمې (۱۰ دقیقې)
۱. ښوونکی د لومړي کلمې جوړښت پر توره تخته هغسې لیکي چې په درسي کتاب کې لیکل شوی دی.
۲. ښوونکی نمونه په لوړ غږ زده کوونکو ته لولي. بیا یې ورسره په ګډه لولي.
۳. ښوونکی تشریح کوي چې کلمې ته یوه کوچنۍ توټه ورزیاتېږي او د کلمې معنا بدلوي.
۴. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې د لومړنیو دوه بېلګو د لوستلو لپاره خپلو درسي کتابونو ته وګوري.
۵. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې په درسي کتابونو کې په دوه کسیزه توګه توری او کلمې ولولي.
۶. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې د تمرین په کتابونو کې د کلمو لیکل تمرین کړي.
۷. کله چې زده کوونکي کلمې لولي، ښوونکی په ټولګي کې ګرځي، ترڅو له هغو زده کوونکو سره مرسته وکړي چې ستونزې لري.

### ۲. د دویم متن لوستل (۲۵ دقیقې)
**له لوستلو څخه مخکې**
۱. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې سرلیک او انځور ته وګوري او وړاندوینه وکړي چې متن به د څه په اړه وي. (په خپلو کې شریکول، له ټولګیوالو سره شریکول). زده کوونکي باید خپلو درسي کتابونو ته ځیر شي چې هغوی مخکې له مخکې د موضوع په اړه په څه پوهېدل.
۲. ښوونکی درې کلیدي کلمې له زده کوونکو سره معنا او په جملو کې یې استعمالوي.

**د لوستلو پر مهال**
۱. ښوونکی تمثیل کوي، ښوونکی او زده کوونکي یې په ګډه لولي، زده کوونکي یې په دوه کسیزه توګه لولي.
۲. ښوونکی زده کوونکو ته ښيي چې څنګه کولای شي د تم کېدلو او فکر کولو له ستراتیژۍ څخه ګټه واخلي.

**له لوستلو څخه وروسته**
۱. ښوونکی له زده کوونکو څخه پوښتنه کوي چې ایا د کیسې په اړه یې وړاندوینه سمه ده؟ هو یا نه.
۲. ښوونکی له زده کوونکو څخه لاندې پوښتنې کوي.



| فکر | بې + فکره | بې فکره |
|---|---|---|
| کار | بې + کاره | بې کاره |
| کور | بې + کوره | بې کوره |
| پاک | بې + باکه | بې باکه |

معدن، ګاز، برکتي

ملي شتمني

غر، ځنګل دي که معدن — شریک مال د ټول وطن
دا د ځمکې لاندې ګاز — دا د ځمکې لاندې تېل
دغه شته د ټول ولس — نه چې کوم يې دې يا بېل
په ملي شتمنۍ ټول — د هېواد يو شي شتمن
غر، ځنګل دي که معدن — شریک مال د ټول وطن
که زمونږ زېرمې اوبه — که دي کانې قیمتي
دا خوږه خوږه هوا — ستره وطن برکتي
دا وطن دې وي باغ باغ — وي دې شين لکه چمن
غر، ځنګل دي که معدن — شریک مال د ټول وطن

- پوښتنه: غرونه، ځنګلونه او معدنونه د چا مال دی؟
**ځواب: د ټولو هېوادوالو شریک مال دی.**
- **پوښتنه: په ملي شتمنیو کې کوم شیان راځي؟**
**ځواب: ځنګلونه، معدنونه او اوبه.**
- **پوښتنه: که ملي شتمنۍ ونه ساتل شي څه به وشي؟**
**ځواب: د هېواد او خلکو اقتصاد به مو کمزوری شي.**
- **پوښتنه: ولې خلک ملي شتمنۍ ساتي؟**
**ځواب: ځکه چې زموږ د ټولو شریک مال دی.**

۳. ښوونکی له زده کوونکو پوښتنه کوي چې د متن اصلي مفهوم څه شی دی:
۴. ځواب: د متن اصلي مفهوم دا دی: **ملي شتمني د ټولو هېوادوالو ګډ مال ده ګاز، اوبه، تیل، کانې ټول په ملي شتمنیو کې راځي.**

### تکرار او کورنۍ دنده (۵ دقیقې)
۱. **تکرار:** ښوونکی د کلمو تمرین له زده کوونکو سره تکراروي.
۲. **کورنۍ دنده:** زده کوونکي د کلمو لیکل او د دوهم متن د بیا لوستلو لپاره په کور کې تمرین کوي.

**فرعي موضوع: ملي شتمني**

**د زده کړې موخې:**

۱- د مرکبو جملو پېژندل او کارول

۲- په یوه جمله کې د مترادفو کلمو پر متضادو کلمو بدلول.

۳- له مناسب لحن، حرکاتو او له٪ ۹۵ سمولي سره د متن لوستل.

### ۱. کلمې او جملې (۱۰ دقیقې)

۱. ښوونکی پر تخته د دوه جملو او په لیندیو کې د یوې نښلوونکې کلمې په لیکلو سره درس پیلوي.

۲. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې هغوی د نښلوونکې کلمې په کارولو سره له دوو جملو څخه یوه جمله جوړولای شي.

۳. ښوونکی له زده کوونکو څخه غوښتنه کوي چې خپلو ټولګیوالو ته و وایي چې هغوی د نښلوونکي کلمې په کارولو سره څنګه دوه جملې سره یوځای کولای شي.

٤. ښوونکی له یوه یا دوو زده کوونکو څخه د جملې د لوستلو غوښتنه کوي ورته وایي چې خپلو درسي کتابونو ته ځیر شي. ښوونکی لومړی دوې جملې له زده کوونکو سره ترسره کوي.

٥. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې د تمرین کتابونو کې د تمرین د بشپړولو لپاره په دوه کسیزه توګه کار وکړي.

٦. کله چې زده کوونکي د مرکبو جملو د تمرین په کار بوخت وي، ښوونکی په ټولګي کې ګرځي، ترڅو له هغو زده کوونکو سره مرسته وکړي چې ستونزې لري.

٧. ښوونکی له زده کوونکو څخه غوښتنه کوي چې و وایي هغوی په دې درس کې څه زده کړي دي. (ځواب: د مرکبو جملو جوړول.)

### ۲. د لغتونو زېرمه(۱۵ دقیقې)

۱. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې هغوی به د مترادفو او متضادو کلمو په اړه زیات تمرین وکړي.

۲. ښوونکی زده کوونکي د خپلو درسي کتابونو لوستلو ته رابولي. هغوی هلته څو جملېویني. په هره جمله کې تر یوې کلمې لاندې خط ایستل شوی دی. هغوی باید جملې ته په مخامخ چوکاټ کې دشته کلمو له جملې څخه د هغې کلمې مترادفه او متضاد کلمه پیدا کړي. ښوونکی لومړی دوه جملې له زده کوونکو سره ترسره کوي.


۲۷ | ۴
کلمې او جملې
۱ زده قیمتي ډېرو دوکان لرم ادریس د تېلو سوداګر دی
زده قیمتي ډېرو دوکان لرم او ادریس د تېلو سوداګر دی.
۲ حمید هګۍ پخوي نسیمه یې نه خوري
حمید هګۍ پخوي، نسیمه یې نه خوري
۳ سهار وختي پاڅېدم په وخت ښوونځي ته ورسېدم
سهار وختي پاڅېدم، په وخت ښوونځي ته ورسېدم
او / خو / څکه
د لغتونو زېرمه
کلمې: ګرمه / زیاتي / ښیېن / کومک / مصرف / ښکلی
د دویم متن بیا لوستل
۱۹۱

۳. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې په دوه کسیزه توګه په خپلو د تمرین په کتابونو کې تمرین ترسره کړي.

٤. کله چې زده کوونکي په کار بوخت وي، ښوونکی په ټولګي کې ګرځي، ترڅو له هغو زده کوونکو سره مرسته وکړي چې ستونزې لري.

### ۳. د دویم متن بیا لوستل (۱۰دقیقې)

له څلورو پراوونو څخه یعنې ښوونکی تمثیل کوي، ښوونکی او زده کوونکي یې په ګډه لولي، زده کوونکي یې په دوه کسیزه توګه لولي او زده کوونکي یې پخپله لولي، په کارولو سره دوهم متن له زده کوونکو سره بیا لوستل.

### تکرار او کورنۍ دنده (۵ دقیقې)

۱. **تکرار:** ساده او مرکبو جملو تکرارول.

۲. **کورنۍ دنده:** ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې د کلمو او جملو تمرین په کورونو کې په خپلو کتابچو کې ترسره کړي او د دوهم متن لوستل تکراروي.

د حسن خط فعالیت، ارزونه او کورنۍ دنده (۴۰ دقیقې)

## فرعي موضوعګانې: د برېښنا او ملي شتمني

**د زده کړې موخې:**
۱- د موخو لاس ته راوړل.
۲- د نوښتي ليکنې د متن بشپړول.
۳- په مناسب لحن، حرکاتو او ۹۵٪ سموالي سره د متنونو لوستل.

### ۱. غوږنيول او خبرې کول (۱۰ دقيقې)

۱. زده کوونکو ته و واياست چې د نن ورځې په درس کې به پر دې خبرې وکړو چې ټول خلک که ماشومان دي او که لويان بايد خپلو ځانونو ته موخې وټاکي او د ژوند په اوږدو کې يې ترلاسه کړي ترڅو د ټولنې په پرمختګ کې برخه واخلي.
۲. زده کوونکو ته و واياست چې د موخو لاسته راوړلو لپاره موږ بايد ځينې اړين کارونه او پړاوونه ترسره کړو. ښوونکی د موخو لاسته راوړلو پر مهمو پړاوونو او کړنو رڼا اچوي. د تمرين په کتابونو کې د انځور اړوند لاندې پړاوونه په پام کې ونيسئ):
- واضح او رښتيني هدفونه ځانونو ته وټاکئ (کوم ځای ته وغواړئ ځانونه ورسوی)
- د هدف يا موخې د لاسته راوړلو لپاره ۵ پړاوونو يا کارونه وليکئ
- د خپلو موخو يا هدفونو په اړه له ملګرو سره مشوره وکړئ. ملګرو ته مو خپلې موخې ووايي. هغوی ته همدارنګه ووايي چې موخې مو څه ډول لاسته راوړئ او له هغوی څخه د اصلاح کولو په اړه ملاتړ وغواړئ.
- خپلې موخې او د موخو د لاسته راوړلو پړاوونه يا کارونه مو اصلاح کړئ.
- هغه پړاوونه چې تاسو يې غواړې ترسره کړئ چک کړئ.
۲. زده کوونکو ته ووايا ست چې په درسي کتاب کې د ښوونکي انځور ته وګوري. له زده کوونکو څخه دا پوښتنه وکړئ: څنګه کولی شو ښوونکي شو؟ د دې موخې د لاسته راوړلو اړين پړاوونه پر تخته وليکئ. د مثال په توګه، (۱. هره ورځ ښوونځي ته ولاړ شو ۲. کورنۍ دنده سمه ترسره کړو ۳. ښه مطالعه وکړو ۴. له نورو سره سم چلند وکړو ۵. اوپر دې تمرکز وکړو چې ښه ښوونکي شو ٦. له مور او پلار سره د خپلې موخې په اړه چې غواړي ښوونکي شي خبرې وکړي.)
۳. زده کوونکو ته و وايا ست چې د تمرين کتابونو ته وګوري. د تمرين په کتابونو کې تاسو اوس يو فعاليت ترسره کوی. هغوی ته ووايا ست د تېرې اونۍ د موخو د لاسته راوړلو لپاره تاسو بايد پنځه هغه پړاوونه يا کارونه چې بايد ترسره يې کړئ وليکئ.
۴. زده کوونکو ته و وايا ست چې د تېرې اونۍ موخو ته وګوري. هغوی ته اجازه ورکړئ چې د موخو په اړه يې له ټولګيوالو سره بحث وکړي.
۵. زده کوونکو ته ووايا ست چې د نن ورځې پر فعاليت باندې له ټولګيوالو سره خبرې وکړي او ووايي چې د يوې موخې د لاسته راولو لپاره بايد کوم اړين کارونه ترسره کړي.
٦. زده کوونکو ته ووايي چې دوی دې خپل لست کړي کارونه ملګرو او بيا ټولګيوالو ته ووايي.
۷. د وخت د شتون په صورت کې هغه کارونه چې زده کوونکي يې د موخو د لاسته راوړلو لپاره ترسره کوي پر تخته وليکئ او بحث پرې وکړئ.
۸. زده کوونکو ته ووايئ چې دغه کار له زده کوونکو سره مرسته کوي ترڅو خپلې موخې لاسته راوړي او اړونده کارونه په سمه او منظمه توګه ترسره کړي.



### ۲. نوښتي ليکنه (۱۵ دقيقې)

۱. ښوونکی زده کوونکو ته وايي چې هغوی به اوس د خپلو موخو د لاسته راوړلو په اړه يوه متن وليکي.
۲. ښوونکی زده کوونکو ته وايي چې د درسي کتاب جملې او د چوکاټ کلمې په يوازې توګه ولولي.
۳. ښوونکی زده کوونکو ته وايي چې د تمرين په کتابونو کې د چوکاټ د کلمو په کارولو سره په تشو ځايونو کې په يوازې توګه جملې جوړې کړي او نيمګړي متن دې بشپړ کړي.
۴. ښوونکی په ټولګي کې ګرځي او هغو زده کوونکو ته چې ستونزې لري مرسته او لارښوونه کوي.
۵. ښوونکی له څو زده کوونکو غواړي چې خپل بشپړ کړي متنونه ټولګيوالو ته و وايي.

### ۳. د لومړي او دويم متن بيا لوستل (۱۰ دقيقې)

ښوونکی له دوو پړاوونو (لکه زده کوونکي يې په دوه کسيزه توګه لولي، زده کوونکي يې پخپله لولي)، څخه په ګټه اخيستنې سره لومړی او دوهم متن له زده کوونکو سره بيا لولي.

### تکرار او کورنۍ دنده (۵ دقيقې)

۱. **تکرار:** زده کوونکي هغه کارونه تکراروي چې د موخو لاسته راوړلو لپاره يې ترسره کوي.
۲. **کورنۍ دنده:** لومړی او دوهم متن بيا لوستل. د نوښتي کيسې د ليکلو بشپړول او يو انځور پکې ورزياتول.
۱. ښوونکی هغه تمرين تشريح کوي چې له زده کوونکو سره د هغوی لخوا د ټاکل شويو موخو په لاسته راوړلو کې مرسته کوي.

## فرعي موضوع: تکرار او دوامداره ارزونه

**د زده کړې موخې:**

۱- د(بې) مورفیم ډرلودونکو نومونو پېژندل او کارول.
۲- د مرکبو جملو پېژندل او کارول.
۳- مترادفو او متضادو کلمو ته مطابقت ورکول.
٤- په مناسب لحن او حرکاتو سره او له٪ ۹۵ سموالي سره متنونه لوستل.
٥- له٪ ۸۰ سموالي سره کلمې او جملې لیکل.
٦- د / ی، ئ، ې/ غږونه او د / ی،ئ، ې/ تورو درلودونکو کلمو درست لیکل.

### ۱. کلمې او جملې (۱۰ دقیقې)

۱. ښوونکی د (بې) د مورفیم لرونکو نومونو مفهوم تکراروي.
۲. ښوونکی زده کوونکو ته وايي چې د درسي کتاب (الف) تمرین ترسره کړي.
۳. ښوونکی مترادفې او متضادې کلمې تکراروي.
٤. ښوونکی زده کوونکو ته وايي چې د درسي کتاب (ب) تمرین ترسره کړي.
٥. ښوونکی ساده او مرکبې جملې تکراروي.
٦. ښوونکی زده کوونکو ته وايي چې د درسي کتاب (ج) تمرین ترسره کړي.
۷. ښوونکی د زده کوونکو ځوابونه ګوري.
۸. ښوونکی د پرله پسې ارزونې په کتاب کې د زده کوونکو نومرې ثبتوي.

### ۲. د لومړي او دویم متن بیا لوستل (۱۰ دقیقې)

۱. ښوونکی زده کوونکو ته دوې دقیقې وخت ورکوي چې په دوه کسیزه توګه لومړی یا دوهم متن ولولي.
۲. ښوونکی د زده کوونکو له ځلورو(۴) جوړو څخه غوښتنه کوي چې د ټولګي مخې ته راشي.
۳. ښوونکی زده کوونکو ته وايي چې هره جوړه به د متن یوه یوه برخه لولي. هغوی باید متن په روانه توګه او د مناسب لحن او حرکاتو په کارولو سره ولولي چې پای ټکی او د پوښتنې نښه منعکسه کړي .
٤. ښوونکی زده کوونکو ته وايي چې ورو ورو متن له لوستونکي سره ولولي او ښه غوږ ورته ونیسي. کله چې اته(۸) زده کوونکي په لوستلو بوخت وي، ښوونکی د هغوی د لوستلو د څرنګوالي کتنه کوي او خپله کتنه د پرله پسې ارزونې په کتاب کې لیکي. له هغه زده کوونکو سره چې په ښه توګه دا فعالیت ترسره نه کړي، باید بله اونۍ مرسته وشي.



### ۳. املا (۱۵ دقیقې)

۱. ښوونکی زده کوونکو ته وايي چې یو څو کلمې او جملې ولیکي.
۲. ښوونکی زده کوونکو ته د درسي کتابونو له ټولو او د تمرین کتابونو له پرانیستلو څخه وايي. ښوونکی لومړی کلمه په کراره وايي او څلور(۴) ځلې یې تکراروي. کلمه دا ده: (**پوهېږئ**) زده کوونکي کلمې لیکي.
۳. ښوونکی همدغه کار د لاندې اتو(۸) کلمو لپاره هم ترسره کوي.
**۲-پېښې، ۳- کتابچې ۴- مزې ۵- ښوونځي ٦- برقي ۷- سپورمۍ ۸- وژغورئ، چترۍ.**
۴. ښوونکی لومړی جمله په کراره لولي او څلور ځلې یې تکراروي. جمله داده:۱. **برېښنا څراغونه روښانه کوي.**
زده کوونکې جمله د تمرین په کتاب کې لیکي.
۵. ښوونکی همدا کار د لاندې (۳) جملو لپاره هم ترسره کوي:
**۲. د برېښنا په لګولو کې باید احتیاط وکړو.**
**۳. د برېښنا لوڅو مزونو ته لاس وروړل خطر لري.**
**۴. موږ باید ملي شتمنیو ته پام وکړو.**
۴. ښوونکی زده کوونکو ته وايي چې د تمرین خپلې کتابچې د کتلو لپاره راوړي. ښوونکی د هغوی املا ګوري او نومرې ورکوي.
ښوونکی د زده کوونکو نومرې له پرله پسې ارزونه په کتاب کې ثبتوي.

### تکرار او کورنۍ دنده (۵ دقیقې)

۱. **تکرار:** هغه څه تکرارول چې زده کوونکو په دې اونۍ کې زده کړي دي.
۲. **کورنۍ دنده:** زده کوونکي د کلمو او جملو تمرین په کورونو کې په خپلو کتابچو کې ترسره کوي او د لومړي او دوهم متن لوستل تکراروي.

د حسن خط فعالیت، ارزونه او کورنۍ دنده (۴۰ دقیقې )

## فرعي موضوع: کاغذ څنګه جوړېږي    توري: ه، هـ، ی

### د زده کړې موخې:

۱. د ه / هـ/ او ی/ غږونو او تورو درلودونکې کلمو سم لیکل.
۲. د انځور، سرلیک، مهمو کلمو او د مخکینۍ پوهې څخه په ګټې اخیستنې سره دا وړاندوینه وکړي چې کیسه یا متن به د څه په اړه وي.
۳. د لوستلو پر مهال د مفهوم اخیستلو لپاره د بیا لوستلو څخه کار اخیستل.
۴. د متن ارزول.

### ۱. توري او کلمې (۱۰ دقیقې)

۱. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې د ه / او هـ/ غږ دوه توري لري. ځینې کلمې د(هـ)توري او ځینې نوري کلمې بیا د (هـ)توري لري.
۲. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې په دې اونۍ کې به هغه کلمې تمرین کړي چې د (ه) توری پکې کارول کېږي. او همدارنګه (ی) توري لرونکې کلمې ښوونکی لاندې کلمې پر تخته لیکي **اوبه، میده** ښوونکی له زده کوونکو څخه په لوړ غږ د کلمې د لوستلو غوښتنه کوي.
۳. ښوونکی له زده کوونکو څخه پوښتنه کوي چې کوم توری د ه/ او هـ/ غږ لري.
۴. ښوونکی یو څو زده کوونکو ته اجازه ورکوي چې توري ته ګوته ونیسي.
۵. ښوونکی د زده کوونکو پام درسي کتاب ته را اړوي. ښوونکی کلمې زده کوونکو ته په داسې حال کې لولي چې هغوی خپلې ګوتې په کلمو تېروي. بیا زده کوونکي کلمې په دوه کسیزه توګه لولي.
۶. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې د تمرین په کتابونو کې د کلمو لیکل تمرین کړي.
۷. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې هغوی باید په کور کې هره ورځ د دغو کلمو د لیکلو تمرین وکړي.
۸. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې د اونۍ په پای کې به هغوی د همدغې کلمو په اړه املا ولري.

### ۲. د لومړي متن لوستل (۲۵ دقیقې)

**له لوستلو څخه مخکې**

۱. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې سرلیک او انځور ته وګوري او وړاندوینه وکړي چې متن به د څه په اړه وي. (خپلو منځو کې شریکول، له ټولګیوالو سره شریکول). زده کوونکي باید خپلو درسي کتابونو ته ځیر شي چې هغوی د موضوع په اړه مخکې له مخکې په څه پوهیدل.
۲. ښوونکی درې کلیدي کلمې له زده کوونکو سره معنا او په جملو کې یې استعمالوي.

**د لوستلو پر مهال**

۱. ښوونکی تمثیل کوي، ښوونکی او زده کوونکي په ګډه لوستل کوي، زده کوونکي په دوه کسیزه توګه لوستل کوي.
۲. ښوونکی زده کوونکو ته ښیي چې څنګه کولای شي د تم کېدلو او فکر کولو ستراتیژۍ څخه ګټه واخلي.

**له لوستلو څخه وروسته**

۱. ښوونکی له زده کوونکو څخه پوښتنه کوي چې ایا د کیسې په اړه یې وړاندوینه سمه ده؟ هو یا نه.
۲. ښوونکی له زده کوونکو څخه لاندې پوښتنې کوي.

**- پوښتنه: زده کوونکي چېرته تللي وو؟**



**ځواب: د کاغذ جوړولو فابریکې ته.**
**- پوښتنه: کاغذ چې نه و، خلکو به پر څه شي لیکل کول؟**
**ځواب: پر ډبرو او د حیواناتو پر پوستکو.**
**- پوښتنه: له کاغذ نه د څه لپاره کار اخیستل کېږي؟**
**ځواب: د کتابونو، پوسترونو او نورو لیکنو لپاره.**
**- پوښتنه: که کاغذنه وای له کومو ستونزو سره به مخامخ شوي وو؟**
**ځواب: کتابونه به نه وو، لیک او لوست به سخت شوی و.**

۳. ښوونکی له زده کوونکو پوښتنه کوي چې د متن اصلي مفهوم څه شی دی:

ځواب: د متن اصلي مفهوم دا دی: **کاغذ د لومړي ځل لپاره په مصر کې جوړشو. کاغذ له ونو او کارول شویو کاغذونو جوړېږي.**

### تکرار او کورنۍ دنده (۵ دقیقې)

۱. **تکرار:** ښوونکی له زده کوونکو سره یو څو هغه کلمې چې د ه/ او هـ/ غږونه لري، تکراروي.
۲. **کورنۍ دنده:** زده کوونکي د تورو او کلمو تمرین په کورونو کې او په خپلو کتابچو کې ترسره کوي او د لومړي متن بیا لوستل تکراروي.

## فرعي موضوع: کاغذ څنګه جوړېږي

**د زده کړې موخې:**

١. دمثبتواومنفي فعلونوپېژندل او کارول.
٢. دعامومرکبوجملوپېژندل او کارول.
٣. کلمې په ۴ ډلو کې وېشل.
٤. له مناسب لحن، حرکاتو او له ٪۹۵ سموالي سره دمتنونو لوستل.

### ١. کلمې او جملې (۱۰ دقیقې)

١. ښوونکی پر توره تخته د لاندې جملې ( **کاغذ له ونو جوړېږي**) په لیکلو سره درس پیلوي او له زده کوونکو څخه غوښتنه کوي څو معلوم کړي چې ایا د جملې فعل مثبت دی که منفي.
٢. ښوونکی یوه بله جمله لیکلي (**ښوونکی کاغذونه نه اخلي**) او له زده کوونکو څخه د دې جملې د فعل د حالت د معلومولو غوښتنه هم کوي.
٣. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې هغوی به په مثبت او منفي دواړو حالتونو کې د فعل پېژندل/کارول زده کړي.
٤. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې د ښوونکي په مرسته د لومړیو دوه بېلګو د لوستلو او د ترسره کولو لپاره خپل درسي کتاب ته ځیر شي.
٥. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې د تمرین په کتابونو کې د تمرین د سرته رسولو لپاره په دوه کسیزه توګه کار وکړي.
٦. کله چې زده کوونکي پر مثبتو او منفي فعلونو په کار بوخت وي، ښوونکی په ټولګي کې ګرځي تر څو له هغو زده کوونکو سره مرسته وکړي چې ستونزې لري.
٧. ښوونکی پر تخته لاندې مرکبه جمله( زه فابریکې ته ځم او ته کورته لاړشه) لیکي او له زده کوونکو څخه پوښتنه کوي چې آیا دا یوه ساده جمله ده که مرکبه جمله ده. ښوونکی زده کوونکو ته تشریح کوي چې یوه مرکبه جمله دوه بشپړ مفاهیم لري چې یوه له بل سره تړاو لري.
٨. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې هغوی به د مرکبو جملو جوړول زده کوي.
٩. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې د ښوونکي په مرسته د لومړیو دوه بېلګو د لوستلو لپاره خپل درسي کتاب ته ځیر شي.
١٠. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې د تمرین په کتاب کې د تمرین د سرته رسولو لپاره په جوړه یې توګه کار وکړي.
١١. کله چې زده کوونکي د مرکبو جملو په تمرین باندې په کار بوخت وي، ښوونکی په ټولګي کې ګرځي ترڅو له هغو زده کوونکو سره مرسته وکړي چې ستونزې لري.

### ٣. د لغتونو زېرمه (۱۵ دقیقې)

١. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې هغوی به نن یو ځل بیا د کلمو ډلبندي تمرین کوي.




٢. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې کلمې له دوه یا دریو څخه په زیاتو ډلو کې وېشل کېدای شي.
٣. ښوونکی زده کوونکي خپل درسي کتاب لوستلو ته رابولي. هغوی(۹) کلمېویني چې(۳) بېلابېلو ډلو (کټګوریو) سره تړاو لري. ښوونکی له یوه زده کوونکي څخه د(۳) کټګوریو د لوستلو غوښتنه کوي.
٤. ښوونکی زده کوونکو ته په خپلو د تمرین په کتابونو کې د تمرین د ترسره کولو وایي. ښوونکی لومړی دوه کلمې له زده کوونکو سره ترسره کوي. بیا زده کوونکي په دوه کسیزه توګه کار کولو ته ادامه ورکوي.
٥. کله چې زده کوونکي په کار بوخت وي، ښوونکی په ټولګي کې ګرځي او له هغو زده کوونکو سره مرسته کوي چې ستونزې لري.
٦. لږ وخت وروسته، ښوونکی د زده کوونکو ځوابونه ګوري.

### ۴. د لومړي متن بیا لوستل (۱۰دقیقې)

١. د څلور پړاوونو یعنې ښوونکی تمثیلوي، ښوونکی او زده کوونکي په ګډه لولي، یعنې زده کوونکي په دوه کسیزه توګه لولي او زده کوونکي یې پخپله لولي، په کارولو سره لومړی متن له زده کوونکو سره بیا لوستل.

### تکرار او کورنۍ دنده (۵ دقیقې)

١. **تکرار:** مترادفې او متضادې کلمې تکرارول.
٢. **کورنۍ دنده:** ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې د کلمو او جملو تمرین په کورونو کې په خپلو کتابچو کې ترسره کوي او د لومړي متن لوستل تکراروي.

**فرعي موضوع: د اوبو بندونه**

**د زده کړې موخې:**

۱. په مورفیمونو د کلمو تجزیه کول او د جملو د جوړښت د پوهې کارول.
۲. د انځور، سرلیک، مهموکلمو او د مخکینۍ پوهې څخه په ګټې اخیستنې سره دا وړاندوینه وکړي چې کیسه یا متن به د څه په اړه وي.
۳. دلوستلوپرمهال دمفهوم اخیستنې لپاره بیالوستلوڅخه کاراخیستل
٤. د متن ارزول.

### ۱. توري اوکلمې (۱۰ دقیقې)

۱. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې د نرمې (ی)، امریه(ئ)، اورد(ي) او لکۍ لرونکی (ې) توري سره نژدې غږونه لري. ځینې کلمې /ی/ ئ/ ي/ ې/ توري لري.
۲. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې دې لوست کې به هغوی هغه کلمې تمرین کړي چې د (ی) توری پکې کارول کېږي. ښوونکی لاندې کلمې پر تختې لیکي **نری، ملګری** ښوونکی له زده کوونکو څخه په لوړغږ د کلمې د لوستلوغوښتنه کوي. ښوونکی له زده کوونکونه پوښتنه کوي چې کوم توری د /ئ/ ي/ ی/ غږونه لري. ښوونکی یو څو زده کوونکو ته اجازه ورکوي چې توري ته ګوته ونیسي.
۳. ښوونکی د زده کوونکو پام درسي کتاب ته را اړوي. ښوونکی کلمې زده کوونکو ته په داسې حال کې لولي چې هغوی خپلې ګوتې پر کلمو تېروي. بیا زده کوونکي کلمې په دوه کسیزه توګه لولي.
٤. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې د تمرین په کتابونو کې د کلمو لیکل تمرین کړي.
٥. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې هغوی باید په کور کې هره ورځ د دغو کلمود لیکلو تمرین وکړي.
٦. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې د اونۍ په پای کې به هغوی د همدغو کلموباره کې املا ولري.

### ۲. د دویم متن لوستل (۲۵ دقیقې)

**له لوستلو څخه مخکې**

۱. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې سرلیک او انځور ته وګوري او وړاندوینه وکړي چې متن به د څه په اړه وي. ( په خپلو منځو کې شریکول، له ټولګیوالو سره شریکول). زده کوونکي باید خپل درسي کتابونو ته ځیر شي چې هغوی په دې موضوع مخکې له مخکې په څه پوهیدل.
۲. ښوونکی درې کلیدي کلمې له زده کوونکو سره معنا او په جملو کې یې استعمالوي.

**د لوستلو پر مهال**

۱. ښوونکی تمثیل کوي، ښوونکی او زده کوونکي په ګډه لوستل کوي، زده کوونکي په دوه کسیزه توګه لوستل کوي.
۲. ښوونکی زده کوونکو ته ښیي چې څنګه کولای شي د تم کېدلو او فکر کولو ستراتیژۍ څخه ګټه واخلي.

**له لوستلو څخه وروسته**

۱. ښوونکی له زده کوونکو څخه پوښتنه کوي چې ایا د کیسې په اړه یې وړاندوینه سمه ده؟ هو یا نه.
۲. ښوونکی له زده کوونکو څخه لاندې پوښتنې کوي:



د اوبو بندونه

د اوبو بندونه څه ګټې لري؟
چېرته چې د اورې یا باران اوبه ډېرې وریږي، سیندونه یې ډېرې اوبه لري.
پر سیندونو بندونه جوړیږي. اوبه له بندونو څخه نهرونو او ویالو ته ځي.
بندونه ډېرې ګټې لري. بندونه د اوبو د بې ځایه تللو مخه نیسي. له بندونو څخه د برېښنا په تولید کې هم کار اخیستل کېږي. چېرته چې اوبه وي، هلته مرغان هم وي. په بندونو او ډنډونو کې کبان روزل کېږي. د بندونو په اوبو ډېرې کرنیزې ځمکې اوبه کېږي. همدارنګه ونې او باغونه پرې خړوبیږي. د بندونو په اوبو ډول ډول ترکاري او غلې دانې کرل کېږي. د اوبو بندونه ډېرې ګټې لري. باید د اوبو بندونه جوړ کړو. اوبه باید بې ځایه ونه لګوو.

- پوښتنه: له بندونو څخه د څه شي په تولیدکې کار اخلي؟
**ځواب: د برېښناپه تولید کې.**
- پوښتنه: په بندونو او ډنډونو کې څه شی روزل کېږي؟
**ځواب: کبان پکې روزل کېږي.**
- پوښتنه: ستاسوپه نظر داوبوبندونه کومې ګټې لري؟
**ځواب: برېښناتولید وي، ډېرې کرنیزې ځمکې او باغونه پرې اوبه کېږي. غلې دانې، ونې او باغونه ډېرېږي.**
- پوښتنه: څنګه کولای شو خپلې دښتې ښیرازه کړو؟
**ځواب: د اوبو بندونه جوړ کړو.**

۳. ښوونکی له زده کوونکو پوښتنه کوي چې د متن اصلي مفهوم څه شی دی:
٤. ځواب: د متن اصلي مفهوم دا دی: **په بندونو کې کبان روزل کېږي او د هېواد ډېرې کرنیزې ځمکې پرې اوبه کېږي.**

### تکرار او کورنۍ دنده (۵ دقیقې)

۱. **تکرار:** ښوونکی له زده کوونکو سره یو څو هغه کلمې چې د /ی/ ئ/، ي/ او /ې/ غږونه لري، تکراروي.
۲. **کورنۍ دنده:** زده کوونکي توري او کلمې په کورونو کې په خپلو کتابچو کې لیکي او د دوهم متن بیالوستل تکراروي.

## فرعي موضوع: د اوبو بندونه

**د زده کړې موخې:**

۱- د (بې) مختاړي سره د نومونو پېژندل او کارول.
۲- د مرکبو جملو پېژندل او کارول.
۳- عامي مترادفې (هم معنا) او متضادې کلمې پرتله کول
۴- له مناسب لحن، حرکاتو او له٪ ۹۵ سموالي سره متنونه لوستل.

### ۱. کلمې (۱۰ دقیقې)

۱. ښوونکی لاندینۍ دوه کلمې پر توره تخته لیکي: **(کوم) او (بې کوم)**
۲. ښوونکی له زده کوونکو څخه پوښتنه کوي چې د دغو دوو کلمو په معنا پوهېږي. ښوونکی یو څو زده کوونکو ته د ځواب ورکولو وخت ورکوي. ښوونکی تشریح کوي چې د(بې) مختاړې کلمې ته متضاده معنا ورکوي.
۳. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې خپل درسي کتاب ته وګوري. هغوی یو شمېر کلمې ویني چې د (بې) مختاړې لري. خو دغه ټولې کلمې حقیقي کلمې نه دي. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې هغوی باید د هرې کلمې لپاره و وایي چې آیا دا یوه سمه کلمه ده او که نا سمه؟
۴. ښوونکی لومړۍ دوه بېلګې له زده کوونکو سره ترسره کوي.
۵. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې د تمرین په کتاب کې د تمرین د سرته رسولو لپاره په دوه کسیزه توګه کار وکړي. کله چې زده کوونکي پر کار بوخت وي، ښوونکی په ټولګي کې ګرځي تر څو له هغو زده کوونکو سره مرسته وکړي چې ستونزې لري.
۶. ښوونکی دوې جملې (زه ځم)، (ناوخته دی) د (ځکه) کلمې پواسطه سره نښلوي او پر تخته یې لیکي. زه ځم ځکه چې ناوخته دی.
۷. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې هغوی د نښلوونکي کلمې په کارولو سره له دوو جملو څخه یوه جمله جوړولای شي.
۸. ښوونکی له زده کوونکو څخه غوښتنه کوي چې خپلو ټولګیوالو ته وایي چې هغوی د نښلوونکي کلمې په کارولو سره څنګه دوه جملې سره یو ځای کولای شي.
۹. ښوونکی له یو یا دوه زده کوونکو څخه د جملې د لوستلو غوښتنه کوي.
۱۰. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې خپلو درسي کتابونو ته ځیر شي. ښوونکی لومړۍ دوې جملې له زده کوونکو سره ترسره کوي.
۱۱. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې د تمرین کتاب کې د تمرین بشپړولو لپاره په دوه کسیزه توګه کار وکړي.
۱۲. کله چې زده کوونکو د مرکبو جملو د تمرین په کار بوخت وي، ښوونکی په ټولګي کې ګرځي، څو له هغو زده کوونکو سره مرسته وکړي چې ستونزې لري. ښوونکی د ځینو زده کوونکو نومې د پرله پسې ارزونې په کتاب کې ثبتوي.



### ۲. د لغتونو زېرمه (۱۵ دقیقې)

۱. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې هغوی به د عامو مترادفو او متضادو کلمو په باره کې لازیات تمرین ترسره کړي.
۲. ښوونکی زده کوونکی د خپلو درسي کتابونو لوستلو ته رابولي. هغوی دې هره جمله ولولي، د جملې د نظر وړ مترادفې کلمه دې په چوکاټ کې ښه نښه کړي. ښوونکی لومړۍ دوه کلمې له زده کوونکو سره ترسره کوي.
۳. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې په دوه کسیزه توګه د تمرین په کتابونو کې تمرین ترسره کړي.
۴. کله وچې زده کوونکي په کار بوخت وي، ښوونکی په ټولګي کې ګرځي تر څو له هغو زده کوونکو سره مرسته وکړي چې ستونزې لري. لږ وخت وروسته ښوونکی د زده کوونکو ځوابونه ګوري.
۵. ښوونکی له زده کوونکو څخه پوښتنه کوي چې هغوی په دې درس کې څه زده کړي دي. (ځواب: موږ د مترادفو کلمو په باره کې زده کړه ترلاسه کړه.)

### ۳. د دویم متن بیا لوستل (۱۰دقیقې)

د څلور پړاوونیزې (ښوونکی تمثیلوي، ښوونکی او زده کوونکي یې په ګډه لولي، زده کوونکي یې په دوه کسیزه توګه لولي او زده کوونکي یې پخپله لولي) په کارولو سره دوهم متن له زده کوونکو سره بیا لولي.

### تکرار او کورنۍ دنده (۵ دقیقې)

۱. **تکرار:** ښوونکی مرکبې کلمې تکراروي.
۲. **کورنۍ دنده:** ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې د کلمې تمرین په کورونو کې په خپلو کتابچو کې ترسره کړي او د دوهم متن تکرار کړي.

د حسن خط فعالیت، ارزونه او کورنۍ دنده (۴۰ دقیقې)

## فرعي موضوعګانې: کاغذ ځنګه جوړېږي او د اوبو بندونه

### د زده کړې موخې:

۱- د يوې موخې د ترلاسه کولو پر وړاندې پرتې ننګونې پېژندل او له منځه وړل.
۲- د نوښتي ليکنې د متن بشپړول.
۳- له مناسب لحن، حرکاتو سره او٪ ۹۵ سموالي سره د متنونو لوستل.

### ۱. غوږنيول او خبرې کول (۱۵ دقيقې)

۱. ښوونکی زده کوونکو ته وايي چې د نن ورځې په درس کې به د ستونزو پر له منځه وړلو خبرې وکړو. کله چې موږ د خپل ځان لپاره موخې ټاکو او غواړو چې په ژوند کې ځينې کارونه ترسره کړو، نو له بېلابېلو ستونزو او ننګونو سره کېدای شي مخ شو. موږ بايد پوه شو چې ځنګه کولی شو ستونزې له منځه يوسو؟
۲. زده کوونکو ته ووایاست چې درسي کتاب ته وګوري. هغوی ته ووایاست چې د دې اونۍ يو متن د اوبو په اړه و. زده کوونکو ته ووایاست چې که د ستاسو په کلي کې د ښښلو پاکې اوبه نه وي، نو خلک به له څه ډول ستونزو سره مخ شي؟ کيلوال مو ځنګه کولی شي دا ستونزه حل کړي؟ کليوال له چا سره بايد دا ستونزه په ګډه حل کړي؟ څو زده کوونکو ته وخت ورکړئ چې خپل ځوابونه ټولګيوالو ته ووايي.
۳. زده کوونکو ته ووایاست چې د تمرين کتابونو ته وګوري. د تمرين په کتابونو کې دوی يو فعاليت ترسره کوي. زده کوونکو ته ووایاست چې د تېرې اونۍ د موخو لاسته راوړلو پر مهال تاسې کېدای شي له ځينو ننګونو او ستونزو سره مخ شئ. هغوی ته ووایاست چې له هغو ننګونو يا ستونزو څخه درې ننګونې يا ستونزې د تمرين په کتابونو کې وليکئ.

### ۲. نوښتي ليکنه (۱۵ دقيقې)

۱. ښوونکی زده کوونکو ته وايي چې هغوی به اوس د ستونزو حلولو په اړه يوه متن وليکي.
۲. ښوونکی زده کوونکو ته وايي چې د درسي کتاب جملې او د چوکاټ کلمې په يوازې توګه ولولي.


۲۸ اونۍ — ۵ لوست
غوږنيول او خبرې کول
زيار او زحمت: د ستونزو حلول
نوښتي ليکنه
د ستونزو حلول مهم او ضروري دي
د لومړي او دويم متن بيا لوستل

۳. ښوونکی زده کوونکو ته وايي چې د تمرين په کتابونو کې د چوکاټ د کلمو په کارولو سره په تشو ځايونو کې په يوازې توګه جملې جوړې کړي او نيمګړی متن دې بشپړ کړي.
۴. ښوونکی په ټولګي کې ګرځي او هغو زده کوونکو ته چې ستونزې لري مرسته او لارښوونه کوي.
۵. ښوونکی له څو زده کوونکو غواړي چې خپل بشپړ کړي متنونه ټولګيوالو ته و وايي.

### ۳. د لومړي او دويم متن بيا لوستل (۱۰ دقيقې)

ښوونکی له دوو پراوونو (لکه زده کوونکي په دوه کسيزه توګه لولي، زده کوونکي يې پخپله لولي)، څخه په ګټې اخيستنې سره لومړی او دوهم متن له زده کوونکو سره بيا لولي.

### تکرار او کورنۍ دنده (۵ دقيقې)

۱. **تکرار:** د يوې موخې د ترلاسه کولو پر وړاندې د پرتو ستونزو يا ننګونه تکرارول.
۲. **کورنۍ دنده:** لومړی او دوهم متن بيا لوستل. د نوښتي کيسې بشپړول او د هغې په اړه يو انځور رسمول ا و په اړه يې يو څه ليکل.

## موضوع: تکرار او دوامداره ارزونه



**د زده کړې موخې:**

۱- د مثبت او منفي فعلونو پېژندل او کارول.

۲- د مرکبو جملو پېژندل او کارول.

۳- له٪ ۹۰ سموالي سره د متن لوستل.

٤- له مناسب لحن، حرکاتو او له٪ ۹۵ سموالي سره متنونه لوستل.

٥- له٪ ۸۰سموالي سره کلمې او جملې لیکل.

### ۱. کلمې او جملې (۱۰ دقیقې)

۱. ښوونکی د (بې) مختاړې چې کلمې ته متضاده معنا ورکوي، تکراروي.

۲. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې د درسي کتاب د (الف) تمرین ترسره کړي.

۳. ښوونکی مترادفې او متضادې کلمې تکراروي.

٤. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې د درسي کتاب د(ب) تمرین ترسره کړي.

٥. ښوونکی مرکبې جملې تکراروي.

٦. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې د درسي کتاب د (ج) تمرین ترسره کړي.

۷. ښوونکی د زده کوونکو ځوابونه ګوري.

۸. ښوونکی د اوږدمهالې ارزونې په کتاب کې د زده کوونکو نومرې ثبتوی.

### ۲. د لومړي او دویم متن بیا لوستل (۱۰ دقیقې)

۱. ښوونکی زده کوونکو ته دوې دقیقې وخت ورکوي چې په دوه کسیزه توګه لومړی یا دوهم متن ولولي.

۲. ښوونکی د زده کوونکو له (۴) جوړو څخه غوښتنه کوي چې د ټولګي مخې ته راشي. ښوونکی هغوی ته وایي چې هره جوړه به د متن یوه برخه لولي. هغوی باید متن په روانه توګه او د مناسب لحن او حرکاتو په کارولو سره ولولي چې پای ټکی او د پوښتنې نښه منعکس کړي.

۳. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې ورو ورو متن له لوستونکي سره ولولي او ښه غوږ ونیسي. کله چې (۸) زده کوونکي په لوستلو بوخت وي، ښوونکی د هغوی د لوستلو څرنګوالی مشاهده کوي او خپله مشاهده د پرله پسې ارزونې کتاب کې لیکي. له هغه زده کوونکو سره چې په ښه توګه دا فعالیت ترسره نه کړي، باید هغوی سره مرسته وشي.

### ۳. املا (۱۵ دقیقې)

۱. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې هغوی به یو څو کلمې او جملې ولیکي. ښوونکی زده کوونکو ته د درسي کتابونو د ټولولو او د تمرین کتابونو د پرانیستلو وایي.

۲. ښوونکی لومړی کلمه په کراره وایي او ۴ ځلې یې تکراروي. کلمه دا ده: (**اوبه**) زده کوونکي کلمه د تمرین په کتاب کې لیکي.

۳. ښوونکي همدغه کار د لاندې دولس(۱۲) کلمو لپاره هم ترسره کوي.

**۱- هغه ، ۲- نړۍ ۳- ولولئ ۴- هوا ۵- خمیره ۶- وګورئ ۷- لرګی ۸ خاورې ۹- جوړوي، ۱۰- مهرباني، ۱۱- شیدې، ۱۲- ناوې.**

۴. ښوونکی لومړی جمله په کرار لولي او څو ځلې یې تکراروي. جمله دا ده: ۱. **نړۍ په اوبو ښکلې ده.**

زده کوونکي جملې د تمرین په کتاب کې لیکي.

۵. ښوونکی همدا کار د لاندې (۳) جملو لپاره هم ترسره کوي.

**۲. مور د ګاونډیانو درناوی کوو. ۳. کاغذ له څه شي څخه جوړیږي؟**

**۴. د اوبو بندونه ډېرې ګټې لري.**

۶. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې خپل د تمرین کتابچې د کتلو لپاره راوړي. ښوونکی د هغوی املا ګوري او نومرې ورکوي.

۷. ښوونکی د زده کوونکو نومرې د پرله پسې ارزونې کتاب کې ثبتوی.

### تکرار او کورنۍ دنده (۵ دقیقې)

۱. **تکرار:** هغه څه تکرارول چې زده کوونکو دې اونۍ کې زده کړې دي.

۲. **کورنۍ دنده:** زده کوونکی د کلمو او جملو تمرین په کورونو کې په خپلو کتابچو کې ترسره کوی او د لومړي او دوهم متن لوستل تکراروي.

د حسن خط فعالیت، ارزونه او کورنۍ دنده (۴۰ دقیقې)

## د دریم ټولګي د درسونو لغت نامه

| اونۍ | لوست | لغت | معنا | اونۍ | لوست | لغت | معنا |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| ۱ | ۱ | - مخلوقات<br>-خالق<br>-نعمتونه | پیدا کړل شوي<br>پیداکوونکی<br>احسان، نیکي، مال | ٦ | ۳ | - ډېوه<br>-ودان<br>-مروره | -څراغ، د تېلو څراغ<br>- آباد، جوړ شوی<br>- ناراضه، خفه، زړه بدې |
| | ۳ | - امتیان<br>-تعلیم<br>-فرض | - پیروان<br>- علم حاصلونه، زده کړه<br>- د الله (ج) حکم | ۷ | ۱ | - نوبت<br>- احتیاط<br>-امانت | - وار، نمبر<br>-پام، اتیات<br>- امین والی، د چاپو شي یا پیسو سمه ساتنه |
| ۲ | ۱ | - خدمت<br>-اسانتیاوې<br>-پوهه | - چوپړ، نوکري، کار<br>- اساني، سهولت<br>- علم، عقل فکر | | ۳ | - احساس<br>- غوره<br>- میدان | - پوهېدل، حسول، خبره زړه ته پرېوتل<br>- ټاکل شوي، په ښه شوي<br>- ډګر |
| | ۳ | - کتابتون<br>-مناسب<br>-مطالعه | - کتابخونه، کتابخانه<br>-برابر، هم شکله<br>-لوستنه، کتنه | ۸ | ۱ | - تریو<br>- پخلنځی<br>- درناوی | - تروش، مالګین<br>- اشپزخانه، د پخلي ځای<br>- دروندوالی، سنګیني، احترام |
| ۳ | ۱ | - مزاحمت<br>- پاملرنه<br>- مرسته | - زحمت ورکول، مخنیوی<br>-توجه<br>- کومک | | ۳ | - ښوونځی<br>- مرسته<br>- دنده | - مکتب، د زده کړې ځای<br>-کومک<br>-وظیفه |
| | ۳ | - غوسه<br>- دوست<br>- حوصله | - قهر<br>- ملګری<br>- زغم، صبر، تحمل | ۹ | ۱ | - اسویلی<br>- خوندور<br>- شتمنه | - سړه سا<br>- مزه ناکه، مزه داره<br>- پانګواله، بډایه |
| ۴ | ۱ | - ازغن بوټي<br>- بیړه<br>- وژغوره | - هغه بوټي چې ازغي لري<br>-عجله - تلوار<br>-خلاص یې کړ | | ۳ | - باغچه<br>- اندیښنه<br>- مشوره | - وړوکی باغ<br>- تشویش، ویره<br>- مصلحت |
| | ۳ | - ستومانه<br>-کاغۍ<br>-ګاونډیان | - ستړی، خسته، زیله،<br>-ترکارغه وړه او حلاله مرغۍ ده چې سره مښوکه لري.<br>- همسایه ګان | ۱۰ | ۱ | - کرښې<br>- غوسه<br>- خوندي | - لیکې، خطونه، نښانه<br>- قهر<br>- ساتل شوی، پټ کړل شوی |
| ۵ | ۱ | - نسخه<br>- کینه<br>- موسکا | - هغه کاغذچې ډاکټر درمل په کې لیکي.<br>- دښمني، عداوت، کرکه<br>- تبسم، بې غږه خندا | | ۳ | - مینه<br>- رښتیا<br>- ملتیا | - محبت، دوستي<br>- صداقت، رښتینولي<br>همراهی، ملګرتیا |
| | ۳ | - هیلۍ<br>- ډوبېږي<br>- منه | -یوډول مرغاوۍ ده چې اهلي او صحرایي ډولونه لري.<br>-غرقیږي<br>-کور ودانی | ۱۱ | ۱ | - سیمه<br>- سمسور<br>- ورزش | - منطقه، ساحه<br>- تراو تازه، شنه، غوړیدلي<br>سپورت، تمرین |
| ٦ | ۱ | - مېله<br>-ترافیکي ښې<br>- اوسپنې | - په ځانګړوورځو کې د خلکو ټولېدنه<br>-هغه ښې چې د سړکونو پرغاړه د موټر چلونکو او خلکو د تنیظم لپاره ولاړې وي.<br>-چې مفردې اوسپنه ده او یو خړرنګه فلزدی | | ۳ | - نعمت<br>-کثافات<br>- زیرمې | - پیرزوینه. د الله تعالی ورکړه<br>-چټلي، خځلي<br>- ذخیرې |

| اونۍ | لوست | لغت | معنا |
| --- | --- | --- | --- |
| ۱۲ | ۱ | - خوندي<br>- میکروب<br>- سره | -ساتل شوی، ځای په ځای شوي.<br>-یووړوکی ژوندی موجود دی چې د ذره بین په وسیله لیدل کېږي او د ناروغۍ د را منځته کېدو سبب کېږي.<br>- کود، امبار |
| ۱۲ | ۳ | - تالنده<br>- برېښنا<br>- تندر | - د اسمان غورا، په وریځو کې غورهار چې د باران او ورلی پروخت را منځته کېږي.<br>- برق<br>-ټکه،تنا |
| ۱۳ | ۱ | - صفایي<br>- پام<br>- اشر | - پاکي، پاکیزه گي، روڼوالی<br>-توجه، فکر<br>- ډلیز وړیا کار، کډ کار |
| ۱۳ | ۳ | - بڼ<br>- تلوسه<br>- زرغونه | - باغ<br>- بی تابي، هیله، تلوار<br>- شنه، سمسوره |
| ۱۴ | ۱ | - خپه<br>-اندیښنه<br>- باور | - خوابدی، ناراضه<br>- فکر، غم، تشویش<br>- اعتبار، یقین، اعتماد |
| ۱۴ | ۳ | - ککړتیا<br>-غوڅ<br>-ټاکلي | - چټلي، ککړ<br>-شلیدلی، قطع<br>- انتخاب شوي، په نښه شوي |
| ۱۵ | ۱ | - کمزوری<br>-صحي<br>مناسب | - ضعیف، ناتوانه، خوار<br>- روغتیایي، په صحت اړوند<br>- سم، برابر، ښه |
| ۱۵ | ۳ | - لوبه<br>- مطالعه<br>- دوړې | - ورزش، سپورت<br>- لوستنه، کتنه<br>- گرد، غبار |
| ۱۶ | ۱ | - نس ناستی<br>-کانگې<br>- ناولي | -اسهال<br>-استفراق<br>-خیرن، نا پاک |
| ۱۶ | ۳ | - واکسین<br>- خوړ<br>- ناروغي | -یو ډول مواد دي چې د ناروغیو د مخنیوي لپاره کارېږي.<br>-شیله، د سیلاو د اوبو چ مسیر<br>-ناجوړي،رنځوري |
| ۱۷ | ۱ | - والیبال<br>- ذهن<br>- ژمنه | - په لاس سره د توپ لوبه<br>-فهم،فکر،عقل<br>-قول،عهد |

| اونۍ | لوست | لغت | معنا |
| --- | --- | --- | --- |
| ۱۷ | ۳ | - سلامتیا<br>- غذا<br>- ملتیا | - روغتیا، جوړتیا<br>- خواړه، ډوډۍ<br>- ملگرتیا |
| ۱۸ | ۱ | - لرغونی<br>- منارونه<br>- مرکز | - پخوانی، سابقه<br>- ثلي، برجونه<br>- پایتخت |
| ۱۸ | ۳ | - سراج العمارات<br>- پښېمانه<br>- ژمنه | -د جلال آباد په ښار کې یو له قدیمي اثارو څخه دی. دا باغ د امیر حبیب الله د دورې اړوند دی<br>-له خپل عهد او قول څخه اوښتلی<br>-قول، لوز،عهد |
| ۱۹ | ۱ | - نوټونه<br>- ناچله<br>ارزښت | - کاغذي پیسي، لوټونه<br>-له چلنده لوېدلې سکه، بې رواجه<br>- قیمت، قدر |
| ۱۹ | ۳ | - لرغونی<br>-غاټول<br>- بزکشي | - پخوانی، قدیمي<br>- د گل یو ډول دی (ریدې گل)<br>- ورلوبه |
| ۲۰ | ۱ | - خندق<br>- دښمن<br>- امن | - د ځان ساتلو په خاطر د ژور ځای یا ویالې ایستل<br>- جنگي مخالف، ضرر او خطر اړوونکی<br>- سوله، آرامي |
| ۲۰ | ۳ | - د بوډۍ ټال<br>- زرغون<br>- جلگې | - شنه زرغونه<br>- شین، شین شوی<br>- شنې او سمسورې سیمې |
| ۲۱ | ۱ | - موسکی<br>-روغ<br>- گټې | - موسکا کوونکی<br>- جوړ، تندرست، برابر<br>- فایده، سود |
| ۲۱ | ۳ | - موزیم<br>- مجسمه<br>- لوښي | - هغه ځای چې تاریخي آثار پکې ساتل کېږي.<br>-بت له خاورې، تېږې، اوسپنې او نور څخه جوړ شوی.<br>- آشپزخانې سامان لکه: کاسه، څمڅه، دیگ.... |
| ۲۲ | ۱ | - اغزن<br>- ډاک<br>-شنه خونه | - اغزي لرونکی بوټی یا ونه<br>- هوار میدان، بیابان، دښته<br>- له پلاستیک څخه جوړه شوې کوټه چې ترکاري پکې کرل کېږي. |
| ۲۲ | ۳ | - زعفران<br>- نړۍ<br>- پلورل | - یو ډول نبات دی چې ژیړ خوشبوی گلان لري.<br>-دنیا،جهان<br>-خرڅول په بیه ورکول. |

| اونۍ | لوست | لغت | معنا | اونۍ | لوست | لغت | معنا |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| ۲۳ | ۱ | - مناسب<br>- نندارتون<br>- ليمځی | - هغه څه چې په لاس جوړيږي لکه: غالی، ټغر، او نور...<br>- دننداري کولو ځای<br>- نمد، له وړويو څخه جوړ شوي فرش | ۲٦ | ۱ | -پسته<br>-خوندوره<br>-خوندي | - وچه ميوه ده چې دانې زرغون رنگ لري.<br>- مزه لرونکي ، مزه ناکه<br>- ساتل شوي، په امن |
| | ۳ | - غونډه<br>- کسبگر<br>-نندارچيان<br>- غبرگولي | -ټوليدنه،مجلس<br>-دکسب‌خاوند،ديوه‌شغل‌څښتن<br>- ننداره کوونکي<br>-جوړه پيداشوي‌ماشومان،غبرگونې | | ۳ | -خرڅلاو<br>-مسلکي<br>-شتمني | -خرڅېدل.<br>-په‌يوه‌څانکه کې د معلوماتو درلودونکی<br>-زېرمې،سرمايه |
| ۲۴ | ۱ | - دنده<br>- مبارک<br>- ټولنه<br>- اړتيا | - وظيفه، کار<br>- له برکت نه ډک، نيک، نيکمرغۍ<br>- غونډه، مجلس<br>- ضرورت | ۲۷ | ۱ | - توربين<br>-ورانگي<br>-لگښت | - د برق د توليد ماشين دی<br>-رڼاوي، پلوشۍ<br>- خرڅ، مصرف |
| | ۳ | - شور<br>- حکمت<br>-برکت | - چغې، نارې، ځوږ<br>- پوهه، هوښيار<br>-زياتوالی، ډېروالی، نيکمرغۍ | | ۳ | - معدن<br>-گاز<br>- برکتي | - کان<br>- غاز، د سون مواد دي<br>-زيات، ډېر، نيکمرغه |
| ۲۵ | ۱ | - روغتونونه<br>- پارکونه<br>- درملنه | - د ناروغانو، علاج او درملنې ځايونه<br>- د تماشې لپاره جوړ شوي باغونه<br>- علاج، دوا خوړل | ۲۸ | ۱ | - مواد<br>- ماشين<br>- خوند | - شيان، توکي،<br>- د کار هغه وسيله چې په برېښنا سره هم کار کوي<br>- مزه |
| | ۳ | - اوسپنه<br>- کان<br>- بټۍ | - وسپنه، خړرنگې فلزدې<br>- معدن<br>- داش، د لوښو او خښتو پخولو ځای | | ۳ | - نهرونه<br>- کبان<br>- خړوبېږي | - لويې وياله<br>- ماهيان<br>- اوبېږي، اوبه کيدل، تنده ماتېدل |